# د ثور کودتا او د هغې ژورې پایلې

لیکوال:
پوهاند ډاکټر محمد حسن کاکړ



د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه




## کتاب پېژندنه

دکتاب نوم : د ثور کودتا او د پایلې

لیکوال : پوهاند ډاکټر محمد حسن کاکړ

خپرندوی : د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه_جرمني

شمېر : 1000 ټوکه

د خپرونو لړ : (118)

چاپ کال : ۲۰10 م / ۱۳۸۹ ل

کمپوزر : ذبیح شفق

**اسد دانش مطبعه**

د ښلورمې حوزې ښلور لارې، مروارید هوټل ته مخامخ،

ملي مارکېټ، کابل

Cell:0700-449298/0799-209272

www.danishpress.com




# ډالـــــی

د پوهې او پوهنې نامتو
خدمتګارانو
پاچا امان الله، فیض محمد ذکریا،
ډاکټر علي احمد پوپل او ډاکټر
عبدالقیوم ته
په ټول اخلاص سره

## د خپرندويې ټولنې يادښت:

# د معاصر افغانستان
# د يو نوي څپرکي څېړنه

زموږ د هېواد په معاصر کې تاريخ کې د 1357هـ ل کال د ثور پېښه يا کودتا، داسې يو څپرکى دى چې په اړه يې ډېرې زياتې ليکنې شوي دي. د غه ز ياتره ليکنې د تايېد يا رد، د ستاينې غندنې سياسي تبليغاتي ليکنې دي، چې د ځانګړو موخو لپاره شوي دي. په دې اړه ځينې خاطرې هم کښل شوي دي. دغه خاطرې هم سره له دې چې ځينې يې ښايي د خاصو موخو لپاره شوي وي، خو بې له شکه چې ددې دورې د تاريخ کښلو لپاره ترې مواد او سندونه ترلاسه کېداى شي.

د ښاغلي پوهاند کاکړ د غه اثر له دې کبله مهم دى، چې د بېلابېلو اسنادو، مدارکو، خاطرو او ان مرکو او پوښتنو ګروېږنو له لارې، د حقايقو د موندلو هڅه شوې ده. زموږ په نظر دغه اثر ددې دورې يوه غوره تاريخي څېړنه ده.

استاد کاکړ د افغانستان د معاصر تاريخ د درېو عمده څپرکو په اړه څېړنه کړې ده. لومړنى يې د سرطان د کودتا په اړه، دويمه يې د ثور کودتا په اړه او درېيمه يې د روسانو د يرغل په اړه ده.

د سرطان کودتا په اړه څېړنه تېر کال د افغانستان د کلتوري ودې ټولنې له لوري خپره شوه. دويمه برخه يې دا دى په دغه اثر کې اوس خپرېږي او درېيم څپرکى به يې د " افغان_شوروي جګړه" په نوم په نږدې راتلونکي کې خپره شي.

*هيله لرو چې ددغو دورو څېړنه د افغانستان د نوي تاريخ د راسپړنې په کار کې ګټور واقع شي او د تاريخ مينه وال ترې ګټه واخلي.*

د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه
جرمني_ د کولن ښار
د 2010 کال د مۍ نهمه

# لړلیک

څلورم څپرکی

پنځم څپرکی

شپږم څپرکی

اووم څپرکی

## د پوهاند کاکړ نور اثرونه او ژباړې

په پښتو کې:

د افغانستان په باب د ژنیو جوړه
1988

افغانان د شپږ شپېتم کال په پسرلي کې
له روسانو سره د جنګ په حال کې 1990

وطن ته یو سفر، طالبان او اسلامي بنسټپالنه
2004

رښا او دفاع یا د افغانستان د نفوسو، تاریخ
او روانو پېښو په باب لیکنې
1999

د پاچا امان الله واکمنۍ ته یوه نوې کتنه
2005

د سرطان کودتا، د افغانستان د اوړدې...
2009

په فارسي کې:

افغان_افغانستان و مختصری از کوشش های افغانها
برای تشکیل دولت در هندوستان، فارس و افغانستان 1978

جنګ دوم افغان _ انګلیس 1989

مسله افغان 1990

نظری به کتاب افغانستان در پنج قرن اخیر
1990

په انګریزي کې:

افغانستان، داخلي سیاسي انکشافونو ته یوه کتنه 1971

د افغانستان حکومت او ټولنه د امیر عبدالرحمن خان په واکمنۍ کې
1979

افغانستان، د شوروي یرغل او د افغانانو ځواب
1995

د افغانستان سیاسي او دیپلوماتیکي تاریخ
2006

ب: لیکنې چې په اختصاصي مجلو از دایرة المعارفونو کې خپرې شوي دي:

په معاصر افغان تاریخ کې تمایلات، په افغانستان کې په اویاومې لسیزې کې، د لویي دوپري تالیف
1974

په 1973 کې د افغان پاچایي نسکورېدنه، منځنی ختیځ بین المللي جورنال، نهمه ګڼه
1978

د افغانستان د مشروطیت لنډ تاریخ، ایرانیکا دایرة المعارف، شپږم ټوک
1992

د معاصر افغانستان لنډ تاریخ
د افغان _ شوروي جنګ
کابل
طالبان

د معاصرې نړۍ
دایرة المعارف،
2009
اکسفورډ پوهنتون

ژباړې:

ګورکي د ادبیاتو په باب 1961

دموکراسی در جهان امروز، لیکنه د میک فیرسن 1971

د کابل سلطنت بیان، لیکنه د الفنسټن
لومړی ټوک 1981
دویم ټوک 1984

تاریخ څه ته وایي؟ لیکنه د اچ.کار 1970

د پوهنې فلسفي بنسټونه، لیکنه د جارج نیلر 2007

د یوې دورې لنډ تاریخ، 1869_1881 2007



# سریزه

خلقي ګوندیانو او چارواکو په افغانستان کې د 1357کال د ثور له کودتا نه وروسته شل میاشتې حکومت وکړ. په دغې لنډې مودې کې هم لړزوونکې پېښې وشوې. اساسي پېښه د دغسې نوي دولتي نظام په پښو درول و، چې د سوشلستي کامپ هېوادونو په شان یواځې د واکمن ګوند له خوا چلول کېده او سروال یې نور محمد تره کي خپلو شوروي ملګرو ته په پټه وعده ورکړې وه، چې دغه نظام "د شوروي د سرمشق پر بنسټ د پرولتاریا د دکتاتورۍ پیل دی."[1]

بله اساسي پېښه د فرمانونو له لارې د هغو اجتماعي اړیکو سملاسي اړول و، چې افغانانو د هغو له مخې خپله ټولنه او خپلمنځي اړیکې تنظیم کړې او دغسې یې ګڼل، چې هغه لکه د دوی قانون وي. پر دې سربېره ګوندیانو د خپلو فرمانونو په پلي کولو کې له زور نه کار اخیسته. دوی له مخالفتونو سره مخ شول، خو هغسې چې له انقلاب نه وروسته په فرانسې کې د پېړیو په بهیر کې روسپیر او په شوروي اتحاد کې لینن او ستالین خپل مخالفان ټکول، داسې هم خلقي ګوندیانو په افغانستان کې خپل مخالفان د "انقلاب ضد" په نامه ځپل. دوی فکر کاوه، چې یواځې د دوی لار سمه او د نورو لارې ناسمې او مردودې دي. په نتیجه کې په ټول افغانستان کې ډېر واړه او لوی پاڅونونه وشول، ټولنه ناارامه او واکمن ګوند هم ټوټې ټوټې شو. په معاصر افغانستان کې ټولنه بل هېڅ وخت، هغه هم په دغومره لنډې مودې کې، په دغسې ژور ډول کړکېچنه شوې نه وه.

خو د دغو پېښو په اړه که څه هم د افغانانو ژوند یې په ژور ډول اغېزمن کړی، تراوسه هم

---

[1] تره کي د ک ج ب مرستیال کریچکوف ته، میتروفین، ک ج ب په افغانستان کې، 39.

کومه عمومي مستنده لیکنه نه ده شوې. په ځینو اړخونو باندې یې لیکنې شوي دي، خو هغه چې یا د نظام د پلویانو یا مخالفانو دي، یو اړخیز او د خاص غرض لپاره دي. سره له دې هم دغه لیکنې، چې ډېرې دي، په خپل نوع کې مهمې دي. اوس د هغو او داسې هم په انګرېزي کې د باندنیو د لیکنو له مخې کېدلی شي، چې دد غې دورې یو عمومي او مستند سیاسي تاریخ وکښل شي. دغه لیکنه په دغې لار کې لومړنی کوښښ دی.

خو د هم مهال پېښو تاریخ کښل ګران وي، اساسي ستونځه د پېښو په اړه معلومات دي، چې نیمګړي دي. نوي معلومات وروسته یو وخت بل وخت عام کېږي، نو تاریخ کښل په اصل کې یوه پروسه ده، چې هېڅ وخت پوره نه وي. د هممهال پېښو تاریخ کښلو بله ځانګړتیا دا ده، چې دوره یې تاریخي شوې نه وي او په اړه یې لیکنه احساسات پارولی شي. په دغه حال کې حتمي وي، چې تاریخپوه د تاریخ معیارونه لا په دقیق ډول مراعات کړي او لیکنه یې د پېښو، سیاستونو او نظرونو افاقي بیان وي، بې له دې چې اشخاص په سپکه یاد کړي او خپل نظرونه پکې ځای کړي، که څه هم په پېښو سره به یې متاثر شوی وي. په دغې لیکنې کې دغه معیارونه مراعات شوي دي.

ددغسې لیکنې په نشتوالي سره وي، چې ملتونه پخوانی تېروتنې تکراروي، لکه د سرطان او ثور کودتاچیانو چې د پاچا امان الله د وخت تېروتنې تکرار کړې او ټولنه یې تر هر بل وخت نه ډېره بې ثباته کړه. دغه لیکنه په دغه مقصد و شوه، چې لوستونکي په تېره سمونپالان د خلقي دورې په سیاسي تاریخ پوه وي، چې چارواکو څه کول، څنګه وکړل او افغانانو د هغو په برابر کې څنګه او ولې غبرګون وښود او په نتیجه کې واکمن ګوند، حکومت، خلکو او وطن ته څه پېښ شول؟.

په پای کې له ښاغلي زرین انځور او ملګرو نه یې مننه کوم، چې زما دغه لیکنه هم د خپلې کولتوري ټولنې له خوا خپروي، لکه چې زما نور اثار یې هم خپاره کړي دي.

# پیلامه

د افغانستان سیاسي تاریخ ډېر ډینامیک، ډېر ورانوونکی او لږ ودانوونکی دی. دا به ځکه دغسې وي، چې د افغانانو په تېره د پښتنو کولتور په تشدد او فزیکي زور ولاړ دی. دغه کولتور، چې د پېړیو په بهیر کې جوړ شوی دی، ریښې یې له جنګونو او وژنو نه خړوبې شوې دي.

له ویدي دورې راهیسې دغه هېواد د خونړیو جنګونو ډګر شوی دی، دلته یواځې زردشتي دین او بودیزم په تبلیغ سره خپاره شوي دي، په نورو ټولو دورو کې په دغه وطن کې جنګونه شوي، چې په بهیر کې یې ورانۍ ډېرې او ودانۍ لږې شوي او دغه لږه ودانۍ هم چې د سمندري لارو موندلو نه دمخه په ځینو سیمو کې شوې وه، د باندنیو یرغلګرو له خوا ونړول شوه. ددغه وطن خلکو په خپله هم له ویدي دورې نه تر دوو پېړیو نه دمخه پورې په خاص ډول په شمالي هند باندې یرغلونه کړي. له هغې خوا نه هم له پخوا نه یو وخت بل وخت پر دوی باندې یرغلونه شوي دي. په معاصر مهال کې افغانستان یواځینی هېواد دی، چې د نړۍ درې زبرځواکو قوتونو یو وخت بل وخت پرې دانګلي دي.

په دغه ډول ددغې خاورې خلک په خپل ډېر اوږده تاریخ کې له باندنیو یرغلګرو سره مخ شوي او مجبور شوي، چې د هغو په وړاندې له خپل وطن او ارزښتونو نه دفاع وکړي. په نتیجه کې د دغو جنګونو او داسې هم د خپلمنځي جګړو، تربوري او ګوندیماري په سبب دوی هغومره چې د ځان او خپلو کورنیو په فکر وو، د ټولنې په فکر نه وو، هغومره چې فزیکي زور ورته مهم وو،

عقلاني ژوند ورته مهم نه و، هغومره چې له لاندې کېدلو نه د ژغورلو په فکر وو، د همکارۍ په فکر نه وو.

افغانان اوس هم د واک درناوی کوي، د رسمي واک خاوند لا ورته ستر، هوښیار او د درناوي وړ ښکاري. دا نو بیا عجبه نه ده، چې په دوی کې دغه میل ډېر پیاوړی دی، چې په خپله هم واک ترلاسه کړي، حتی که په وچ فزیکي زور سره هم وي. دغه میل په دوی کې دغومره پیاوړی دی، چې د واقعي کولو په لار کې یې هغه ارزښتونه هم تر پښو لاندې کوي، چې پرې عقیده لري او د دین، اخلاق، قانون او جرګو پروا نه کوي او حتی خپل خپلوان او نزدې ملګري هم له منځه وړي.

د واک ګټلو دغه میل به په دوی کې له دې امله هم پیاوړی وي، چې په دوی کې تراوسه هم د دولت د سروال ځای ناستی موضوع حل شوې نه ده. دغه کشاله البته په اسلامي نړۍ کې هم له ترکیې نه پرته هغه هم تر یوې اندازې پورې پرځای پاتې ده، چې د هغې له امله دغه هېوادونه په اساسي ډول کړکېچن دي، خو په معاصر افغانستان کې هر وخت چې د دولت مشر که څه هم هغه ستر میرویس یا ستر احمد شاه و، له منځه تللی، د هغه د ځای ناستي په سر جنګونه شوي او ټولنه او خلک ور سره ناارام شوي دي. دلته یواځې یوه استثنی وه، چې هغه امیر حبیب الله سراج و، چې د خپل پلار امیر عبدالرحمن له مړینې نه وروسته په ارام ډول پاچا شو.

په افغانستان کې اساسي قانونونه که څه هم د لویو جرګو له لارې ایستل شوي او د هغو پر بنسټ نظامونه په پښو درول شوي او خلکو هم منلي، خو په واک لېوالو هغه نقض کړي او ټولنه یې په ژور ډول ناارامه کړې ده. د واکمنو کورنیو مدعیانو له پخوا نه د واک په سر جنګونه کول، خو د ملي دولت په وروستي وخت کې نظامي افسرانو په کودتاګانو لاس پورې کړ. دغه پوځي

افسران په اسلامي هېوادونو کې د پخواني روم د امپراتور محافظان ( Praetorian Guard ) او د عثماني امپراتورۍ جانثاري ( Janissary ) راپه زړه کوي، چې ډېر ځله يې د خپلې خوښې کسان په تخت کېنولي، له تخت نه غورزولي او حتی له منځه وړي دي.
د حېرانۍ ځای دی، چې سقراط دوه نيم زره کاله دمخه په خپله رضا له خپل ژوند نه تېر شو، خو د هېواد قانون يې مات نه کړ، خو په افغانستان کې زموږ په وخت کې محمد داود دغسې سياسي نظام په کودتا سره نسکور کړ، چې د لويې جرګې او اساسي قانون له مخې جوړ شوی، وطن ارام او د پرمختګ په حال او په نړۍ کې د اعتبار او حيثيت خاوند هم و. که دی د دولتي واک لېوال نه وای، کودتا ته به يې زړه نه وای کړی. دی پوهېده يا بايد په دې پوه وای، چې کله چې حکومت هغه هم قانوني حکومت په فزيکي زور سره نسکور شي، په زور سره بايد وساتل شي او مخالفان په زور سره وځپل شي. دده له کودتا نه وروسته همدغسې وشول، ملګرو يې د بې قانوني او د خپل سري په وخت کې ډېر نوميالي کسان او نور مخالفان او رقيبان له منځه يووړل.
بيا هم که په زور سره د واک نيولو ميل په افغانانو کې پياوړی نه وای د محمد داود د جمهوريت به در ناوی شوی وای، چې وروسته يې د لويې جرګې او اساسي قانون له لارې قانوني بڼه غوره کړه، خو د واک نورو لېوالو دغه نظام هم د ثور په خونړۍ کودتا سره نسکور کړ او دغو کودتاچيانو بيا د خپلې لنډې واکمنۍ په بهير کې د سرطان تر کودتاچيانو نه بېخي ډېرې وژنې، بندي ګرۍ، کړونې او پارونې وکړې، چې په هغو سره يې نه يوازې ټولنه په ژور ډول کړکېچنه کړه، خپل حکومت او پوځ يې ضعيف او خپل ګوند يې ټوټې ټوټې کړ، چې بيا مخالف ګونديان يې د شوروي اتحاد له پوځ سره د واکمن کېدلو په

مقصد یوځای شول او حکوت یې نسکور کړ.
د غه اثر د همدغو پېښو بیان ته ځانګړی شوی، په دغه مقصد چې لوستونکي د کودتایي، ایډیالوجیکي یو ګوندي، انحصاري او زورواک نظام له پایلو نه خبر وي، چې هغه د ثور د کودتا نظام و.
د غه اثر اووه څپرکي لري، په لومړي څپرکي کې د ثور د کودتا بهیر بیان شوی. د کودتا تر بیان نه دمخه د هېواد عمومي وضع او په خاص ډول امنیتي وضع څېړل شوې ده، چې د ګوند د مهم غړي میر اکبر خیبر په ترور او بیا د یو شو ګوندي لویانو په بندي کېدلو سره تاوجنه شوه، چې د هغه د نظامي څانګې مشر حفیظ الله امین له خپل بندي کېدلو نه دمخه په پوځ کې خپلو ګوندي افسرانو ته د کودتا دستور ورکړ او هغوی د ولسمشر محمد داود حکومت په زیاته اندازه د هوایي قوې په زور نسکور کړ او محمد داود د خپلې کورنۍ له ټولو غړیو او ځینو وزیرانو سره ووژل شو او د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند د حکومت واګې په لاس کې ونیوه او مشر یې نور محمد تره کي د کودتایي حکومت سروال شو.
په د غه څپرکي کې په دې اړه هم بحث شوی، چې دغه کودتا د خلق ګوند یا د شوروي اتحاد د ابتکار نتیجه وه. د څپرکي په پای کې په دې اړه هم بحث شوی، چې هغه انقلاب و، لکه چې ګوندیانو ویل یا نظامي کودتا وه؟.
دویم څپرکی د نوي حکومت د ترکیب په اړه دی، چې ایډیالوجیکي او یو ګوندي و. په خپله ګوند هم معرفي شوی، چې د کمونستي اصلونو له مخې تنظیم شوی او نومیالي مؤسسان یې په مارکسزم_لیننزم معتقد وو. نوی حکومت د دولتي قدرت د تمرکز د اصل له مخې تنظیم شو، چې په هغه کې د اګسا په نامه جاسوسي ادارې د "انقلاب ضد" ځپلو په پلمه د ترور یوه دوره پیل کړه.
په د غه څپرکي کې دا هم ویل شوي، چې د پخواني

حکومت يو شمېر لوړ پوړي چارواکي څنګه له منځه يوړل شول او نور يې ګوښه کړل شول. په داسې حال کې چې نوي ګوندي چارواکي له حکومتي چارو سره بلد نه وو. په عين حال کې د خلکو د خوښ ساتلو لپاره "د کور، کالي، ډوډۍ" شعار عام شو او حکومت د اساسي کرښو په نامه، چې ورته يې د قانون حيثيت ورکاوه، په دغسې چارو لاس پورې کړ لکه "تصفيه دستګاه دولت از وجود عناصر ضد انقلاب، ضد دموکراتيک و ضد منافع خلق و وطن و ايجاد يک اداره دولتی سالم دموکراتيک و خدمت ګذار مردم." په دغه څپرکي کې هغه واړه لومړني پاڅونونه هم بيان شوي، چې يوځای بل ځای وشول او وځپل شول.

درېيم څپرکی سور بېرغ او درې وروستي فرمانونه يا له ولس سره د حکومت مقابله نومېږي. په دغه څپرکي کې هغه اته فرمانونه بيان شوي، چې حکومت د هغو په تطبيق سره ټولنه وپاروله، په تېره په څلورم او اتم لمبر فرمان سره. په څلورم فرمان سره د افغانستان لپاره سور بېرغ غوره شو، چې هغه د کمونزم نښه ګڼل کېدله. اتم لمبر فرمان په ټول ملک کې د ځمکو د وېش په اړه و، چې د هغه له مخې ځمکې درجه بندي شوې او د لومړۍ درجې اوبه ييزې ځمکې خاوند مجبور شو، چې له د ېرش جريب نه زيا ته ځمکه نورو ته پرېږدي. په هغه سربېره د ځمکو د وېش په بهير کې ماموړانو ځمکه وال د "فيوډال" په نامه سپکول. په دغه څپرکي کې ددغو فرمانونو په عملي اړخ باندې پوره رڼا اچول شوې ده. په دغه څپرکي کې د لويانو د ښځو په ګډون د ليک او لوست زده کړې په کورسونو کې د ګونديانو ناوړې او زورواک چلندونه هم بيان شوي، چې د پاڅونونو غټ عامل و.

د بندي توب او جزا په نامه څلورم څپرکی دی، چې اګسا د ضد انقلاب په نامه خپل مخالفان په کابل او نورو ښارونو او حکومتي مرکزونو کې

بندي كول او د محبس مامورانو د قانون په نشته والي كې هغو ته په خپل سر د مرګ تر سرحد پورې ډول ډول جزاګانې وركولې. په ځينو پوځي قطعو كې له مخالفو بندي افسرانو او د څرخي پله محبس او د كورنيو چارو وزارت د تهكاويو له بنديانو سره د چاروكو زيږ چلند په اوږد ډول بيان شوى. په دې اړه د اګسا د سروال اسدالله سروري او د څرخي پله محبس آمر سيد عبدالله چلند په خاص ډول كتل شوى دى.
پېنځم څپركى د حكومت په مقابل كې پاڅونونو ته ځانګړى شوى، چې د سره بيرغ له هسكولو نه وروسته په ټول ملك كې د حفيظ الله امين تر سروال كيدلو پورې وشول. په دغه څپركي كې د هرات لوى پاڅون، د دره صوف پاڅون، د كونړ، نورستان پاڅونونه، د كېرالې ټول وژنه، د اسمار غزني غونډ پېښه، د پلخمري پاڅون، د چنداول پاڅون او د بالاحصار غونډ پاڅون په خاص ډول بيان شوي دي. د امين د سروالى په وخت كې د ريښخورو په فرقه كې د تره كي پلوو خلقي افسرانو پاڅون هم چې زر وځپل شو، په لنډ ډول بيان شوى دى.
شپږم څپركي د تره كي، امين دښمني او د اندروپوف شيطانى په نامه په اصل كې د هغه اختلاف اوږد بيان دى، چې د هرات له پاڅون نه وروسته چې امين د لومړي وزير مقام ته هم هسك شو، په خلقي لويانو كې څرګند شو. د اګسا د سروال سروري په مخكښ توب يوې ډلې خلقي وزيرانو له امين سره د مخالفت لار ونيوله او د تره كي تر شا ودريدل، چې د هغه او امين ترمينځ د قدرت په سر دمخه حساسيت پيدا شوى و. په دغه حال كې د اګسا سر مشاور بوګدانوف سروري د امين پر ضد لمسوه. ك.ج.ب چې له اول نه پرچميان تر خلقيانو غوره بلل، له دغه اختلاف نه استفاده وكړه او سروري يې توطيو ته هڅوه، چې د سپتمبر د مياشتې په څوارلسمه په ارګ كې په امين او ملګرو باندې يې ډزې وشوې،

امین له دغې توطیې نه روغ ووت او تره کی بیا نه یواځې د نظام سروالي، بلکې خپل ژوند هم له لاسه ورکړ، او سروري او دده ملګرو ته په شوروي اتحاد کې پناه ورکړل شوه، چې هلته یې د ک.ج.ب په دستور له کارمل سره د امین پر ضد ملګرتوب پیل کړ.

اووم څپرکی د حفیظ الله امین سل ورځنۍ واکمنۍ ته ځانګړی شوی. د امین نوی حکومت هم یو ګوندي و، خو امین د ځینو اصلاحاتو په کولو سره د حکومت زیږه څېره نرمه کړه، چې ډېر مهم یې د اساسي قانون د کمیسیون ټاکل، د بندیانو وار په وار ازادول او د "قانونیت، عدالت او مصؤنیت" شعار اعلامول و، خو امین د دویم ځل لپاره د پرچمیانو په ځپلو پیل وکړ. په دغه مقصد، چې تنظیم یې له منځه یوسي. هغه په دې هم پیل وکړ، چې له ټولو علاقمنو هېوادونو په خاص ډول له پاکستان او امریکې سره انډولیز سیاست پرمخ بوځي، په عین حال کې چې له شوروي اتحاد سره به دوستي ته دوام ورکوي، خو شوروي اتحاد چې له اول نه له امین سره جوړ نه و، اوس اندېښمن شو چې افغانستان به د هغې په سروالي لویدیځ خوا ته واوړي او نور به د شوروي اتحاد تر نفوذ لاندې هېواد نه وي او په هغه سربېره له دغه هېواد نه به د هغه د منځنۍ اسیا جمهوریتونو ته خطر هم پېښ شي. شوروي اتحاد بیا په افغانستان باندې نظامي یرغل وکړ. امین یې وواژه او حکومت یې ورنسکور کړ او د کارمل په سروالۍ یې په کابل کې یو ګوډاګی حکومت په پښو ودروه. په دې ډول په افغانستان کې د افغان_ شوروي جنګ پېښ شو، چې څه باندې نهه کاله اوږد شو، چې لیدکونکي په یوه بل اثر کې د هغه بیان کړی دی.

## لومړی څپرکی

# د ثور کودتا

د ثور کودتا د سرطان تر کودتا نه هم ډېره اثرناکه ثابته شوه. په داسې حال کې چې محمد داود له خپلې کودتا نه دوه کاله وروسته خپل کودتايي حکومت قانوني کړ، د ثور کودتا لويانو خپل حکومت تر پايه پورې د يوه ګوندي طرز له مخې د اساسي قانون په نشته والي سره په خپلو حکمونوچلاوه. په نتيجه کې افغانستان نه يواځې د ژورو کړکېچونو هېواد شو، حکومت او واکمن ګوند هم د کړکېچونو په پنجو کې ګير شو. په دغه حال کې حکومت نه يواځې د ټولنې په له سره تنظيم کې پاتې راغی، چې د غه کار يې خپله اصلي موخه ښووله، حتی د دولتي نظام په تنظيم او ټينګښت کې هم پاتې راغی. واکمن ګوند هم له ولس نه بېګانه او ټوټې ټوټې شو. د حفيظ الله امين په سروالی خلقي حکومت، چې د خپل نظام په اړولو پيل وکړ، شوروي اتحاد هغه په نظامي يرغل سره له مېنځه يوړ او سيمه او نړۍ يې هم کړکېچنه کړه.

په دغه اثر کې د ثور کودتا او د شوروي يرغل ترمېنځ پېښې بيان شوي دي. تر هغه وروسته پېښې، د شوروي_افغان جګړې په نامه په بل اثر کې شرح شوي دي.

## د مير اکبر خيبر ترور

د نوي کال 1357 پيل او د پسرلي موسم و، د کابل ښآر خلک نور نو د ژمي د سړو له ويرې نه آزاد شوي او د مازيګر په مهال يوه خوا بله خوا په چکر وتل. د ښار د مکروريان په

او سېدونکيو کې د چکر وهلو احساس لا قوي و، مير اکبر خيبر )حسين خېل( چې د افغانستان د خلق دموکراتيک ګوند يو نوميالی مشر او په مارکسزم کې د خپلې پوهې په سبب په استاد يادېده، د حمل د مياشتې په 28مه له يوه بل ګوندي او شخصي ملګري، عبدالقدوس غوربندي سره د خپل مکروريان له اپارتمان نه د مازيګر په چکر ووت. هغسې چې خيبر نرم غږېده، هغسې هم ورو ورو په چکر روان شو. د زاړه مکروريان له پله نه دواړه واوښتل، تا به ويل چې له دغه پله نه تېرېدل د پښتواني روم د روبيکان له ويالې نه اوښتل دي، چې په دغه کار سره به بيا په روم کې ستر تحولات راتلل. د وزير اکبر خان مېنې د ګويټې انستيتوت ترڅنګه غوربندي له خيبر نه بېل شو او په تيمني واټ کې د خپل کور پر لور روان شو. خيبر ورو ورو خپله لار وهله او د ماښام د اوو بجو په شاوخوا کې د دولتي مطبعې شمالي خوا سړک ته ور سېد، هلته ناڅاپه د يوه روان جيپ له موټر نه ګولۍ پرې واورېدلې او ځای پرځای مړ شو. دغه مهال د 1357 کال د حمل د مياشتې اته ويشتمې ورځ ماښام و.

په افغانستان کې سياسي ترور نوی رواج مو ندلی و، ترور په اصل کې د ښي او کيڼ لاسو افراطي سياسي ګوندونو کار و. د خيبر له ترور نه دمخه د محمد داود د حکومت د پلان وزير علي احمد خرم د مرجان نومي له خوا د هغه له رسمي دفتر نه د توپنکچې په زور ووېستل شو او بيا په بازار کې په رڼا ورځ ترور يا ووژل شو. تر هغه لا دمخه په پاچايي رجيم کې د ګ هيځ جريدې چلوونکی منهاج الدين ګهيځ په خپل کور کې په ګذرګاه کې د يوه ثقه راوي په وينا د يوه غير ګوندي چپي انقلابي له خوا تررو شوی و. په کابل کې بل غټ ترور د هوايي پيلوټ انعام الحق ګران و، چې په غالب احتمال د ببرک کارمل په ګومان له مينځه وړل شوی و. دوی دواړه د مکروريان په

یوه بلاک کې اوسېدل. د خیبر تر ترور کېدلو
پورې یو شمېر ګوندي غړي د هېواد په ډېرو برخو
کې هم ترور شوي وو. په افغانستان کې که څه هم
له زور نه کار اخیستل او وژل یو اشنا عمل و،
سیاسي ترور رواج نه لاره. د امیر عبدالرحمن
دورې له پیل نه تر دغه وخته پورې د پاچا امان
الله او پاچا محمد ظاهر د قانوني پاچایي له دورو
نه پرته، د مطلقو حکومتونو په وخت کې وژنه د
رسمي سیاست یوه برخه وه، خو د ګهیځ، خرم او
خیبر ترور د عصري ښاري ترورونو بڼه لرله او
هغه د نورو سیاستونو او پروګرامونو باندنۍ
علامه ګڼل کېدله، نو د خیبر له ترور نه وروسته
انتظار دا و، چې نور به څه کېږي؟ د خیبر د
ترور خبر په ښار کې د برېښنا په څېر ګړندی
خپور شو، څنګه چې دی لوی ګوندي شخص و، د
افغانستان د خلق دموکراتیک ګوند یې د ښخولو
دنده په غاړه واخیسته او له هغه نه یې یوه
غټه ننداره جوړه کړه.
د ترور په سبا د ګوند په زرګونو غړي د
هېواد له ښارونو نه کابل ته ورسېدل، عصري
ترانسپورتي وسیلو چې غېر حکومتي بڼه یې غټه
برخه وه، د خلکو انتقال په لنډ وخت کې ممکن
کړی و. غرنی او پراخ افغانستان د لومړي ځل
لپاره په خپل اوږده تاریخ کې د تګ راتګ په
ګړندي عصر کې داخل شوی و، واټن نور نو چندان
مانا نه لرله او د خیبر د جنازې لپاره
ګوندیان شپه په مېنځ کې له اطراف نه کابل ته
رسېدلي وو. د خیبر جنازه د اټکل شلو زرو کسو
په ګډون د منظمو قطارونو په سر کې له زاړه
مکروریان نه د پل خشتي له لارې د شهدای صالحین
هدیرې ته یووړل شوه. په لار کې د امریکې سفارت
په مخ کې لکه هسې چې د کمونستانو په منځ کې
رواج و، د امپیریلزم پر ضد شعارونه واورول
شول. د شهدای صالحین په هدیره کې د خیبر د
قبر په سر څو ګوندي لویانو وینا وې وکړې او

حکومت او ارتجاعي قوتونه يې په دغه ډول ياد کړل، چې د غه ترور به ګواکې د دوی په لمسون شوی وي. په بله ورځ د شاه دو شمشېره په لوی جوماتکې فاتحه هم پوره سياسي وه، نه فاميلي. فاتحې ته نه يواځې ګوندیان، بلکې د خيبر غېر ګوندي دوستان هم ورغلي وو. وروسته اورېدل کېدل، چې ګوند له حکومت سره مقابله غواړي.

## د مير اکبر خيبر وژونکي

د خيبر وژونکی يا وژونکي تراوسه هم په يقين سره معلوم شوي نه دي، وارثانو يې نه څوک تورن کړ او نه يې حکومت ته عرض وکړ، خو ګوندي لويانو،لکه څنګه چې وويل شول، د حکومت "ارتجاعي قوتونه" تورن کړل او حکومت ته يې په دغه ډول خبرداری ورکړ. داسې ښکارېده، چې ګوند حکومت او اخوانيان ددغه ترور مسؤول بلل. وروسته چې دولتي واک ددغه ګوند په لاس ورغی، د کورنيو چارو وزير نور احمد نور د راپور له مخې داکتر کريم مشهور په کريم کُپ او د هغه اووه تنه ملګري په همدغه تور ونيول او بې له محاکمې نه اعدام شول. کريم کپ په کابل کې د اسلامي حزب د عملياتي ډلې مشر و.

د مير اکبر خيبر قاتل چا يو څوک او چا بل څوک ښودلی، خو دغه وژنه د پرچم ګوندګي يوه خپلمنځي موضوع وه. خيبر په اصل کې د خپل سياسي نظر او د پرچم په ګوندګي کې دننه د مشرتوب د سيالۍ قرباني شوی دی. خيبر په دې فکر نه و، چې د محمد داود حکومت دې په کودتا سره نسکور شي، دده په فکر کې که ګوند حکومت نسکور هم کړي، خلک يې حکومت نه مني او هېواد به له خطر سره مخامخ شي. هغه د خپل ترور کېدلو نه دمخه د يوې پوښتنې په ځواب کې ويلي و، چې" من هرګز طرفدار کودتا نميباشم، فعلاً مبارزه پارلمانی و بعداً انقلاب سياسی." سپارښتنه يې دا وه، چې "طرفداران سوشلزم بايد

از چوکات و اصول د ست دا شته خود خارج نشویم. در افغانستان فعلاً سیستم نیمه فیودالی بر قرار میباشد و جامعه ما یک جامعه مذهبی بوده و نود و پنج فیصد بیسواد داریم. صنعت وجود ندارد، سیستم زراعتی ما بشکل بدوی بوده انقلاب را باید کارگران (و) دهقانان براه اندازد. من طرفدار کودتاهای نظامی نمیباشم.»[1]"

خیبر د محمد داود له حکومت سره په همکارۍ معتقد و، خو نور پرچمیان په تېره ببرک کارمل له دغه نظر سره مخالف وو. د دوی په فکر ځنګه چې محمد داود د موسی شفیق په شان په دې لټه کې شوی و، چې افغانستان له لویدیځو هېوادونو په تېره له پاکستان او ایران او داسې هم له عربي هېوادونو سره نزدې او له شوروي اتحاد نه لیرې کړي، باید د هغه پر ضد یو څه وشي. په اصل کې د دوی د همدغې اندېښنې له امله و، چې د خلق او پرچم ګوندګي د 1357 کال د سرطان په میاشت کې له لس کاله بېلتون او مخالفت نه وروسته د شوروي اتحاد په دستور سره بېرته یو موټی شول، خو دغه یو موټی والی فرمایشي او میخانیکي و. نور محمد تره کي چې د خلقي ګوندګي مشر و، خپلو هغو ګوندیانو ته چې له دغه کار سره جوړ نه وو، ویل چې دا د شوروي اتحاد د کمونست ګوند دستور و. د ایران د تودې ګوند مشر احمد کیانوري هم په دغه کار کې رول درلود او په کابل کې یې دغه ماموریت سرته رسولی و. د ایران د تودې ګوند هم د مسکو پر لار روان یو کمونستي ګوند و، خو کارمل له دغه بیا یو موټی والي سره تعلل کاوه، په داسې حال کې چې خیبر د هغه ټینګ پلوی و او په کارمل باندې یې فشار راوړ، چې له تعلل نه لاس واخلي، که څه هم دی په خپله به د یو ځای شوي ګوند په پولټبورو یا سیاسي دفتر کې غړی نه وي، چې هغه تر ټولو لوړ ګوندي رکن دی. د دوی ترمېنځ د اختلاف غټه موضوع شاید له دې امله وه، چې خیبر

نېشنلست ګوندي او کارمل انټرنېشنلست ګوندي و، په دې مانا چې لومړي واک ته رسېدل د افغانانو له لارې غوښتل او وروستي د شوریانو په مرسته. د غه اختلاف تر دې حده رسېدلی و، چې خیبر د خپل ترور په ماښام غوربندي ته ویلي و، چې "من میگویم که تکتیک و ستراتیجی سیاسی حزب ما بر اساس تقدم خواست های ملی و اجتماعی وطن خود ما اتخاذ گردد و کارمل برعکس پافشاری دارد خود را انترنیشنلست و مرا ناسیونالست تنگ نظر معرفی میکند و بصورت شرم اور اینجا و انجا راپور میدهد."[2] له "اینجا و انجا" څخه به د هغه مطلب شورویان وو. کارمل فکر کاوه، چې څنګه چې دی په اصل کې د پرچم د واړه ګوندکي سروال دی، د شوروي اتحاد له مرستې پرته اعلی واک ته نشي رسېدلی، له همدې امله به و، چې د پرچم ګوندکی شوروي اتحاد ته بیخي ډېر وفادار و او د کارمل ونډه په دې کې، چې هغه شوروي اتحاد ته د اعتبار وړ وګرځوي، ډېره وه. خیبر لا په دې نظر و چې "وی ]کارمل[ مطلق یک ایجنت است و میخواهد افغانستان را دو دسته تقدیم روس ها کند."[3]

کارمل او خیبر په اخلاقي لحاظ هم سره وران و، د یوه اعتبار وړ پرچمي یا پخواني پرچمي د خولې خبرې دي، چې کارمل د خپل یوه ګوندي په کور کې په داسې حال کې، چې کوربه د زیات الکول د راوړلو لپاره بېرون تللی و، د هغه په ماینې لاس اچولی و او خیبر د هغې د چیغو په اوریدلو سره ځان ورته رسولی او کارمل یې په څپېړه وهلی او ورته ویلي و، چې "ته هم د افغانانو د مشرتوب ادعا کوې او هم دغسې بې حیایي کوې." د همدغو اختلافونو له امله او دا چې خیبر د خپل متواضع شخصیت او مارکسستي پوهې په سبب په ګوندکي ډېر پلویان لرل، د دواړو ګوندکیو له یو موټي والي نه وروسته په پرچمیانو کې دغسې میل پیدا شوی و، چې له

کارمل نه ناراضي پرچمیان د تره کي خوا ته اوښتل.
عطا محمد شېرزی لیکي: "در جریان این وحدت عده ای از اعضای رهبری حزب پرچم که روابط شان با ببرک کارمل بوخامت گرائیده بود، خود را بیش تر با تره کي و رهبری خلقی ها نزدیک ساختند و این امر ببرک کارمل را در هراس انداخت."[4]
د شېرزي له لیکنې نه ښکاري، چې میر اکبر خیبر دد غه میل مخکښ و او د کارمل پر ضد یې د پرچم په ګوندګي کې مبارزه پیل کړې وه. "میر اکبر که از فساد اخلاقی، شراب خوری و استفاده جویی و همچنین گرایش های نفی سیاسی ببرک کارمل به ستوه امده بود، مبارزه درونی را بر ضد ببرک کارمل اغاز کرده بود. ببرک کارمل که از نفوذ و دانش میر اکبر در هراس بود، نمیخواست که میر اکبر خیبر به نور محمد تره کی بسیار نزدیک شود و قبل از امضاء سند وحدت نور احمد نور را بمنزل میر اکبر خیبر فرستاد تا امکان بازدید و مفاهمه با میر اکبر خیبر را میسر سازد ولی میر اکبر خیبر به نور احمد نور گفت که ملاقات من با ببرک کارمل بجز از جلسات کمیته مرکزی حزب در موارد دیگر تحت یک سقف واحد برای همیشه ناممکن میباشد."[5] خیبر هم غوربندي ته د نور احمد نور په مخ کې ویلي و، چې "ما [کارمل و خیبر] روی کدام مسئله شخصی هیچگونه اختلافی نداریم که جهت رفع آن بکدام خانه مهمان شویم و رفع کدورت کنیم. اختلاف ما جنبه سیاسی دارد و باید در جلسات زیر سقف کمیته مرکزی حل گردد و من حاضرم در انجا طبق نورم های حزبی با کارمل تصفیه حساب کنم."[6] کارمل چې په دغه ډول له خیبر سره له پخلا کېدلو نه ناهیلی شو، په یوې خصوصي غونډې کې خپلو نزدې ملګرو ته د پرچمي توب د ساتلو توصیه وکړه. بیا هم شیرزی: "همان بود که بعد

از امضای [سند] وحدت ببرک کارمل تمام امضا کنندگان جناح خود را به استثنی میر اکبر خیبر دعوت نمود تا در منزل نور احمد نور با هم ملاقات نمایند و در این ملاقات ببرک کارمل به اعضای کمیته مرکزی جناح خود توصیه نمود که باوجود وحدت با خلقی ها باید نزدیکی و تماس خاص و نزدیک بین خود را فراموش نکنند و خصوصیت پرچمی بودن خود را باوجودیکه مغایر یکی از مواد سند وحدت بشمار میرود، حفظ نمایند."[7]

خو دغه پټه غونډه پټه پاتې نه شوه، عبدالقدوس غوربندي، نجيب الله او سرور يورش خيبر پرې خبر کړ. ځنګه چې خيبر د مرکزي کمېټې د څارنې او کنټرول مسؤل و، له غوربندي او يورش نه يې په دې اړه ليکلي راپورو نه ترلاسه کړل، چې د ګوند عمومي منشي نور محمد تره کي پرې خبر کړي. تره کي په ټيلفون سره په دې اړه په نهو بجو له خيبر سره په ګډه د تصميم نيولو لپاره وخت وټاکه، خو خيبر د همدغې شپې په ماښام ترور شو.[8]

خيبر له وژل کېدلو نه دمخه په وژل کېدلو ترټل شوی و، هغه د غوربندي په مخ کې نور احمد نور ته ويلي و، چې "کارمل مرا بمرگ تهديد کرده، برايش از طرف من بگوئيد که من از مرگ نميترسم."[9] خيبر د نور احمد نور په مخ کې غوربندي ته هم په ټينګه ويلي و، چې "کارمل را مستقيماً و صراحتاً بوسيله کس ديگری هشدار داده و تهديد بمرگ کرده است."[10] دستګير پنجشيری هم د محمد حسن بارق شفيعي او سليمان لايق له خولې نه وايي، چې "در همان روز ها پيام تهديد آميز ببرک کارمل بوسيله نور احمد نور به خيبر ابلاغ گرديده بود تا از مشی انحلال طلبانه خود صرف نظر کند."[11] د خيبر پر ضد د کارمل د مخالفت بله نښه دا وه، چې له هغه نه يې د پرچم د ګوندکي د نظامي رابطې امتياز واخيست.

غوربندی لیکي: "سازمان نظامی حزب را که بحیث یک شخصیت محبوب و قابل اعتماد برای افسران سالها سرپرستی نموده بود، به بهانه های مختلف و منجمله اینکه گویا شما تحت تعقیب قرار دارید از ایشان گرفتند و به نور احمد نور تفویض نمودند." (12) پر هغه سربېره کارمل او ملګرو یې هڅه کوله، چې خیبر له خپلو ګوندي ملګرو نه ګوښه کړي. بیا هم د غوربندي په وینا: "کارمل و اعوانش سعی داشتند تا خیبر را بکلی تجرید نموده از هرگونه تماس اعضای حزب با استاد [خیبر] جلوگیری نمایند" ددغه منظور لپاره هغو "بدور خانه او یکنوع محاصره ایجاد کرده بودند... کادرهائیکه برای اجرای پاره امور بکابل می آمدند و اکثراً بطور سنتی قبل از بازگشت از ملاقات و صحبت های استاد کسب فیض میکردند دیگر اجازه نداشتند دیدنش بروند. نور احمد نور که در تشکیلات کار میکرد و وسیع ترین تماس و ارتباط را با کادرهای مرکز و ولایات داشت و اخلاصمندان خیبر را نیز می شناخت در تجرید استاد نقش عمده را ایفا میکرد." (13)

په دې ډول له خیبر سره د کارمل مخالفت د دښمنۍ تر سرحده پورې رسېدلی او د غومره پیاوړی شوی و، چې څه وخت کارمل د شوروي پوځ له خوا په کابل کې د واک په ګدۍ کېنول شو، هم د غه دښمني هېره کړې نه وه. کارمل په خپل پېنځه کلنۍ بېواکې واکمنۍ کې خیبر د ګوند د یوه نومیالي غړي په توګه یاد نه کړ، په داسې حال کې چې د پرچم غوندې رجیمونو کې د سرګوندیان په تېره هغوی، چې په دغې لار کې یې ژوند له لاسه ورکړی وي، لږ تر لږه په هرې سیاسي او اجتماعي موقع کې په غېر عادي ډول ستایل کېږي. حقیقت دا دی، چې خیبر دخپل ترور کېدلو په وخت کې له کارمل نه پرته دغسې دښمن نه درلوده، چې نشتوالی یې د هغه په ګټه وي. کارمل دمخه هم خپل دوه نومیالي حریفان میر غلام محمد غبار او

علي محمد زهما له ګوند نه په وتلو مجبور کړي و.[14] کارمل وروسته حفیظ الله امین د شوروي اتحاد په پوځ سره له مېنځه یووړ او له نجیب الله سره یې، چې کارمل پرځای واک ته راوستل شو، دښمني پیل کړه.

څنګه چې د خیبر وژونکي نیول شوي نه دي، د ترور په هکله لا سوندونه هم ترلاسه شوي نه دي، نو په دې اړه ډول ډول او حېرانوونکي حکمونه شوي دي، حتی حفیظ الله امین هم پکې دخیل ښوول شوی دی، خو هېڅ یو حکم ددغې شرح پر بنا شو نه دی لکه دلته چې د نویو او ډول ډول سرچینو له مخې شرح شوی دی. په دغې شرح کې د خیبر په قتل کې د ترور ګوته کارمل ته نیول کېږي. غني ساپي سره له دې، چې د پرچم ګوندګي غړی و او بیا ترېنه ووت، د کارمل نوم په مشخص ډول یادوي او وایي چې: "برخی از حلقات میگفت که مرتکب آن [قتل خیبر] ببرک کارمل است زیرا خیبر در جناح پرچم یک عضو مهم و... رقیب جانشین کارمل محسوب میشد."[15] البته کارمل دغه ترور په خپله نه دی کړی. که د پنجشیري دغه لیکنه رښتیا وي، کارمل به د خیبر د ترور په وخت کې د ګوند د پولټبورو په هغې غونډې کې ګډون کړی وي، چې ددغه ترور په ماښام د نور محمد تره کي په کور کې شوې وه[16]. نو کارمل به د خیبر د ترور لپاره جلادان مامور کړي وي لکه د یوې مافیا د مشر په شان، چې په خپله یې په یوه واده کې د نکاح پلار په شان وظیفه اجرا کوله او ګومارل شوي جلاد یې په هماغه مهال په یوې بلې سیمې کې د هغه یو حریف ترور کړ. په دغه حال کې به دغه روایت رښتیا وي، چې وایي نور احمد نور او امتیاز حسن د حمل د میاشتې په 28مه، 1357/اپریل 17، 1978 د ماښام په مهال له یوه روان جیپ نه په میر اکبر خیبر باندې ګولۍ واورولې او ویې واژه. نور احمد نور له اول نه ترپایه پورې د کارمل تېډنګ ملګری او امتیاز

حسن د کارمل شخصي ساتونکی و، چې بیا د معدنونو د وزارت مرستیال وټاکل شو.

زه لا په 1990 کې یانې هغه وخت، چې پورته یاد شوي اثرو نه راوتلي نه وو، په دې اړه په لږ توپیر سره همدغې نتیجې ته رسېدلی وم. په هغه وخت کې د افغانستان، د شوروي یرغل او افغانانو ځواب نومي انګرېزي اثر کیې راوړي وو، چې "زه د قرینو په استناد او نورو آثارو له مخې د غې نتیجې ته رسېدلی یم، چې د غه وژنه د ک.ج.ب په دستور د کارمل او نور احمد نور د جلادانو په واسطه عملي شوې ده.)17(" خو اوس مولف شاه محمود حصین وايي، چې په دغه قتل کې کارملیانو د شوروي سفارت د یوه "هر کاره او باصلاحیت" مامور پښه له قصده دخیله کړې او دوی وروسته له هغه دغه ډول تبلیغ پیل کړ، چې اوبلوف د میخائیل ګورباچوف د حکومت د نوي سیاست له مخې د کارمل په مقابل کې د نجیب الله خوا ونیوله. د حصین په نظر کارمل د خیبر له ترور نه دوه موخې لرلې: "برداشتن حریفی که با شهرت روز افزون داشت جای کارمل را میگرفت و تحریک قبل از وقت نیروهای چپ علیه [محمد] داود و [گرفتن] انتقام آنچه با گروه او کرده بود.)18("

## د حکومت ځواب

د خیبر د جنازې چارې او په ګور باندې یې د ګوندي لویانو اخطار د حکومت لپاره یو ډول برالا چیلنج و. حکومت یو کال دمخه تر هغه د جزا قانون په اصل کې د چپیانو او خراب کارو د ځپلو لپاره ابستلی و. حکومت ته اوس معلومه شوه، چې د خلق دموکراتیک ګوند، چې له یوې شپې او ورځ نه په لنډه موده کې خپل غړي له ټول ملک نه میدان ته ابستلي او د جزا قانون ماتولی شي، تر دې لا هم غټ کارونه کولی او

عامه امنیت له خطر سره مخامخ کولی شي او که د جزا قانون په رښتیا قانون وي، باید پر هغه باندې عمل وشي. نوولسمشر محمد داود د عدلیې وزیر او لوی څارنوال وفي الله سمیعي ته هدایت ورکړ، چې معلومه کړي، چې د خلق دموکراتیک ګوند وروستي کارونه د قانون له نظر نه د تعقیب وړ دي او که نه؟ څارنوال له یو څو ورځو وروسته ولسمشر ته د "هو" ځواب ورکړ.

د یادولو وړ ده، چې محمد داود تر دغه وخته په دې اړه د خپلو ځینو مشاورینو سپارښتنې نه منلې. د هغوی مشورې دا وې، چې د خلق دموکراتیک ګوند لویان د قدرت نیولو لپاره تیاری نیسي او شاید کودتا وکړي. په دې اړه د خوست لوی ولسوال محمد ولي تر نورو ډېر ټینګار کاوه. هغه د همدغه مقصد لپاره په کابل کې حکومتي لویان د محمد داود په ګډون څو ځلې لیدلي او د مؤلف ستانیزي په مخ کې یې د کورنیو چارو وزیر عبدالقدیر نورستاني ته ویلي و، چې "من بارها به سردار صاحب گفته ام که پرچمی ها و خلقی ها وطن را برباد میکنند و کنون علنی به فعالیت خود ادامه میدهند." دی خپلې خبرې په دې ډول اوږدوي: "من یک روز به سردار صاحب [محمد داود] موضوع را جدی مطرح کردم اما حیدر رسولی [وزیر دفاع] بالای من قهر شده و گفت شما ذهنیت رهبر را مغشوش میسازید. هیچ قدرت و نیرو نیست که رژیم موجود را سرنگول سازد." هغه دا هم ویلي و، چې "تعداد خلقی ها در اردو در ظرف دو سال گذشته رو با افزایش رفته است."[19] جورنلست ستانیزی د ځینو لوړ پوړو چارواکیو او ګوندیانو نظرونه د کودتا په درشل کې په خپل اثر "سهل انګاري محمد داود خان و کودتای ثور" کې په اوږده او څرګند ډول راوړي دي. د هغو محوري ټکی دا دی، چې د خلق دموکراتیک ګوند په پوځ کې نفوذ او د حکومت پرضد د عمل کولو نیت لري، خو د ملي

دفاع وزیر غلام حیدر رسولي ولسمشر محمد داود ته ډاډ ورکوي، چې پوځ په ټینګه د هغه او د حکومت پر خوا ولاړ دی. دد غه نظر له مخې به وي، چې حکومت په سر کې د ګوند ځرګند ملکي لویان ونیول او بیا یې د نظامي ګوندیانو د نیولو امر ورکړ، چې عملي نه شو.

د ثور په پېنځمه شپه اتو عملیاتي ډلو، چې هره یوه یې له افسرانو او څارندویانو نه جوړه وه، د کورنیو چارو وزارت د امنیې د عمومي قومندان، د کابل والي، لوی څارنوال او نورو په هدایت د افغانستان خلق د موکراتیک ګوند دلویانو په نیولو پیل وکړ. لوی قومندان صدیق واحدي ټولو عملیاتي ډلو ته هدایت ورکړی و، چې د هغو نیول باید په اغېزمنه توګه وي او "بدون اعضای فامیل هر شخص بیګانه ایکه بنام مهمان در خانه مطلوب باشد، دستګیر شود. اسلحه، کتب و اسناد حزبی و پول زیادتر از مصرف خانه نیز مواخذه ګردد." څارندویانو نور محمد تره کی، ببرک کارمل، شاه ولي، عبدالحکیم شرعي جوزجانی، دستګیر پنجشیری، په خپلو کورنو کې بې له کوم مشکل نه ونیول او د کابل ولایت په توقیف خانه کې یې، چې له خټو نه جوړې وې کوټې یې لرلې، واچول. د سهار په مهال یې سلیمان لایق او محمد حسن بارق شفیعي هم ونیول. په دوی کې محمد حسن ضمیر ساپی هم و، چې په غلطه نیول شوی و. هغه د ګوند عادي غړی و. اتم عملیاتي ګروپ، چې د شاه ولي له نیولو نه فارغ شو، د شپې ناوخته د حفیظ الله امین په نیولو هم وګومارل شو. د حفیظ الله امین کور د خوشحال مېنې په لومړۍ برخه کې و او د هغه د نیولو د ګروپ قومندان عبدالغني ساپی عمرزی و. عمرزي د ګوندي لویانو د نیولو او د ثور د کودتا پېښې لیکلي، چې بیا یې د "شب های کابل" په نامه وروسته چاپ کړي دي.

عمرزي د خپل اثر لومړۍ لیکنه، چې ماته یې

په 1987 کال له پلچرخي نه له وتلو وروسته راکړې وه، د هغه تر چاپ شوي کتاب نه مهمه ده، په دې چې هغه لږ څه اوږده ده او پکې یو څه سپین ګړېدلی دی. غني ساپی چې په اصل کې د لغمان او زما دوست او د پرچم ګوندګي پټ غړی و او وروسته ترینه ووت، د اتم لمبر عملیاتي ګروپ په قومندانی د سه شنبې په نیمه شپه د شاه ولي له نیولو نه ورووسته له څلورو افسرانو او شلو تنو څارندویانو سره د حفیظ الله امین د نیولو لپاره خوشحال مېنې ته ورسېد. امین، چې د هغو په ورتګ خبر شو، سمله لاسه یې د نظامي تشکیل لست خپلې مېرمنې پتمنۍ ته ورکړ، چې د پولیسو لاس ته ورنشي او نظامي ګوندي ملګري یې له خطر نه بچ شي. همدغسې هم وشول، امین بیا په سړه سینه د ګروپ له قومندان سره، چې ورسره اشنا و، مخامخ شو. قومندان او ملګرو یې وروسته له هغه چې امین یې له موضوع نه خبر کړ، د کور په لټولو پیل وکړ. یو شمېر کتابونه، ګوندي خپرونې، یو میل توپنګچه، اووه دانې کارتوسونه او یو لک او څلوېښت زره افغانۍ هغو ته په لاس ورغلې او په درېبوجیو کې واچول شوې، خو امین د پېسو په سر له هغو سره دعوه شروع کړه او ادعا یې وکړه، چې هغه نغدې پیسې، چې هغه د آبادۍ لپاره پیدا کړې وې، یو لک او اتیا زره وې. قومندان غني ورته وویل، چې دی کولی شي دوی ټول ولټوي. امین همدغسې وکړل، خو ادعا یې سمه ونه ختله. بیا یې څلور زره افغانۍ د کورنۍ د لګښت لپاره بېرته وغوښتلې، چې ورته ورکړل شوې. د کور د لټولو په وخت کې امین د پولیسو په مخ کې له خپل لاسي ډیپلومات ډول بکس نه یوه ټوټه کاغذ وایست او په خوله کې یې واچوه او د ډوډۍ په شان یې تېر کړ. هغو پرې اعتراض وکړ، خو هغه په سړه سینه وویل چې "هغه بل څه نه، بلکې یواځې یو شخصي لیک و." پولیس مشکوک او

جدي شول، چې هغه به په دې ډول کوم مهم سند له منځه وړی وي، خو قومندان غني په بل فکر و: "من که ظاهراً از این وضع ناخشنود بودم، قلباً خوش شدم. بآین عقیده بودم که [آن] کدام ورق تشکیلاتی حزبی بود. شاید شهرت رفقای برجسته حزبی یا کدام سند مهم حزبی بوده باشد."

امین د کور لټولو په جریان کې نوک اخیستونکی په لاس لاره او په پرله پسې ډول یې خپل نوکان اخیستل. داسې بریښېده، چې دې په همدغه وخت کې د کوم تجویز په اړه سوچ کوي. له قومندان غني نه یې دوه غوښتنې وکړې: یوه دا چې پولیسان دې په هغې کوټې کې نه ننوځي، چې ښځې او ماشومان پکې ویده دي. بله دا چې دی دې همدغه اوس بندي خانې ته بو نه تلل شي، بلکې سبا په اتو بجو دې حاضر کړل شي، چې "دریشی و لباس هایم را گرفته بعد از تنظیم خرچ خانه تا به ساعت 8 صبح همراه مامور سمت بقوماندانی حاضر می شوم." قومندان غني ورته وویل، چې "خواهش اول شما را اکنون به صلاحیت خود پذیرفتم به شرط آنکه صرف خودم باتفاق شما یا پسرتان با احتیاط تام که اطفال شما از خواب بیدار هم نه شوند، باصطلاح یک کله کشک نمایم." امین د غه تجویز په خوښی سره ومانه او قومندان غني له وره نه د خوب کوټه ولیدله او ورته ښرګنده شوه، چې هلته د هغه له خپلې نه سربېره د هغه مشر ورور عبدالله امین هم په غالب احتمال له خپلې مایني او وړو سره ویده پروت دی.

د امین د دویمې غوښتنې په اړه قومندان غني له کور نه دباندې د مخابرې د آلې په وسیله د امنیت له لوی قومندان نه هدایت وغوښته. دی لیکي، چې: "با او طوری حرف زدم که باید حتماً اجازه قومندان را حاصل نمایم. از اینکه قومندان امنیه هم در این ناوقت شب خسته و سرگیچ شده بود، هر چه گفتم قبول کرد، ولی گفت من باید با قبول مسؤلیت این کار را انجام

دهم. بخانه برگشتم و با امین بخنده گفتم که همه خواهشات شما را قبول خواهم کرد، بشرط آنکه مرا در مسؤلیت نگذارید. گفت خاطر جمع باشید من گریزی نیستم که شمارا در مسؤلیت بگذارم." دا وخت د کور لټول پای ته رسېدلي و. څنګه چې د امین کور د شاه ولي د کور په څېر ډېر څه نه لرل، پلټل يې ډېر وخت ونه نیوه. د شاه ولي کور چې د غني په قول "به بهترین دیکوریشن (زینت) فرش شده بود" دغسې یوه تهکاوي هم لرله، چې "انبار های برنج قسما قسم، یک بیلر 200 لیتره پر از روغن زرد، یک بیلر 200 لیتره پر از روغن نباتی، بهمین قسم انواع جبوبات از قبیل لوبیا، نخود، نسک، ماش وغیره مواد خوراکی از قبیل قروت، کچالو، ماش و پیاز وغیره به جوالها موجود بود." د غني د لیکنې له مخې "دوکتور موصوف پسر یک نفر حاجی متحول و برادرزاده یکنفر تاجر قاچاق بر است، تاجری بنام شاه محمد لنگ کاکای دکتور از قاچاقبران شریک خاندان شاهی بوده است."

ښار ندویان د نژدې دوه ګړۍ لټون نه وروسته د سهار په درې بجو د امین له کوره ووتل او تر هغه دمخه يې د سمت ښار ندویان وګومارل، چې د سهار تر اتو بجو پورې امین او د هغه کور وڅاري. یواځې امین پرې نه ږدي، چې له کور څخه ووځي، خو د کورنۍ له نورو غړیو سره غرض و نه لري.

## د امین د کودتا نقشه

حفیظ الله امین په دې ډول د سهار له درې بجو نه د غني ساپي په وینا تر اتو بجو پورې پېنځه ساعته او د خلقي رژیم د کالنۍ له مخې تر لسو بجو پورې اووه ساعته وخت لاره، چې په خپل نوښت او فکر یو څه وکړي. داسې ښکاري چې چارواکي د امین په هغه رول خبر نه وو، چې د ګوند په

نظامي برخه کې يې لاره، که څه هم د خوست ولسوال محمد ولي د کورنيو چارو وزير عبدالقدير نورستاني ته ويلي و، چې "در بين خلقي ها حفيظ الله امين زيرک و هوشيار بوده و صاحبمنصبان اردو توسط او جذب شده است.[20]" په ګوند کې د امين اهميت په اصل کې په دې کې و، چې لکه دمخه ويل شوي، دی د خلقي ګوندګي د نظامي څانګې آمر و. په اول سر کې صالح محمد زيری او عبدالکريم ميثاق هم ورسره په نظامي کمېټې کې شريک وو، خو هغوی له ډاره د غه دنده پرېښوده. ټول خلقي افسران د خلقي حکومت د اطلاعاتو او کلتور وزير خيال محمد کټوازي په وينا د ديارلسو او څوارلسو تنو ترمېنځ او د دفاع وزارت د سياسي آمر اقبال وزيري په وينا د نولسو په شاوخوا کې وو. دوی، چې زياتره يې په کابل او شاوخوا کې په پوځي واحدونو کې وو، د څو رابطو غړيو له لارې له امين سره تړلي وو. په خپله وزيري د 180 افسرانو او کټوازی د شاوخوا 250 افسرانو ارتباطي غړی و. په دې ډول د ټولو خلقي افسرانو د ګونديتوب راز له امين سره و. د کټوازي په وينا د پرچمي نظامي افسرانو شمېر د درې سوو او څلور سوو ترمېنځ و، خو امين که څه هم په بيا يو موټي شوي ګوند کې مهم شخص و، د پولټبورو يا سياسي دفتر غړيتوب يې نه لاره او د نورو ګوندي لويانو په شان يې د خيبر د ګور له پاسه وينا هم کړې نه وه، چې حکومت ور ته متوجه شوی وي. په هغه سربېره څنګه چې امين په ګوند کې تېدنګ مخالفان لرل او هغو ورپسې ډېر پروپاګنډ کاوه، چارواکو به فکر کړی وي، چې هغه په ګوند کې مهم شخص نه دی. په دغو ټولو سربېره امين د محمد داود د حکومت په مخالفت هم اواز جګ کړی نه و. هغه لا د کټواز په وينا برالا ويل، چې "مونږ له رهبر نه دفاع کوو." له همدې امله به وي، چې امين تر ټولو وروسته

ونیول شو او د هغه د کور په لټولو کې هم خاص جدي توب ونه ښوول شو او حتی د امنیې لوی قومندان هم ورسره سخته ونه نیوله، خو امین په بیا یو ځای شوي ګوند کې د ګوندي مخالفانو له خوا تر فشار لاندې و. هغوی د هغه په قدرت پوه وو او ترېنه وېرېدل. دوی د ګوند په عمومي منشي نور محمد تره کي باندې فشار راوړ، چې د پرچم او خلق د ګوندګیو نظامي برخې دې هم سره یو شي، خو امین دغه کار ته حاضر نه و. مخالفانو بیا له تره کي نه وغوښتل، چې امین د نظامي څانګې له سروالۍ نه خلاص شي، تره کي په دې اړه یوه میاشت وخت وغوښته، چې بیا به په دې هکله کومه اساسي پرېکړه وشي.

مهمه دا ده، چې امین خپل خلقي افسران، چې زیاتره یې پښتانه وو او د پښتنو شمېر په پوځ کې د نورو قومونو په پرتله ډېر وو، په مهارت سره تر خپل تاثیر لاندې راوستلي وو او دغو افسرانو له هغه وخت نه، چې محمد داود له هغو وعدو نه، چې خلکو ته یې په خطاب کې ورکړې وې، اوښتی و او په دې یې پیل وکړ چې افغانستان له شوروي بلاک نه لېرې او عربي او غربي نړۍ سره نږدې کړي، په تره کي او امین باندې فشار راوړ، چې دوی ته د حکومت د نسکورولو اجازه ورکړي. دوی د همدغه مقصد لپاره یو وخت بل وخت د نظامي تمرینونو په ترسره کولو کې ځانونه ښه رسولي او د تجربو او مهارت خاوندان کړي وو. د دوی د ډاډینې له مخې و، چې امین په 1976/1355 کې خپلو لویانو ته ویلي وو، چې خلقي افسران ددې توان لري، چې حکومت نسکور او دولتي واک ترلاسه کړي، خو د خیبر په څېر له دوی سره هم دغه اندېښنه وه، چې حکومت ړنګول اسان او حکومت کول ګران دي، ځکه چې افغانان د دوی حکومت نه مني. حقیقت دا دی، چې خلقي لویان له هغه وخت نه، چې حکومت د جزا قانون ایښلی و، په سیاست کې ساړه شوي وو. ځینې یې لا په دې

نیت شوي وو، چې سیاست ګرد سره ترک کړي. په خپله تره کی هم همدغسې شوی و، نو یې د ځان لپاره له ګوند نه پولي امتیازونه او ترانسپورتي وسله وغوښتله، چې ورته ومنل شوه.
د زړه نازړه توب په دغه حال کې هم امین پر خپل فکر او سیاست د پخوا په شان ټینګ ولاړ و، خپلو نږدې ملګرو ته یې د صبر او حوصلې خبرې کولې، سره له دې هم په ملکي ګوندیانو باندې د زړه نازړه توب ځپه خپره وه. امین به ورته ویل، چې د 1957کال د زمري تر میاشتې دې انتظار وکړي او که تر هغو کوم مهم کار و نه شو، بیا اختیار د دوی دی. امین د ډېرو خلقیانو په ویناو فیصله کړې وه، چې دی به په دغې میاشت کې په "انقلابي" عمل لاس پورې کوي او د بریالیتوب په حال کې به د "زمري انقلاب" نوم پرې ږدي، خو ولسمشر محمد داود پرې رادمخه شو.
بیا نو د ګوندي لویانو له بندي کېدلو نه وروسته د خلق دموکراتیک ګوند لپاره سیاست د مرګ یا ژوند سوال شوی و، په دې ډول چې یا غوځ عمل کول یا کور ته د راغلي اجل منل. امین لومړی تجویز غوره کړ، خو د هغه اساسي مشکل دا و، چې په دې اړه یې له ګوند نه څرګنده اجازه نه لرله. د اقبال وزیري په ویناو نظامي کمېټې ته صلاحیت ور کړل شوی و، چې که حکومت د ګوند مرکزي کمېټې غړي بندي کړي، هغه دې د اکثریت د فیصلې له مخې دفاع وکړي. د وزیري په قول د غه صلاحیت یواځې دفاعي و، نه د "انقلاب" کولو او د "انقلاب کولو" لپاره څرګنده اجازه نه وه، ځکه چې دده په عقیده وضع "انقلابي" نه وه. د نورو خلقیانو په ویناو ګوند په کوم وخت کې پریکړې کړې وه، چې که حکومت ګوندي لویان بندي کړي، نظامي غړي مجاز دي هغه څه وکړي، چې یې لازم ګڼي. دا چې په رسمي خلقي خپرونو کې ویل شوي، چې تره کي و امین ته د انقلابي عمل کولو لپاره په لاندې ډول هدایت ورکړی و، سمه نه ده:

"هر وخت که څوک وغواړي، چې د ]محمد[ داود رجیم ړنګ کړي، باید د افغانستان د خلکو دموکراتیک ګوند سیاسي قدرت ] په لاس کې[ واخلي او که د ]محمد داود[ رجیم په خلقیانو برید وکړي یا ملګري نور محمد تره کي زنداني کړي، خلقیان دې په انقلابي قیام د داود رژیم ړنګ او سیاسي قدرت ترلاسه کړي.(21)"

دا او دغسې نورې رسمي خپرونې وروسته د سیاسي ملاحظو له مخې شوي دي، نه واقعیت ته د درناوي له مخې.

امین وروسته له هغه چې پولیس د هغه له کور نه ووتل، د خپل زوی عبدالرحمن له لارې د تره کي د بندي کېدلو خبر ترلاسه کړ. بیا یې د کودتا نقشه په خپل کور کې وایستله او د ارتباطي غړو له لارې یې خلقي افسرانو ته د عملي کولو دستور ور کړ. د ثور انقلاب په نامه رسالې کې، چې د اقبال وزیري په وینا په خپله امین لیکلې، راغلي چې "ملګري امین د ثور په شپږمه نېټه د سهار په شپږ نیمو بجو د خپل زوی عبدالرحمن ورور ]عبدالله امین[ او د خپل کاکا د یوه زوی په واسطه د ګوندي ملګرو په حاضرولو، چې په سترو کدرونو او له تکړه افسرانو سره د ګوند په رابطو غړوکي وو، پیل وکړ." د همدغې لیکنې له مخې لومړی ارتباطي غړی، چې د امین کور ته ورسېد، فقیر محمد فقیر و. "په همدغه ورځ د سهار په اوه نیمو بجو لومړنی کدر، چې د ملګري امین کور ته ورسېد، ملګری فقیر محمد فقیر و. ملګری امین په خپله کوټه کې د ملګري فقیر سره کېناست او ورته یې وویل، چې د ملګري تره کي مستبد داود بندي کړ. سبا له غرمې دمخه په نهو بجو دې انقلاب پیل او د داود رژیم دې نسکور شي. ملګري فقیر څه وویل. ملګري امین بیا هماغه ټکی په هماغو جملو تکرار کړ. ملګري فقیر بیا وویل)اه( ملګري امین وویل ) بلا ودار شوې( ملګري فقیر وویل: نه ډار شوی نه

يم، خو څنګه چې ملګرى تره کې بندي دى، په خبره نه پوهېږم. د کاغذ پرمخ يې را ته وليکه:
ملګري امين سمله لاسه د انقلاب د پيل د څرنګوالي او دوام ټول پلان د کاغذ پرمخ ملګري فقير ته وليکه، چې په وسله والو قواوو کې يې ملګرو افسرانو ته، چې له ده سره يې اړيکه درلوده او ملګري سيد محمد ګلابزوى ته ورسوي."
له دې سره جوخت په همدغې ليکنې کې په ټول افغانستان کې د پوځ د بېلابېلو قطعو او فرقو دپاره 22تنه خلقي افسران د قومندانانو په توګه غوره شول. دوه ډېرش کلن محمد اسلم وطنجار د څلورمې زغرورې قوې د لومړي کنډک قومندان د ټولو ځمکنيو قواوو د قومندان، د هوايي مدفاع درستيزوال ډګروال عبدالقادر د هوايي قوتونو لپاره او نظر محمد د خواجه رواش د هوايي ميدان لپاره وګومارل شو.
امين دغه هدايت هم ورکړ، چې د دافع هوا قطعې دې د ريشخورو د اومې فرق او د قرغې د اتمې فرقې د حرکت مخه ونيسي، چې د حکومت په ملاتړ به يې کوي او په قطعو کې دننه خلقي افسران دې د هغو قطعو يا کنډکونو مخه ونيسي، چې له حکومت نه دفاع وکړي. جنګي الوتکې دې هم د خلقي مشرانو په لارښوونه په ټولو هغو قطعو باندې وارونه وکړي، چې غواړي د حکومت ملاتړي. امين فقير ته لا له دستور ورکولو نه خلاص شوى نه و، چې د انجنير ظريف په نامه بل نظامي رابط غړى د سهار په اتو بجو د کور دباندې ورسېد، خو دننه ننوتلو ته پرې نه ښودل شو.
سره له دې هم امين هغه ته او د هغه له لارې نورو رابطو غړو خيال محمد کټوازي او انجنير صالح محمد پيروز او خلقي عبدالقادر اشنا ته د پلان دوه نقلونه واستول شول. د وروستي نوم اخيستل شوى نه دى، ممکن په دې سبب چې ده خپله د نده تر سره نه کړه، خو چارواکي يې هم پرې خبر نه کړل.

په هر حال، دغه پېغام رابطو غړو فقیر محمد فقیر )تڼي(، انجنیر محمد ظریف )توتاخېل(، انجنیر صالح محمد پیروز )د لغمان مومند( او خیال محمد کټوازي )سلیمان خېل( ته دغه پېغام هم ورسول شو، چې دوی دې د سهار په شپږ نیمو بجو په دهمزنګ کې سره غونډ شي، چې که په پلان کې کوم بدلون پېښ شوی وي، دوی ترېنه خبر اوسي. امین د غني ساپي د لیکنې له مخې د سهار په اتو بجو او د انقلاب په هکله مقالې )یا د امین د لیکنې( له مخې په لسو او پېنځه څلوېښت دقیقو کې پولیسو له کور نه واېست او د کابل ولایت په توقیف خانه کې د نورو ګوندیانو په شان په یوې کوټې کې بندي کړ.

هغسې، چې امین په لږ وخت کې د کودتا د عمل پلان وایست، داسې هم رابطو غړو هغه خلقي افسرانو ته د ښار په بېلو بېلو برخو کې په ګړندیتوب سره ورسوه. دوی دغه ماموریت په حېرانوونکي ګړندیتوب او د پېسو په بې پروا لګښت سره د تکسي ګانو له لارې سرته ورسوه. له ټکسي وانو سره یې چنه نه وهله او حتی د کرایې پاتې پیسې یې ترېنه نه اخیستلې. هر یوه خپله دنده په بړي سره ترسره کړه او په پای کې ټول دغومره ستړي شوي وو، چې همدا چې خپلو کورونو ته ستانه شول، له دریشي او بوټانو سره ویده شول.

اوس د یو څو اساسي ټکو بیا یادونه ضرور ده. یو دا چې د کودتا قومانده یواځې د حفیظ الله امین په نوښت خلقي افسرانو ته ورکړل شوې وه. نور محمد تره کي، چې د ګوند عمومي منشي او د سر سړی و، پرې خبر نه و او پرچمي لویان یې په فکر کې هم نه وو. بل دا چې د کودتا پلان د لنډ وخت کار و او هغه هم په دغسې حال کې، چې امین او کور یې د پولیسو تر څارنې لاندې و. امین په دغسې حال کې هم د کودتا پلان جوړ کړ او دوه ویشتنه خلقي افسران یې په نامه په کودتایي

وظيفې وګومارل. دی به د ښه ټينګ ياد خاوند و. بله دا چې خلقي ارتباطي غړو د "انقلاب" قومنده د ثور په شپږمه ورځ او شپه کې د کابل د سيمې خلقي افسرانو ته په وخت ورسوله، بې له دې چې امين تې چاروا کي پرې شکمن شوي وي. د امين په ګډون دوی ټول اطرافي پښتانه وو، دوی ټول به د ښه د سپلين خاوندان، خپل ماموريت ته رښتيني او د نظام ټينګ مخالفان وو. مهمه دا چې حکومتي پوليس غني ساپی، چې دی هم اطرافي پښتون و، بې له دې چې د امين په نيت خبر وي، په ضمني ډول د کودتا په بري کې اساسي رول ولوبوه. ده د خپلې وظيفې او د خپلو آمرانو د هدايتونو پرخلاف عمل وکړ او امين او رابطو غړو ته يې د پلان د عملي کولو لپاره ډګر هوار کړ. که ده خپله دنده په رښتيا سرته رسولې وای، د ثور کودتا به ناشونې وای. امين بيا دی د خپلې واکمنۍ په وخت کې په دې ډول وستايه: "اگر شما برايم شب مجال ماندن بخانه را نميداديد، اگر شما در تلاشی اطاق زنها اسناد مربوط به قومنده انقلاب را از خانمم ميگرفتيد، اگر شما همان دو مهمان را طبق دستور مقام آمر گرفتار ميکرديد، اگر شما دخول و خروج را در منزلم تا 8 فردای همان روز ممنوع ميکرديد، من هيچگاه قومنده انقلاب را نميتوانستم تکميل و صادر نمايم و اين به مساعدت شما بود که من در همان شب [صبح وقت] قومنده انقلاب را تکميل و صادر نمايم. باين حساب شما نزد من قهرمان انقلاب هستيد."

## ګونديلويان د کابل ولايت په توقيف خانه کې

لکه چې دمخه ويل شوي، د امين له بندي کېدلو نه دمخه د خلق دموکراتيک ګوند نور مهم غړي د کابل ولايت د سهيل لويديځې برخې په محبس کې، چې په توقيف خانه يادېده، هر يو په بېلې کوټې

کې اچول شوي وو. د توقیف خانې ټولې کوټې، چې له ختټو نه جوړې او وړې وې، په شمېر اوولس وې. د هغې یو څو کوټې ما په 1950کال کې، چې د ویښ زلمیانو د ګوند یو تکړه شخص غلام حسن ساپی بندي و، لیدلې وې. ساپي د خپلې یوې لیکنې په سر، چې د ننګرهار په سره رود کې د یوې ښوونځي د ودانۍ مواد، چې د موی مبارک په ودانۍ لګېدل، د حضرتانو په تحریک بندي شوی و او په دې ډول د ویښ زلمیانو او عصري افغانانو او حضرتانو او مذهبي محافظه کارو ترمنځ یو ډول مبارزه او غوغا جوړه شوې وه. زه هغه وخت د ویښ زلمیانو د حرکت یو فعال غړی وم.

په هر حال، د توقیف خانې په د غو وړو ختیډنو کوټو کې د خلق دموکراتیک ګوند د لویانو تخنه کول ښيي، چې د دوی موضوع د حکومت له نظره ډېره جدي نه وه. وروسته له دې، چې دغه نهه بندیان په نهو کوټو کې واچول شول، د هغو د دوسیو تر بشپړېدلو پورې د هغو مسؤلیت د قومندان غني ساپي په سروالۍ د پولیسو دوه ویشتو تنو افسرانو په غاړه ولوېد. غني ساپي ته د امینې لوی قومندان هدایت وکړ، چې بندیان به له یوه بل سره نه ګوري. یا یواځې به نه وي، بندیان به له ډوډۍ خوړلو او طبیعي حاجت له رفع نه پرته الچک وي، خو ساپی لیکي، چې "من طور خصوصی به صاحبمنصبان مربوط هدایت داده بودم که الچک هارا به محافظ شان تسلیم داده و دست های شانرا الچک نکنند." خو د یوه بندي په وینا دوی له ځینو حالتونو نه پرته ټول وخت ولچک وو. د تره کي ولچک ډېر ټینګ و، خو له دوی ټولو سره ښه چلند کېده. ساپي په "شب های کابل" کې لیکي، چې پخوا له دې چې بارق شفیعي او سلیمان لایق بندي شي "برای هفت نفر شان فوق العاده گوشت گوسفند، برنج عالی، نان خاصه، دو نوع میوه تازه در طعام چاشت و شب شان حواله گردیده بود. چای و سگرت مطابق

لیل برای شان داده میشد." یو طبي ډاکتر هم موظف شوی و، چې بندیان هره ورځ وګوري. غني ساپی لیکي، چې "تمام پرسونل را متوجه وظایف شان نموده و خاصتاً در باره مراعات سلوک انسانی پولیس در مقابل همچو رجال سیاسی هدایت داده انها را جداً متوجه روش نیکو، برخورد اخلاقی، و مودبانه نمودم. بامر نظارت خانه هدایت دادم تا به محبوسین بستره، کمپل، روی جایی جدید توزیع نمایند."

دی دا هم وایي، چې "از پول شخصی ام یکمقدار چای سیاه و شیرینی خریده به امر نظارت خانه تسلیم نمودم. آب گرمی، ظروف نان، منقل برقی، ظروف چای را از اتاق طعام خوری صاحبمنصبان از نزد معتمد اعاشه و طعام خانه گرفته بامر نظارت خانه دادم تا طعام محبوسین را بطور صحی و گرم بوقت معینه توزیع نمایند و خارج از استحقاق رسمی هر وقت میل داشته باشند، بدون کدام معطلی برای شان چای بدهند."

نور محمد تره کی له دغسې اولې درجې ډوډۍ او ښه چلند سره همدا، چې له تحقیق ځای نه ستون شو، له ډوډۍ خوړلو نه ډډه وکړه او اعتصاب یې وکړ. غني لیکي: "بشقاب قورمه گوشت دار، نان و میوه استحقاقیه اش ناخورده بعد از ادای سلام پرسیدم چرا نان نوش جان نمیکنید؟ صحت تان چطور است" تره کي وویل، چې "صحتم خوب است، مریض نیستم ولی این طعام را نمیخورم." "علت آن چه خواهد بود؟" ځواب یې ورکړ، چې "من یک بندی سیاسی و رهبر حزب هستم، برای امرین خود و وزیر داخله بگوئید مرا که بندی کرده اید مانند یک محبوس سیاسی مطابق میلم باید طعام بدهید، دوا بدهید، چپرکت بدهید و اتاق روشن افتاب دار بدهید." تر هغو پورې بندیانو ته چپرکټونه ورکړل شوي نه و، خو ورکول یې په پروګرام کې و. نو ساپي تره کي ته

کړه، چې "هر چیز جور می شود، شما امشب نان خود را نوش جان کنید، فردا راجع به چپرکت اقدام میکنم. دوکتور موظف هر روز می آید، امروز هم امده بود، اگر کدام شکایت مریضی داشتید باید به داکتر میگفتید. اطاق شما روشنی کافی دارد، بستره شما بکلی جدید است...نان سه وقته شما درجه یک است." تره کي ورته وويل، چې "نه خیر، من نمیگویم که این غذا خراب است، بلکه بسیار چرب و گرم است، ولی من نسبت تکلیف سابقه به توصیه داکتر چربی و پیاز بریان خورده نمیتوانم." غني ساپي بیا ورته وویل، چې تاسې باید خپل تکلیف داکتر ته ویلې وای. تره کي ورته وویل، چې هغه مې نن خبر کړ، او هغه "در ورق صحی ام نوشت که باید گوشت بی روغن طور یخنی برایم داده شود." داکتر بیا هغه ته د هغه په خوښه د خوراک تهیه کولو توصیه وکړه. په پای کې تره کي ساپي ته په خندا وویل، چې "خوب است، امشب این چربی را نمیخورم، با چای نان میخورم." ساپي بیا ورته کړه چې اوس به ستا په اجازه له خپلې کوټې نه یو څه خواړه درته راوړم. تره کي منله وکړه او ساپی وایي، چې "یکنفر سرباز هدایت دادم (که) فوراً قطی شیر، کلچه ناشتا و چای گرم بیاورد." ساپي بیا په خندا ورته وویل، چې تاسې په کور کې هم د خپلې خوښې خواړه خورئ؟ د هغه ځواب هو و. په دې ډول، چې "من در خانه گوشت سینه مرغ یا گوشت کبک میخورم." ساپي په تعجب وپوښته، چې "شما که رهبر زحمتکشان و حزب طبقه کارگر هستید هر روز گوشت مرغ یا پرندگان صحرایی چطور میسر میگردد؟" تره کي موسکی شو او په ځواب کې یې وویل، چې "خیلی کنجکاو هستید، میدانید که من ریش سفید و رهبر حزب هستم، تمام مصارفم از طرف حزب تهیه مید شود. شاگردان برایم تهیه میکنند، مرا دوست دارند. هر

چیزیکه خواسته باشم، مرا میدهند."
له بندیانو او هغه هم له سیاسي بندیانو سره، چې له خپلواک ژوند نه بې برخې شوي او هر یو یې په وړې کوټې کې په یوازې ځان تخنه شوی وي، د بندي وانانو چلند او د خوړو څنګه والی ډېر مهم وي. دغسې بندیان تل په دې سوچ کې وي، چې خپله روغتیا له لاسه ورنه کړي او یوه ورځ په پیاوړي روح سره بېرون شي، د ولایت په توقیف خانه کې نه یوازې له نور محمد تره کي، بلکې د هغه له ټولو ملګرو سره دومره ښه چلند وشو، چې کله دوی ازاد شول او بندي وانان بندي شول، سمله لاسه یې خپل ژغورونکي قوماندان غني ساپي ته وویل، چې "انها را رها کنید، انسان های شریف هستند. در این چند شب و روز با همه ما وضع انسانی کرده اند." خو دوی د خپلې واکمنۍ په وخت کې دغه "انساني چلند" زر هېر کړ، د دوی په وخت کې هر بندي وان بندیانو ته د فرعون په شان و. بندیانو ته لا په ماړه نس ډوډۍ نه ورکول کېدله او هغه څه چې ورکول کېدل، د غومره خراب وو، چې په عادي حال کې د خوراک نه وو. لکه چې وروسته به وویل شي، د دوی په وخت کې د غومره ډېر افغانان بندي شول، وکړول شول او ووژل شول، چې د بل هېڅ افغان د واکمنۍ په وخت کې د غومره ډېر افغانان بندي شوي او اعدام شوي نه وو.

## له بندیانو نه تحقیق

په یقین سره معلومه نه ده، چې ددغو ګوندیانو له بندي کولو څخه اصلي مقصد څه و؟ د سرپټي نظام یوه خاصه دا ده، چې هغه فیصله هم چې په ټولنې اثر کوي، یو یا څو تنه کوي او اصلي مطلب هم نه وایي. په کوم هېواد کې چې فیصلې په دې ډول کېږي، هلته هره ګړۍ د حېرانوونکیو پېښو د پېښېدلو احتمال وي. دا هغه څه و، چې په افغانستان کې د 1357کال په ثور کې د یو څو تنه چندان مهمو کسانو له بندي

کېدلو نه وروسته وشول. د یوه ناتایید شوي روایت له مخې ولسمشر محمد داود غوښتل، چې د غه بندیان چې خلکو "کمونستان" بلل سمدلاسه بې له محاکمې اعدام شي، چې له هغو نه کومه بلا جګه نه شي، خو د مشاور وزیر عبدالمجید نظر داو، چې اعدام دې بې د محاکمې څخه نه وي. د یوې بلې پرځان ویسا منبع په قول فیصله سملاسي اعدام و، خو تر اجرا دمخه یې د کابل والي عبدالحکیم، چې بندیان د هغه په قلمرو کې وو، د اعدام له عاملانو نه مهلت وغوښته، ځان یې په بېړه محمد داود ته ورسوه او هغه یې په دې قانع کړ، چې اعدام دې له محامې نه وروسته وي. لکه چې زر په ولیدل شي، ګومان نه کېږي چې د اعدام روایت به پخوا یا وروسته له محاکمې نه حقیقت ولري. سربېره پر دې، چې دا د اشخاصو روایتونه دي، محمد داود په دغسې مهمو موضوعګانو کې خپله او د خپلو مشاورو فیصله نه ماتوله او د هغو په اړه یې د بل چا مشوره نه منله.

مهمه دا ده، چې د حکومت لپاره دغه ټوله موضوع ډېره جدي نه وه او که جدي وای، دغه بندیان به یې د ښارپه مېنځ کې په ختیځنې وداني کې نه اچول، بلکې په کوم نامعلوم او ټینګ ځای لکه د څرخي پله په زندان کې تخنه کړي وای او د بند په وخت کې به پرې ډېره سخته نیولې وای.

د چار شنبې په ورځ د ثور په شپږمه د ماښام په شپږ نیمو بجو نور محمد تره کي، ببرک کارمل او شرعي جوزجاني د کابل ولایت دننه د څارنوالۍ اداري ته د تحقیق لپاره بوتلل شول. هلته د عدلیې وزارت او لویې څارنوالۍ هیئاتونه دمخه ورغلي وو. بندیان هلته تر دولس نیمو بجو پورې کېنول شول او تحقیق ترېنه وشو، خو د تره کي له تحقیق نه پرته له نورو نه د تحقیق په اړه معلومات ترلاسه شوي نه دي. د غومره څرګنده ده، چې په دوی باندې د امنیت د ګډوډولو تور لګول شوی و. له تره کي نه د تحقیق په اړه هم معلومات مفصل او دقیق نه دي، له هغه نه

څارنوال محمد انور کاکړ، څارنوال کرام الدین او څارنوال فیض محمد پوښتنې کړې وې. څارنوال انور کاکړ، چې زما د پوهنتون د وختونو دوست و، ماته د 1990کال د نومبر په 25مه له ورجنیا نه په یوې تلیفوني مرکې کې وویل، چې دوی ټولو له تره کي نه د اپریل په 25مه کال 1978 د دوو ګړیو په شاوخوا کې پوښتنې وکړې. د څارنوال انور کاکړ په وینا، تره کي د څارنوالۍ دفتر ته ولچک راوستل شوی و. هلته ولچک ترې نه لرې شو، چای ورته وغوښتل شو او دا هم ورته وویل شول، چې که نور څه غواړي لکه چرس یا بل څیز به هم ورته تهیه شي. د کاکړ په وینا له تره کي نه په ارامۍ او بې له وېرولو او ترټلو نه پوښتنې وشوې، په داسې حال کې چې په نورو باندې ګواښونه شوي او وېرول شوي وو. د کاکړ په قول ټولې پوښتنې په دې اړه وې، چې د جزا قانون پرخلاف یې ولې مظاهرې کړې دي؟ پوښتنې چې ورته لیکل شوې سپارل شوې وې، داسې نه وې چې تورن دې اعدام ته برابر شي. د کاکړ په نظر تره کي د هغه له مخې شاید له درې نه تر شپږو میاشتو پورې بندي یا له دوه نه تر شپږو زرو افغانیو پورې جریمه شوی وای. د کاکړ په وینا تره کي په بې پروایۍ او بې له ویرې نه ځوابونه وویل او هغه دغومره اوږده وو، چې د نورو پوښتنو لپاره اړه پیدا نه شوه، دوسیه یې بشپړه شوه او چاروکیو ته وسپارل شوه. د تور د سپکوالي او ښه چلند له امله به وه، چې د تره کي روحیه کله چې خپلې کوټې ته بېرته راوستل شو، نه دا چې مړاوې نه وه، خندانه وه. د غني ساپي د پوښتنې په ځواب کې، چې تحقیق څنګه و، اول وخندل او بیا یې وویل، چې "مسخره بود. خود شان را محکوم کردم، چیزیرا که از من پرسیدند، یکی آنهم سبب مسؤلیت من نمیشود. مراسم جنازه و صحبت بالای قبر کدام جرم نیست." په یاد دې وي، چې تورن هغه هم په دغسې موضوع

کې واقعیت، هغه هم حکومتي مامور ته، چې غني ساپی و، نه وایي او ځان پرحقه ښیي. څارنوال محمد انور کاکړ ته داسې ښکاریده، چې نه یواځې د تره کي، بلکې د ټولو ګوندیانو له بندي کولو نه د حکومت مقصد اعدام نه، بلکې د یوې مودې لپاره په بند کې د هغو ساتل و، چې افغانستان ته د ایران د پاچا رااتلونکی رسمي سفر بې له کومې ناوړې پېښې نه وي. نور محمد تره کی د تحقیق په بهیر کې د څارنوال محمد انور کاکړ له ښه چلند نه د غومره خوښ و، چې هغه یې بیا په خپلې واکمنۍ کې که څه هم د ګوند غړی یې نه و، په بنګله دېش کې د افغانستان د سفیر په توګه واستاوه.

## د ثور په اوومه د کودتا بهیر

داسې ښکاري، چې حکومت په دې فکر و، چې د خلق دموکراتیک ګوند د یو څو تنو مشرانو په بندي کېدلو سره به ارامي خوندي وي، نو یې په کابل کې کوم خاص امنیتي ترتیبات و نه نیول. په هغه سربېره د کابل نظامي قطعو ته امر شوی و، چې غونډې او اتڼونه به کوي او په هغو کې به دغه ګوندیان ټکوي او ورته به سخته جزا غواړي. دا چې د انقلاب رساله کې ویل شوي، چې حکومت وسله وال ځواکونو ته په راډیو کې د تیارسۍ امر کړی و، سمه نه ده. د بې احتیاطیو په ډله کې یې یوه لا داوه، چې جمهوري ګارډ، چې اساسي دنده یې د ولسمشر ساتنه ده، په لازمي وسلو سمبال شوي نه و. په نظر کې وه، چې درې ورځې وروسته به عصري وسلې ورته رسولې کېږي. د ځلورمې ز غرورې قوی قومندان سرور نورستانی، چې د ولسمشر ټینګ پلوی ګڼل کېده، مسکو ته په سفر تللی و. لکه چې جنرال محمد صدیق، چې د کابل د امنیت په خوندي کولو کې مهم ګڼل کېده، مزار ته د زیارت کولو لپاره تللی و. دی د قرغې د اتمې فرقې قومندان و. د سرور نورستاني په

غیاب کې د زغرورې قوې چارې محمد رفیع ته، چې د هغې د ارکان رییس او پرچمی و، د کفیل په توګه سپارل شوې وې، خو تر ټولو غټه تېروتنه په اتلنو او غونډو کولو سره د کابل د نظامي قطعو بوختول وو. داسې ښکاري، چې په غونډو اتلنو سره د نظامي قطعو بختول په اصل کې دغسې یوه دسیسه وه، چې د دفاع وزیر غلام حیدر رسولي هم پکې لاس درلود. د مؤلف غوث الدین فایق په وینا رسولي د میر طهماس روف په مشوره پوځ په غونډو سره بوخت کړ. میر طهماس د یوه قصاب زوی او د چاریکارو و. لوړه نظامي زده کړه یې د ارکان تر درجې پورې په مسکو کې د لېنن په اکاډمی کې بشپړه کړې وه. طهماس روف د خلق د ګوندګي پټ غړی و او په خاص مهارت او غوړه مالۍ سره یې ځان رسولي ته د اعتماد وړ ګرځولی و، لکه چې عبدالقادر، اسلم وطنجار او محمد رفیع همدغسې کړي وو. فایق لیکي: "حفیظ الله امین وقتیکه بفکر بدست اوردن قدرت از طریق اردو شد و بجلب و جذب افسران اردو اغاز نمود، میر طهماس را در طراحی کودتا از همه افسران ماهر تر و ورزیده تریافت و وی را در بخش نظامی بمعاونی خود برگزید." فایق پسې زیاتوي: "میر طهماس بمجردیکه از زندانی شدن امین و دیگر سران خلقی و پرچمی مطلع شد، فور از قول اردوی پکتیا خود را بکابل ساند و برای مساعد ساختن زمینه کودتای خود غلام حیدر رسولی را به تجلیل گرفتاری سران گروه خاین باک شیدن تانک ها کندک چار زرهدار با همشریان سم گیرنده فریفته ساخت و غلام حیدر را به نحوی اغوا کرد که برای بقدرت رسیدن شما بهترین موقع همین وقت است.[22]" لکه چې دمخه مې راوړي مؤلف محمد عاصم اکرم هم دغې نتیجې ته رسېدلی و. د پاینده محمد کوشاني له لیکنې نه هم ښکاري، چې رسولي د کودتا په لټه کې و. دی لیکي، چې "از جمله کسانیکه نسبت انتصاب عبدالله شدیداً عقده

گرفته بود، مرحوم محمد مسجدی (معروف به حیدر) رسولی وزیر دفاع داود خان بود... مرحوم رسولی بعد از انتصاب عبدالاله بحیث معاون رییس جمهور مخفیانه با عناصر ناراضی از حکومت تماس ها قایم کرده بود... رسولی در روز قبل از کودتای 7 ثور توسط طیاره از فرقه های هرات، مزار، قندهار و غزنی دیدن [نموده] و با قوماندان های فرقه های مذکور صحبت کرده بود." کوشانی دا هم لیکي، چې "مرحوم رسولي یک مسلمان صاف دل و ساده بین بود و بالای این عناصر بیدین و جواسیس روس [قادر، وطنجار و محمد رفیع] اعتماد کرد. قادر (از ریاست مسلخ) دوباره بمدافعه قوای هوایی کابل تبدیل و اشخاص مثل وطنجار و رفیع به پست های حساس قوماندانی در قوای چارزرهدار تقرر یافتند و در تحمیق رسولی برای براه انداختن یک کودتا بنفع او زیرکانه کار کرده اند. وطنجار و رفیع اجازه نصب بتری های تانک را روز قبل از کودتا حاصل کرده بودند." کوشاني د یوې حېرانوونکې قیصې نقل کوي او هغه دا چې رسولي ته د کودتا په شپه د کورنیو چارو وزیر قدیر نورستاني له لارې د 105 کودتا کوونکیو نومونه رسېدلي و، خو هغه په دې اړه هېڅ ونه کړل. د راپور وروړونکي محمد عیسی نورزاد ته یې، چې پخوا د کورنیو چارو د وزارت د استخباراتو رییس و، وویل چې "این دو سه نفر دوستان من هستند" او "این دو نفر دیگر پسر خانده های من هستند."[23] ددغو کودتا کوونکیو په سر کې د نظر محمد، عبدالقادر، محمد رفیع او شیر جان مزدوریار نومونه وو. دوی لکه چې دمخه ویل شوي له رفیع نه پرته هغه ګوندي نظامي افسران وو، چې امین په کودتا سره د حکومت د نسکورولو لپاره ګومارلي وو.

د کودتا په اړه د میر طهماس رول په خاص ډول د یادونې وړ دی. د فایق په وینا طهماس "قرار

اظهار ضابط نوکری وال ساعت 6 بجه صبح به نظام قراول قوای 4 زرهدار آمده با اسلم [وطنجار] جگرن کندک زرهدار یکنیم ساعت به لب دریا صحبت خصوصی داشته. هفت و نیم بجه صبح در نظام قراول با اسلم وداع کرده با سواری موتر خویش بطرف میدان هوایی خواجه رواش و دیدن و دادن دایرکتیف [هدایت] نزد قادر رییس ارکان هوایی رفته.[24] "د میر طهماس دغه هدایتونه په دقیق ډول معلوم نه دي، خو هغه به اورومرو د کودتا په اړه وو. رسولي کومه هغه پېښه، چې د ثور د اوومې یا د کودتا په سهار د ریشخورو په فرقه کې وشوه، هم تېنگه و نه نیوله. د سهار په اوو بجو رسولي ته خبر ورکړل شو، چې د فرقې یوه ځوان افسر غوښتل د فرقې قوماندان تورن جنرال محمد نظیم ووژني، خو هغه ځان وژغوره او پر ځای یې د ارکان رییس او په خپله هغه افسر )عبدالغني( ووژل شول. رسولي په بیړه ریشخورو ته ورغی، خو بې له دې چې خبره یې سپینه کړې وي، چې دغه پېښه د څه لپاره وه، ولسمشر محمد داود ته یې په ټلیفون کې داډ ورکړ، چې هغه یوه وړه پېښه وه او غلې شوه او له هغه نه یې بښنه وغوښته، چې د نن ورځې د کابینې په غونډه کې گډون کولی نه شي او په خپله په نهو بجو د ملي دفاع وزارت کې خپل دفتر ته ورسېد[25]. د ریشخورو د فرقې پېښه په قوي احتمال د کودتا پیلامه وه او هغه افسر عبدالعلي به پخوا له وخته عمل کړی وي، ځکه چې لکه دمخه ویل شوي یوه ارتباطي غړي قادر اشنا خپله کودتایی دنده نه وه ترسره کړې. د کودتا په اړه ډېره مهمه دا وه، چې د دفاع وزارت د استخباراتو رییس جنرال جان نثار د ثور په شپږمه د دفاع وزیر ته خبر ورکړ، چې په پوځ کې د حفیظ الله امین فعالیتونه جاري دي او څلورمه زغروره قوه باید پرې نه ښووله، چې په بله ورځ )د ثور په اوومه( له ځایه ونه خوځېږي.

د جنرال جان نثار په ژبه "شخصاً به غلام حیدر خان رسول بروز 6 ثور 1357 اطلاع دادم که فعالیت تخریبی در اردو توسط حفیظ الله امین جریان دارد... بعد از [دادن] این اطلاع از وزیر دفاع ملی خواهش کردم تا به تانکست ها اجازه ندهند که بروز هفت ثور بخارج قشله حرکت نمایند. اما او نپذیرفت." په واقع کې هغه د ټول پوځ وضع غیر عادي انځور کړې وه، په دې ډول چې "وضع در اردو بکلی غیر طبیعی بوده باید به قطعات امر احضارات درجه اول داده شود [ولی] او با یک تمسخر مرا توصیه به ارامش اعصاب و خاطر جمعی نمود." د ثور په اوومه د سهار په لسو بجو یې د ټانکونو له حرکت نه بیا هم خبر کړ، خو رسولي بیا هم څه ونکړل. "بساعت ده صبح باز هم با و اطلاع دادم که تانک ها [از قوه چار زرهدار] برخلاف هدایت شما بطرف شهر کابل در حرکت میباشند [و وزیر دفاع] گفت اطلاع دارم، امادگي گرفته میشود."[26] په یوه بل روایت ولسمشر محمد داود وروسته له دې، چې د ز غرورو قوتونو له نارامۍ نه خبر شو، رسولي ته یې په ټلیفون کې هدایت ورکړ، چې چاره یې وکړي. رسولي له محمد رفیع سره، چې د څلورمې ز غرورې قوې کفیل و، د هغو په اړه په ټلفون کې وغږېد، خو هغه ورته وویل، چې یواځې دوه ټانکونه له محوطې نه وتلي وو او هغه هم ونیول شول او اوس خیریت دی. رسولي په همدغې ډاډینې بسیا وکړه او نور څه یې ونکړل او په خپل دفتر کې پاتې شو.

د ملي دفاع وزیر جنرال غلام حیدر رسولي کافي وخت او نظامي قوت لاره، چې د ثور په اوومه د نظام پر ضد کودتایی حرکت شنډ کړي. دا چې رسولي د خپل مقام وړ نه و، په دې کې شک نه شته، خو سره له دې هم څرګنده چې دی د یوه لوی او وسله وال پوځ سروال و، د خپلو ملګرو په مرسته یې دغه توان لاره، چې حکومتي ضد حرکت

شنډ کړي او یا لږ تر لږه د هغه پر ضد له پوځ نه کار واخلي. ځنګه چې ده په دغه اړه هېڅ ونه کړل، په واقع کې یې د ورانکارو لپاره د عمل کولو لار خلاصه پرېښوده. که څه هم دی د هغو په خپل سر له حرکت نه خبر کړی شوی و. ددې مانا بل څه نه کېږي، مګر دا چې ده هم غوښتل لکه څنګه چې ویل شوي، د ورانکارو په مرسته واک ترلاسه کړي، خو هغسې چې د پاچا امان الله په وخت کې محمد ولي په دغه لار کې خپل سر باېلود، ده هم خپل سر باېلود، خو ده په خپلې دغې لنډپارۍ سره تر محمد ولي نه ډېر د ډېرو غټو ملي مصیبتونو لپاره ور پرانېست، نو ویل کېدای شي چې په حساس وخت کې د لوړو دولتي مقام خاوند حتی که د رسولي په شان لیاقت هم ونه لري، د یوه ملت په تاریخ کې غټ اثر کولای شي.

د افغانستان د پوځ اصلي دنده د نورو پوځونو په شان له وطن، خلکو او نظام نه دفاع وه، خو د امیر شېر علي خان له وخت نه راپه دېخوا چې افغانستان د منظم او دایمي پوځ خاوند شوی دی، له هغه نه د داخلي ارامۍ په ساتلو کې ډېر کار اخیستل شوی دی. ځنګه چې افغانستان په نولسمې پېړۍ کې خپلې ډېرې سیمې د ګاونډیو په ګټه له لاسه ورکړې دي او له هغه وروسته ګاونډیو دغه واړه شوي افغانستان ته هم د حرص سترګې نیولې دي، افغان واکمنو کوښښ کړی، چې د هېواد او د منابعو په تناسب غټ پوځ ولري. په نولسمې پېړۍ کې امیر عبدالرحمن او په شلمې پېړۍ کې محمد داود په دغې برخې کې وتلي واکمنان وو. وروستي د خپلې صدراعظمۍ په لس کلنې (1953_1963) دورې کې افغان پوځ په زیاته اندازه د شوروي مشاورانو په سلا تنظیم او په نویو عصري وسلو سمبال کړ. دغه پوځ په کال 1972 کې اته شپېته زره سرتېري، شپږ نیم زره افسران، دوه سوه عصري جنګي الوتکې، چې زیاتره یې میګ یوویشت وې، لرل. هوایي ځواک یې پېنځه زره سرتېري او

افسران لرل[27]. دغه پوځ د محمد داود د ولسمشرۍ په وخت کې د کابل په شاوخوا، د ولایتو نو په مرکزو نو او په نورو حسا سو ځایونو کې ځای پر ځای شوی و. په کا بل کې د مرکزي قوتونو لویې قومنداني د ټولو نظامي قطعو تنظیم او اداره په غاړه لرله، چې مرکز یې د تاج بیګ په غونډۍ کې و. په ریښخور کې اوومه فرقه، په قرغه کې اتمه فرقه، په مهتاب قلعه کې د توپچي لوا او څرخي پله ته ورڅرمه څلورمه قوه او پېنځلسمه قوه پرته وه. ارګ ته نږدې په بالاحصار کې د کماندو یوه قطعه له اضطراري پېښو سره د مقابلې لپاره تنظیم شوې وه. د ارګ ننېغ او سملاسي ساتونکي د جمهوري ګارډ په نامه لوا وه، چې دننه په ارګ کې له څه کم دوه زره سرتېرو نه جوړه وه. د ارګ شمال لور ته په لنډ واټن کې د خواجه رواش هوایي ډګر تر څنګه د هوایي مدافعې قومنداني ځای پرځای وه. ارګ د امیر عبدالرحمن په وخت کې د ټینګې کلا په شان ودان شوی و، چې وروسته نور هم ښه شوی و. څلورنه یې لرل، چې ختیځ ور یې تر ټولو مهم و.

د 1957 کال د ثور اومه کودتا د څرخي پله د څلورم زغرور کنډک نه پیل شوه. ټانکونه د پنجشنبې ورځې د سهار د لسو بجو په شاوخوا کې د ښار په لور په دې پلمه وخوځېدل، چې غواړي د حکومت پر ضد نارامي غلې کړي. دد غو ټانکونو شمېر څوک د شپېتو او څوک د څلوېښتو او پنځو سو ترمېنځ ګڼي، خو څنګه چې په هغو کې جنګي ماشینونه او ذره پوش هم شامل وو، د ټولو شمېر شاید تر دېنه هم ډېر وي. د دفاع وزیر په دغه وخت کې جنرال مولاداد په یوه جیپ کې د څرخي پله په لور واستوه، چې "تا با قومندان قوا در تماس آمده علت حرکت را جویا شود." هغه په همدغه وخت کې د پېنځلسم زغرور ځواک قوماندان ډګرمن محمد یوسف ته هدایت ور کړ، چې د موضوع په اړه تحقیق وکړي، خو هغه ورته په ځواب کې

وویل، چې "قوای 15 خود در محاصره میباشد و مولاداد هم نتوانست کاری از پیش ببرد." (27 الف) د رسولي د غه تدبیرو نه کافي نه وو او څنګه چې دی په همدغه سهار کې د ریشخور په فرقه کې د یوې بلې غېر عادي پېښې شاهد و، ده باید د غه پېښه تر هغه لا غټه غېر عادي پېښه ګڼلې او غوڅ نظامي چلند یې ورسره کړی او محمد داود یې پرې خبر کړی وای. د هغو پر ځای دی په خپل دفتر کې د ملي دفاع په وزارت کې پاتې شو، تر څو چې د یولسو بجو په شاوخوا کې په وزارت باندې له ټانک نه برید وشو او ده ته یې ټکان ورکړ. په دغه برید سره "رسولی از خواب پرید و همراه با عبدالعزیز لوی درستیز از در عقبی وزارت دفاع بیرون شد و توسط موتر جیپی که از فرط عمله و شتاب با یک تکسی تصادم کرد خود را به قرغه رسانید." (28) د مولف کبیر سراج په وینا رسولي ته د وزارت له وهل کېدلو نه وروسته برید جنرال ابوی مشوره ورکړه، چې د قوای مرکز قومندانی ته د تاج بیګ غونډۍ کې ځان ورسوي (29)، خو هغه په قرغه کې اتمې فرقې ته لاړ، چې په حرکت یې راولي، خو هغه یې هم ونه شو کولی. د یوه خورد وضابط په وینا "چون روز 27 اپریل با پنجشبه مصادف بود ما خورد ضابطان در یک گوشه تپه قرغه در افتاب نشسته در انتظار رخصتی و اجازه حرکت بسوی شهر بودیم. ناگهان این خبر بخش شد که در کابل کودتا شده و وزیر دفاع به قرغه آمده میخواهد ان را علیه کودتا کنندگان سوق دهد. صاحبمنصبان دو دول بودند و پس از مقداری تعلل بالاخره امر حرکت بسوی شهر را صادر کردند. چون در نزیکی گردنه باغ بالا رسیدیم تانک های که از جانب کودتاچیان در انجا تعبدیه شده بود برما اتش کردند. قوای قرغه که با بی میلی حرکت کرد بود تاب مقاومت نیاورده پراگنده شد. ما هم اسلحه را گذاشته هر یک بسوی خانه خود رفتیم." (30) د فرقې د کفیل

ډګروال محمد علي په وینا "من در اداره خود در فرقه قرغه نشسته بودم، که ستر جنرال رسولی حوالی ظهر با سر و وضع بسیار پریشان و صورت خراشیده و خون الود بقرغه آمد. چون قوماندان فرقه [جنرال محمد صدیق] برای زیارت روضه شاه ولایت مآب بمزار شریف رفته بود، لذا من از لحاظ رتبه کفالت فرقه را هم بدوش داشتم. رسولی برایم گفت: محمد علی بچیم در شهر کودتا شده قوا را بکش و اگر دوست یا دشمن روبرو یت آمد، بزن."[31] دا به عجبه وي، که رسولي په رښتیا دغسې حکم کړی وي، ځکه هغه نه ددغسې حکم کولو واک لاره او نه چا پرې عمل کاوه. مؤلف سراج واي، چې ډګروال "... به وزیر دفاع و لوی درستیز خبر داد که زود از این منطقه دور شوند والا هر دو را گرفتار و جابجا اعدام خواهد کرد." د سراج په نظر دغه ډګروال، چې نوم یې محمد علي او په اصل کې د توپچي لوا قوماندان و، محمد علي نومېده "... قبلاً با کمونستان همدست شده بود."[32] رسولي، سراج او محمد علي درې واړه محمدزي وو.

رسولي او لوی درستیز د ناهیلۍ په حال کې فرقه پرېښوده او په سختۍ سره یې ځانونه د تاج بیګ غونډۍ ته ورسول او هلته له درستیزوال تورن جنرال عبدالعلي وردګ سره جرګه شول، چې او مه فرقه او نور قوتونه څنګه د کودتاچیانو د ناکامولو لپاره په کار واچوي. دوی په دغه اړه په خبرو بوخت و، چې "دفعتاً قصر تاج بیګ هدف حملات توپچی قرار گرفت. اتشباری توپچی از مهتاب قلعه به امر و قومانده دگرمن خلیل الله بابکرخیل... صورت گرفت که در اثر ان قسمت بالایی قصر طعمه اتش شده و از بین رفت."[33] دوی درې واړو د تاج بیګ ماڼۍ پرېښوده او په چاردهي کې د عبدالمجید د دلکشا د ماڼۍ باغبان باشي کور ته، چې د رسولي دوست و، پناه یووړه، خو د هغه زوی کودتا کوونکي پرې خبر کړل. هغوی

دري واړه ونيول او د څرخي پله په پوليګون کې يې بې له محاکمې نه اعدام کړل. د دوی په اعدام سره د پوځ د مرکز سوق او اداري مرکز فلج شو. په ارګ کې د ورځې له يوولسو بجو نه وروسته د پوځ لوړ قومندان ولسمشر محمد داود له ځينو وزيرانو او د خپلې او ورور له کورنيو سره د ياغيانو تر فشار لاندې و او جمهوري ګارډ د جګړن صاحبجان (کندهاري) په سروالی د هغو دفاع کوله.

لکه چې دمخه ويل شوي، اسلم وطنجار د حفيظ الله امين له خوا د ځمکنيو قوتونو ګومارل شوی قومندان د سهار د لسو بجو په شاوخوا کې ډله ډله ټانکونه، زره پوشونه او محاربوي ماشينونه د حکومتي نظامي قطعو د حرکت د شنډولو لپاره ټاکلي وو. هغه قطار ټانکونه، چې د بالاحصار د کوماندويي قطعې د حرکت د شنډولو لپاره مامور شوي وو، هغه يې محاصره او بې وسلې کړه. نورو ټانکونو د خواجه رواش هوايي ډګر، د افغانستان راډيو، مخابراتو وزارت، د ښار لويو څلورلارو، د دهمزنګ محبس، د کورنيو چارو وزارت، د کابل ولايت محبس مخې ته ځايونه ونيول او جګړن فتح د پښتونستان له ميدان نه په جمهوري ګارډ، شير جان مزدوريار د ارګ له اړخ نه او په خپله وطنجار د ارګ له مخې نه په دفاع وزارت باندې وارونه حواله کړل[34]. په دغو وارونو سره په واقع کې د نظام پر ضد کودتا په عمل کې په څرګند ډول پيل شوه.

ولسمشر محمد داود د همدغې ورځې (د ثور 7مه) په څاښت کې د ارګ په ګلخانه کې د وزيرانو خاصه غونډه لرله. په غونډې کې د نورو موضوعګانو ترڅنګ په ګوندي بنديانو بحث کېده. په يوولسو بجو د ګارډ قومندان صاحبجان د غونډې سالون ته ننوت او محمد داود ته يې خبر ورکړ، چې له څرخي پله نه ټانکونه او زره پوشونه راروان دي. په همدغه وخت کې د دفاع

وزارت د ټانک په ګولـ یو ووېشتل شـو. محمـد داود پـوه شو، چې دا د کودتـا نښه ده. د محمـد خـان جلالي لـه خولې نه ویل شـوي، چـې "داود خـان زمـانی که صدای فیر تانک را شنید، باعضای کابینه گفت کـه میتوانیـد از ارگ خـارج شـوید. بعضـی از وزرا خـارج شـدند امـا بعضی دیگـر کـه جلالـی هم از ان جمله بود از ترسـی مرمی هـا در جا های امنـی در داخل ارگ پنهـان شـدند."[35] محمـد داود پـه همدغـه وخت کې هدایت ورکړ، چې د کورنۍ غړي یې د ښار پـه هره برخه کې چې وي، ارګ ته راوړل شي، چې همدغسـې وشـول. محمـد داود صـاحبجان تـه هـدایت ورکـړ، چـې "دروازه هـای ارګ را بـروی کودتـاچیـان بسته کنـد و تدابیـر قـوی دفـاعی اتخـاذ کنـد." پـه خپله، ورور یې محمـد نعیم، د کورنیـو لـه ټولـو غړیـو او لـه سید عبدالالـه او قدیـر نورستاني سره د ګلخانې پـه یوې کوټې کې ننوتل. د مؤلـف سراج پـه وینا "وزرای کـه در مجلـس ګلخانـه بودنـد، بـه محمـد داود خـان مشـوره دادنـد کـه از ارګ خـارج شـده و جانـب یکـی از قطعـات قـوای مرکـز رفتـه و اداره آن را در دسـت ګیـرد." محمـد داود غـه مشوره ومنله. "رئـیس جمهـور از دروازه خـارج شـده میخواست که بموتـر [سیاه ولګا] سوار شود، محمد عمر جان پسرش بدنبال او برامد، در این آن یک فیـر تفنـګ از طـرف قطعـه ګـارد هـر دو را متوقـف سـاخت، عمـر جـان زخـم برداشـت و رئـیس جمهـور دوباره به ګلخانه داخل شد و ګفت: نی همه چیز تمـام اسـت، مسـؤل همـه ایـن بـدبختی شخـص خـودم هستم. هر که نمیخواهد کشته شود، بـه تـالار عقبی برود." محمد داود بـه ځکـه دغـه څـه ویلـي وي، چـې "قراریکـه بعـدها ګفتنـد فیـر کلاشـنکوف بـر داود خان و عمر جان بوسیله یکی از صاحبمنصبان ګارد که طرف اعتماد کلی محمد داود خان بود، صورت ګرفتـه بـود."[36] دغـه کـس د اطفـاییې بلـوک ضـابط بـریدمن ببرک و.

محمد داود که څه هم د ارګ په یوې کوټې کې ایسار شوی و، ناهیلی نه و او له نظامي قطعو سره یې ټلیفون کولی شو. تر دې وخته پورې ټلیفونونه له کار نه غورځول شوي نه وو او ګارډ هم دفاع کوله. ګارډ شاید یواځینی نظامي واحد و، چې پرچمي افسران پکې تر خلقي افسرانو نه ډېر وو، خو پرچمیان په کودتا خبر نه وو. د پرچمي عظیمي په قول "افسران پرچمی که هنوز نمیدانستند طرف مقابل کی است... صاحبجان را در دفاع از گارد یاری میرسانیدند." (37) دوی بیا وروسته د کودتاچیانو خوا ونیوله. په دغه حال کې له جمهوري ساتندویانو نه په متقابلو ګوزارونو پیل و شو. یاغیان په شا وتمبول شول او پېنځه ټانکونه یې له کار نه و غورزول شول او د محمد عمر شریف په نامه یو افسر یې هم ووژل شو. غیر ګوندي یاغي افسرانو میدان پرېښود او یوه خوا بله خوا لاړل. یاغي ګوندي نظامیان پرځای پاتې شول. داسې بریښېده، چې بغاوت وځپل شو، خو له هغه وروسته ورانی په جمهوري ګارډ کې پېښ شو. هلته بې سیمې مخابرې د خلقي افسرانو په لاس کې وې، د محمد داود د مخابرې آمر هم خلقی و. په خپله د محمد داود رول په دغه وخت کې څرګند نه دی، دغومره معلومه ده، چې هغه په دغه حساس وخت کې هم خپل د مخابرې د آمر په وسیله د جمهوري ګارډ آمرانو ته هدایتونه ورکول، خو د هغه خلقي آمر دغه هدایتونه بې له دې، چې محمد داود ورته ځیر شوی وي، تحریفول. څه وخت چې د بې سیمه مخابرې آله به نږدې وه، هغه به یې د هدایت ورکولو په وخت کې له خپلې خولې نه لیرې نیوله، چې ها بله خوا پرې پوه نه شي او په بل حال کې به یې د محمد داود له خولې غوښ امر ور کاوه، چې جمهوري ګارډ دې تر بل امر پورې انتظار وباسي. خلقیان وايي، چې له جمهوري ګارډ سره د مقابلې په وخت کې د بالاحصار د

کماندو قطعې هم چې پرچمي افسران پکې وو، د کودتا پر ضد عمل وکړ، خو قوماندان یې له مېنځه یووړل شو او خلقي شهنواز تڼي قدرت په لاس کې ونیوه. د مهتاب قلعه د توپچي لوا قوماندان خلیل بابکرخېل پرچمي هم یوه قوه له ارګ سره د مرستې لپاره روانه کړه، خو په میرویس میدان کې د ښایسته جان اندړ خلقي له خوا په حېرانوونکي ډول بېرته په شا تللو ته اړ کړه. په همدغه حال کې له ارګ نه په شا تمبول شویو یاغیانو په یوه چال لاس پورې کړ. جمهوري ګارډ ته یې دغه فکر ورسوه، چې پېنځلسم لمبر زغروره قوه د حکومت پر خوا او د یاغیانو پر ضد ده او هغه زر رسېږي او څلورم لمبر قوه تار او مار کوي. په دغه تاکتیک سره جمهوري ګارډ په دوی سخته ونه نیوله او یاغیانو وکولی شول د ارګ چاپېر ځایونه ونیسي او مقاومت وکړي. سره له دې هم د ماسپښین تر څلورو بجو پورې د یاغیانو برې په شک کې و او له ګارډ نه راکټونه پرې اوربدل. له هغه نه وروسته و، چې ارګ له هوا نه تر بمباریو لاندې ونیول شو او پاڼه د کودتاچیانو په ګټه واوښته.

## د جنګي الوتکو غوڅ رول

لکه چې دمخه ویل شوي، وطنجار یوه ډله ټانکونه د بګرام هوايي ډګر ته استولي وو. حکومت لکه چې په همدغه غرمه کې د هوايي قوې اختیار له لاسه ورکړی وي. د خیال محمد کټوازي په وینا: "محمد داود او د هغه د هوايي قواوو لوی قوماندان ]جنرال موسی خان[ ټولو جنګي الوتکو ته د پاڅون کوونکیو پر ضد د قوماندې امر ورکړی وو خو قوماندې یې هېڅچا نه وه منلې، یوازې دوه... پیلوټانو خپلې الوتکې الوزولې وې، خو په هدف یې بمباري ونه کړې." دوی ټولو څکه بمباري ونه کړې، چې د کټوازي په وینا

"ټول يې خلکيان وو." خو هغه اول ټانک چې د خواجه رواش ميدان ته استول شوی و، هلته بې ارتباطه پاتې شوی و "ځکه چې مسؤول کس له دندې څخه تښتېدلی و." دغه کس سيد محمد ګلابزوی و، له هغه وروسته به و چې د يوه بل راوي له مخې ډګروال عبدالقادر د هوايي مدافعې درستيزوال، چې د امين له خوا د هوايي قوتونو په قومندانۍ ګومارل شوی و، په کومې کوټې کې تر څارنې لاندې نيول شوی و، خو هغه خپل نيونکي قانع کړل، چې دی د حکومت ټېنګ پلوی دی او د بګرام په هوايي ځواک سره کودتاچيان ځپلی شي. په هليکوپتر کې بګرام ته لاړ او څنګه چې له ده سره د کودتا شفر و، کودتايي ټانکونو دده مخه ونه نيوله. ده هلته خپل رول سرچپه کړه "تر هغه دمخه ميجر ] سيد[ داود تړون د عبرت لپاره په دېر شو تنو تسليم شويو افسرانو باندې مرمۍ چلولې" او وژلي و[38]. عبدالقادر د بګرام د هوايي ډګر اداره په لاس کې ونيوله او د هغه قومندان ډګرمن غلام سخي يې بندي کړی او دی بيا د خلقي حکومت د رسمي ليکنو له مخې خواجه رواش ته ستون شو. د غه وخت د غه ميدان د هغه له مرکز محل چنار سره د کودتاچيانو په لاس کې وو. ده به بيا له همدغه ځای نه د الوتکو اداره په لاس کې نيولې وي. دده له قول نه ويل شوي، چې ده په خپله هم په الوتنو کې برخه لرلې وه.
ارګ د ځينو په قول په درې نيمو بجو او د نورو په وينا د مازيګر په څلورو بجو د الوتکو تر بمبارۍ لاندې ونيول شو. ما چې له دهمزنګ نه د ارګ له پاسه د لومړي ځل لپاره جنګي الوتکه وليدله، د مازيګر څلور بجې وې. ارګ په دقيق ډول په جوړه جوړه الوتکو سره تر پېنځه نيمو بجو پورې له هوا نه وهل کېده. الوتکې له شير دروازه او تخت شاه تاوېدلې او اريانوونکې پيکونه يې وهل او د ارګ په غوره ځايونو باندې يې راکټونه حواله کول. له همدې امله به وي،

چې ارګ ته ډېر تاوان ونه رسېد. دغو ار يانونكيو الوتنو د هغه پيلوټ له الوتنو نه څرګند توپير لاره، چې د كودتا په سبا يې په مهتاب قلعه كې كورونه په راكټونو وېشتل او يو څو ملكي كسان يې ټپي او تلف كړل. د يوه پيلوټ الوتكه چېرته په چاردهي كې نسكوره شوه، خو پيلوټ يې په پاراشوت سره ځان وژغوره. د الوتكو د همدغه څرګند توپير له امله به وي، چې په كابل كې ويل كېده، چې ددغو الوتكو پيلوټان شورويان وو او كودتا د شورويانو په دستور او همكارۍ شوې ده. ځينو ليكوالو هم همدغسې ويلي دي، خو دا هسې اوازې دي. محمد نذير كبير سراج، چې نظامي متخصص او د اعتبار وړ مولف دی، ليكي چې "همه طياره ها و هليكوپترها توسط پيلوت هاى افغانى سوق و اداره ميشد." دی دا هم وايي، چې "پيلوت روسى در ميدان هوايى بگرام قطعاً موجود نبود."

هو، په همدغه ورځ په بګرام كې د ميګ 21، او سو_7 څلور شوروي معلمان وو، خو هغوی او داسې هم د شوروي مشاورانو ته اجازه نه وه، چې په نظامي فعاليتونو كې برخه واخلي. د ميګ_21 پيلوټان هر يو مير غوث الدين توتاخېل، سنت الله، تيمور، عبدالروف، شرف الدين، رسول، كافي خان، مختار ګل، دوران خان او وهاب وو. د سو_7 پيلوټان حكيم، شير محمد، ګليار او رحيم وو. دوی ټول خلقيان وو[39]. د فراه د شين ډنډ له نظامي ډګر نه د كابل له پاسه د حكومت په خوا دوه يا څو الوتكې ښكاره شوې، خو هغه زر بېرته ستنې شوې او كوم اثر يې ونه كړ.

الوتكو په ارګ باندې د مازيګر تر پېنځه نيمو بجو پورې الوتنې وكړې او راكټونه يې پرې حواله كړل. دغو الوتكو د ارګ جمهوري ګارډ ارام كړ او د محمد داود كلابندي يې نوره هم ټينګه كړه. د يوې اوازې له مخې په كابل كې د امريكې له سفارت نه، چې ارګ ته نږدې و، علامه ور سېدله چې ځان سفارت ته ورسوي، خو هغه د غه

بلنه ونه منزله. دا هغه وخت و، چې ګوندي لويان له توقيف خانې نه ازاد شوي او افغانستان راډيو ته راوستل شوي وو. د هغو په ورتګ سره د حکومت د چلولو کار کود تا کوونکيو ته اختصاص وموند او حفيظ الله امين د خلق دموکراتيک ګوند د مخکښ غړي په توګه ډګر ته ووت.

## د ګوندي لويانو ژغورنه

لکه چې دمخه ويل شوي، يوه ډله ټانکونه او زغروال قوتونه د کورنيو چارو وزارت د نيولو لپاره مامور شوي وو. هلته د هغه وزارت او ځينو نورو وزارتونو د څانګو آمرانو د کومې لايحې په اړه ګډه غونډه لرله. داسې ښکاري، چې دوی کومه امنيتي کشاله په مخ کې نه لري، ترڅو چې په ښار کې ډزې د هغو غوږونو ته ورسېدلې. بيا نو جنرال محمد طاهر د ژاندارم او څارندويانو عمومي قوماندان د وزير په نه شتون کې د وزارت د څانګو آمران وسله وال کړل، خو وخت له وخت نه تېر و. کوډتايي ټانکونه په اسانۍ سره په دوی غالب شول، بې وسلې يې کړل او د وزارت په انګړ کې يې د ګدو په شان پڅ کړل. جنرال طاهر وروسته ووژل شو. په همدغه وخت کې غني ساپي څان کودتاچيانو ته د "ملګري" په توګه وروپېژندو او هغو هم پرې باور وکړ او د هغه په لارښودنه ګوندي بنديان ازاد شول. د وزارت د امنيتي څانګو سروالان د نظام ټينګ پلويان وو، خو سرتېري يې نه وو. په يوه روايت د کورنيو چارو وزير قدير نورستاني، شايد له ارګ نه د ولايت د امنيت قوماندان مير ګل ته په ټلفون کې امر کړی و، چې بندي ګوندي لويان له منځه يوسي، خو هغه نه دا چې امر يې پر ځای کړی نه و، د هغه ثبت کړی اوواز يې وروسته کودتاچيانو ته ورکړ. سره له دې هم هغوی وروسته دی اعدام کړ. د ثور په اومه که څه هم بندي ګونديانو امنيت له خطر سره مخامخ کړی و،

هغوی په خپل حال پرېښودل شوي وو او د ولايت څارندويانو د ډزو په اورېدلو سره په بامونو کې مورچلونه نيولي وو.
څه وخت چې د يوه جيپ په مخ کې دوه ټانکونه د ولايت توقيف خانې ته ور سېدل، غني ساپي په هغو غږ کړې، چې "پوليس های جوان وطن پرست! پايان شويد، انقلاب است. اين انقلاب به نفع ما است، رژيم داود شاهی برای ابد از بين رفت." افسران له بامونو نه کوز شول، د يوه بل روايت له مخې دغه افسران وروسته له هغه کوز او تسليم شول، چې کودتاچيانو يو نه تسليم کېدونکی افسر وواژه. له همدې امله به و، چې د توقيف خانې سهيلي دېوال يې په زور چپه کړ. له هغه وروسته د کابل والي عبدالحکيم په شخصي موټر کې او د امنيې قومندان ګل مير او نور په ملکي کاليو کې پياده وتښتېدل. د ولايت هغه وسله واله قطعه، چې دوره په خوله کې پرته وه، هم تيته شوه. په دې ډول د بنديانو د ازادولو لپاره لار خلاصه شوه. د توقيف خانې ور هم خلاص شو. ددغې ورځې له ګډوډۍ سره د بنديانو کوټې خلاصې وې، خو هغوی ولچک وو. د توقيف خانې له آمر محمد ابراهيم نه د ولچکو کلي ګانې واخيستل شوې او بنديان يو په بل پسې ټول له کوټو نه واېستل شول. په دغه وخت کې د دوی له وينااوو څخه مهمې نتيجې او بصيرتونه راوځي. غني ساپی ليکي: "با اطاق نمره اول داخل شديم. سلام دادم و گفتم تره کی صاحب! تبريک، انقلاب به پيروزی رسيد. برخيزيد، با تعجب گويا اينکه هيچ خبری ندارد، از جا برخاست. الچک هايش را باز کردم، دست مرا محکم گرفت و گفت: چه ميگوئيد، انقلاب چه؟ انقلاب از طرف کی؟ راست بگو. گفتم: ديگر من هم نميدانم ولی قوای چارو پانزده زرهدار انقلاب را شروع نموده، وزارت داخله را اشغال نموده اند."
ساپی خپلو خبرو ته دوام ورکوي: "در اطاق نمره

دوم داخل شدم، سلام دادم، الچک های رفیق کارمل
را باز نمودم. پرسیدند: چه وضع است؟ گفتم
انقلاب اغاز شده. پرسیدند: از طرف کی انقلاب
اغاز شده است؟ گفتم از طرف قوای 4 و 5
زرهدار... رادیو افغانستان بتصرف قوای انقلاب
است. جهت شما امده ام، تا شمارا برادیو
افانستان ببرم. بطرفم دقیق نگاه کردند و هیچ
نگفتند."

نور محمد تره کي او ببرک کارمل له خوښۍ نه
یو بل په غېږ کې ونیول، خو په تعجب سره یې
وویل، چې "این چه حالت است، از کدام طرف
است؟" ساپي په نتیجه کې وایي، چې "از صحبت
های شان معلوم گردید که انقلاب بدستور مستقیم
شان صورت نگرفته است" خو د حفیظ الله امین په
ازاد پدلو سره حال بل ډول ښکاره شو. هغه چې
څومره وخت په بندي خانه کې و، نزدې ټول وخت
یې په خوب کې تېر کړی و. په مړه ګېډه او
ارامي سره یې ډوډۍ خوړلې او هر ځل یې له چای
سره یو ټابلېټ سپرین تېر کړی او ویده شوی و.
داسې برېښېده، چې دی د هېڅ څیز په فکر کې نه
و، نو ځکه یې له خلاصېدلو نه وروسته په داسې
حال کې، چې په ښار کې ډزې کېدلې، دی په رانه
وچلي او خندانه څېره له کوټې نه ووت. غني
ساپی لیکي: "وقتیکه امین از اطاقش بیرون آمد،
خندان بنظر میخورد و برای رفیق تره کی و رفیق
کارمل انقلاب را تبریک گفت." د یوه بل راوي په
وینا په همدغه وخت کې تره کي امین وپوښته، چې
" دا څه حال دی؟" امین ورته کړه، چې "د انقلاب
امر ورکړل شوی دی." تره کي بیا وویل، چې "لکه
چې ټول برباد شوو." امین بیا دغومره وویل، چې
اوس خو د انقلاب امر ورکړل شوی دی." دا وخت د
مازیګر پېنځه نیدمې بجې وې، امین د تره کي او
کارمل پرخلاف له خپل سملاسي ژغورونکي نه د ډزو
په اړه پوښتنه ونه کړه. دی پوهېده، چې څه وضع

ده، آزاد شوي ملګري يې خپلو نظامي ژغورونکيو ته وروپېژندل او افغانستان راډيو ته د تګ په فکر شول. ساپي ورته وويل، چې هغه د دوی د ملګرو په لاس کې ده او د کودتا موقتي هستوګنځی ټاکل شوی دی. په دغه وخت کې د خلقي حکومت د کالنی له مخې د يوه ناڅاپه کس له خوا غږ شو، چې "چېرته ځئ؟ په بريالیتوب ډاډ شته؟" دغه کس ببرک کارمل و. امين غږ کړ، چې "هر څوک چې نه غواړي لاړ شي، په زندان کې دې وي." خو کارمل زندان هم نه غوښته او زړه نازړه له نورو سره په زغرورۍ و سيلۍ کې ننوت او ټول د مازيګر په شپږو بجو افغانستان راډيو ته ورسېدل او هلته امين د ټولو په خوښۀ له 32 کلن اسلم وطنجار نه د کودتا سروالي په خپل لاس کې ونيوله.

## د شپې ټينګار او د حکومت نسکورېدنه

افغانستان راډيو د ستار ختګر په سروالی د يوه ټانک له ورر سېدلو نه وروسته د کودتاچيانو لاس ته ورغله او خيال محمد کټوازي د هغې يو کارمن او د خلقيانو د نظامي ارتباط غړي د هغې اداره ترلاسه کړه. څنګه چې د کودتا نتيجه لا معلومه نه وه، په راډيو کې يې خبر خپور نه شو، خو عادي خپرونې ودرول شوې او خوږې نغمې خپرې شوې. خلک نه پوهېدل، چې څوک څه غواړي او څه کوي؟ د عادي خپرونې په دربدلو سره ځرګنده شوه، چې نارامي د حکومت د مخالفانو ده. تر هغې دمخه ويل کېده، چې حکومت ولاړ شوی، کمونستان ځپي. په اصل کې د ګوندي لويانو له بندي کېدلو نه تر دغه وخته پورې ويل کېده، چې ښه شوه، چې محمد داود د دوی په ټکولو پيل وکړ، تر څو وطن د دوی له خوا له خطر نه ژغورل شوی وي. په کابل کې خلکو په عمومي ډول او نورو ګوندونو په خاص ډول خوښي کوله، خو په

ښار کې د ټانکونو په ګرزهار باندې څوک نه پوهېدل، ټانک ستان او په ټانکونو سپاره ما شین وال په سړکونو باندې ګرځېدل او ځارو ښکارېدل. له اړ و دوړ نه خلک په وېره کې شول، هر څا زما په ګډون کوښښ کاوه، چې خپل واړه او د کورنۍ غړي له ښوونځیو او نورو ځایونو خپلو کورونو ته بوځي، خو د ارګ په بمبارۍ سره ځرګنده شوه، چې نظامیان د حکومت پر ضد پاڅېدلي دي. له راډیو نه د ګوندي لویانو له ورتګ نه وروسته په اغېزمنه توګه کار واخیستل شو.

کارمل د کود تا په بري باور نه لاره، دا وخت په ځینو نظامي قطعو په تېره په جمهوري ګارډ کې مقاومت روان و. د کټوازي په وینا کارمل د جنګي وضع د راپور له اورېدلو نه وروسته "په وارخطایی سره په امین باندې خوله راواړوله، چې ولې دې د ګوند د رهبرۍ له اجازې پرته په خپل سر د پاڅون امر ورکړی دی." امین په ځواب کې وویل، چې "ماته تره کي صاحب اجازه راکړې وه، چې که داود خان د ګوند په مشرتابه باندې حمله وکړي، باید له ځان نه دفاع وکړو." بیا "کارمل سملاسي تره کي ته مخ واړاوه، خو تره کي دا خبره ومنله، چې امین ته یې د ګوند د مشرتابه د زنداني کولو په صورت کې د انقلابي عمل دستور ورکړی و." کارمل بیا هم کرار نه شو او امین ته یې مخ واړوه، چې "ولې دې شوروي ملګري نه دي خبر کړي؟" هغه په ځواب کې وویل، چې "د شوریانو اجازې ته مې اړتیا نه درلوده او نه مې وخت درلود." د کټوازي په وینا په دغه وخت کې کارمل په امین تېره ورته او وروستي په دفاعي حال کې و. کټوازي د پنجشیري دغه ادعا ردوي، چې وایي امین غوښتل کارمل "صحرایي محاکمه" شي، ددې لپاره چې د هغه له شر نه د تل لپاره خلاص شي، خو تره کي امین دغه

کار ته پرې نه شوده. کټوازی دا هم وايي، چې
"د ثور د انقلاب په شپه کارمل له امين سره د
تعرض په حالت کې او امين د فاعي دريځ درلوده.
سربېره پر دې، چې امين صحرايي محاکمې ته هېڅ
اشاره هم نه وه کړې، بلکې هغه يې کوله چې د
کارمل زړه خوشحاله کړي، ځکه چې په پاڅون کې
ځينو پرچميانو هم ګډون درلود." کټوازی
زياتوي، چې "امين په داسې حساسو او نازکو
شرايطو کې د کارمل محاکمې ته اړتيا نه درلوده
او په دې پوهېده، چې د پاڅون راتلونکي د امين
په ګټه ده او په دې شرايطو کې د محمد داود د
واکمنۍ په وړاندې د کارمل او پرچميانو مرستې
ته اړتيا ليدل کېږي." خو کارمل لا هم په
اندېښنه کې و او بل وړانديز يې دا و، چې يا د
غلام جيلاني باختري يا د کوم ځاځي په کور کې پټ
شو او "د شوروي دوستانو په مرسته ځانونه له
خطر څخه الونيا کړو" خو تره کي او امين دغه
وړانديز و نه مانه او ورو ستي وروسته له هغه،
چې د بر ياليتوب ډاډينه يې ور کړه، وغو ښتل چې
"د برياليتوب يوه اعلاميه وليکل شي او... نور
محد تره کی... هغه له راډيو څخه اعلان کړي."
خو دا ځل کارمل له دغه وړانديز سره مخالفت
وکړ. "وروسته دا پرېکړه وشوه، چې د پاڅون
عمومي قومندان هر يو قادر خان او وطنجار دې
دا اعلاميه له راډيو څخه خلکو ته واوروي."
اعلاميه شاه ولي وليکله او وطنجار او قادر د
هغې د پښتو او فارسي متن په ترتيب سره
واوروه. اعلاميه د افغانستان د وسله وال پوځ د
نظامي شورا په نامه وه، چې په هغې کې د محمد
داود د وژل کېدلو خبر ورکړ شوی و، په داسې
حال کې چې هغه ژوندی و او جمهوري ګارډ له هغه
نه د فاع کوله، خو اعلاميې په پوځ کې د محمد
داود د پلويان ناهيلي کړل او له بلې خوا د
مهتاب قلعه د توپچي اته اتياومه لوا، چې تر

دي وخته يې د حکومت ننګه کوله، د کودتاچيانو په خوا واوښتله. سره له دې هم ګونديانو په افغانستان راديو کې توخته ونکړه او له امين، وطنجار او کتوازي پرته نور ټول د اعلاميې له خپرېدلو نه وروسته د خواجه رواش هوايي ډګر مرکز محل چنار ته ولېږدول شول، په دې هيله، چې که وضع خرابه شوه، دوی به په الوتکه کې کوم بل خوندي ځای ته لاړ شي، خو دغسې پېښه ونه شوه او دوی "سبا ګهيځ د لمر څرک سره... بېرته راډيو ته راغلل."

جمهوري ګارډ د صاحبجان په قومندانۍ هغه ځواک و، چې د هغه مرستيال او د اوپراسيون امر فضل الرحمن تاجيار په وينا د ثور د اتمې د سهار تر شپږو بجو پورې يې په ټينګه دفاع او بريد وکړ، د ياغيانو اته ټانکونه يې له کار نه وايستل، اتکل پنځوس تنه ياغيان يې له منځه يوووړل او لکه چې دمخه هم ويل شوي، ياغيان يې په شا تللو ته اړ کړل.

جمهوري ګارډ له 1600 افسرانو، خوردضابطانو او سرتېرو نه په بې لو مسلکي واحدونو کې جوړ و، د تاجيار په وينا "...بجز از عده محدود [معدود] کمونست خاينين بوطن و ناموس، جوانانيکه در ګارد جمهوری داود خان بامن همکار بودند... از جمله صادق ترين، پاکترين و باناموس ترين اولادهای افغانستان بودند."

تاجيار دا هم وايي، چې "ليکن موجوديت نه نفر صاحبمنصبان خلقی و پرچمی و تعدادی از هواخواهان فرصت طلب آنها در ګارد و نه رسيدن کمک و تقويه از قدمه های بالاسوق و اداره و تشريک مساعی قطعه را شديداً مختل ساخته بودند. انها منافقانه ظاهراً وفاداری خودها را با رژيم جمهوری و سردار محمد داود خان اظهار مينمودند، ولی در خفا اګاهانه مقاومت و مدافعه قطعه را تخريب و خاينانه تسليم نمودن قطعه را به رفقای ملحد و کمونست خود تبليغ و

تلقین میکردند." د تاجیار په وینا پېژندل شوي "کمونستي افسران" د کشف آمر جګتورن عبدالحق علومي، د اوپرا سیون مرستیال جګړن سید جان او دویم پیاده کنډک قومندان جګړن محمد عزیز حساس وو، خو دوه خلقي افسران اغا محمد د مخابرې آمر او لومړی بریدمن جمعه خان د ګارد د مخابرې ماشین په له کار نه غورزولو کې د کودتچیانو په بري کې موثر ثابت شول. ګارد د ثور اتم د سهار تر شپږو بجو پورې د قومندان صاحبجان او د هغه د مرستیال تاجیار په سروالۍ غټ بریالیتوبو نه ترلاسه کړل، خو ګارد د هوايي قوې په دفع کې پاتې راغی. تاجیار په خپله محمد داود ته د راپور ورکولو په وخت کې همدغسې وویل، چې "ضربات قوای هوایی را دفع و طرز نموده نیمتوانیم، زیرا که سلاح و وسایط ضد هوایی نداریم." (40)

د کتوازي په وینا په راډیو کې د اعلامیې له خپرېدلو نه وروسته "ټول پوځ له مقاومت نه لاس واخیست او د جمهوري ګارد قومندان هم د ماښام د تیارو په رانزدې کېدلو سره تر ګهیځه پورې د اوربند غوښتنه وکړه او دا غوښتنه نور محمد تره کي ومنله." خو د سهار په درې بجو "یو ناڅاپه په راډیو باندې د ګارد له خوا د مرمیو باران پیل شو، د راډیو ودانۍ کړکۍ یې ټولې ماتې کړې، امین مجبور شو قادر خان ته یې خبر ورکړ او هغوی په شپه کې د ګارد دپاسه الوتنې پیل کړې، خو د ګارد قومندان مجبور شو دوباره اوربند ته بیا غاړه کېږدي."

د ثور انقلاب په نامه کتابګوټي کې ویل شوي، چې د الوتکو په زور "قبل از روشنی روز افسران و سربازان رن [گارد جمهوری] به تسلیم [شدن] مجبور شدند." تاجیار هم د هغه په ضمني تایید کې وايي، چې د سهار په درې نیمو بجو ده د دویم ځل لپاره ولسمشر محمد داود ته ځان د هدایت ترلاسه کولو لپاره ورسوه، خو دغه ځل هغه

ورته کړه، چې "بچیم، جوان هستید، بروید خود را تسلیم کنید، من تصمیم خود را گرفته ام."
قومندان صاحبجان هم ورته وویل، چې " رییس صاحب حجمهور تصمیم خود را گرفته است، شما بروید، قطعه را جمع و امر بدهید سلاح های خود را به دیپوها تحویل کنند." خو "قطعه گارد همه بیک اواز عدم موافقت خود را ابراز کرده و سلاح را بزمین نمیگذاشتند." تاجیار وایي، چې په پای کې د محمد داود امر "ساعت 6 بجه صبح یعنی بعد از [سپری شدن] دو نیم ساعت تعمیل نمودم."
د تعجب ځای دی، چې کودتاچیانو د ګارد تسلیم شوی منسوبان ونه وژل، سره له دې چې دوی هم ټینګ مقاومت کړی وو او هم یې کودتاچیانو ته تاوانونه اړولي وو. له دوه اونۍ بندي کولو نه وروسته نژدې ټول یې ازاد کړل، خو تاجیار په ټوله خلقي دوره کې بندي و ساتل شو او د یوه بل راوي په وینا"... توفیق احمد عزیزي، قومانندان سابق ګارد جمهوری صاحبجان را از ستیشن رادیو برد و بدست خود بقتل رسانید.(41)"
د ثور انقلاب په نامه کتابګوټي کې دا هم ویل شوي، چې په راډیو کې د اعلامیې له خپرېدلو نه وروسته "از داخل ارګ داود علیه خلقی های انقلابی فیرها ادامه پیدا کرد و فرقه هفت ریشخور نیز په مقاومت خود ادامه داد." د شپې په تیاره کې د ریشخور له فرقې نه یوه غټه پلې قوه له ارګ سره د مرستې لپاره د ښار په لور وخوځېده. دغه قوه د ډګروال محمد هاشم )کندهاري( په قومندانۍ ان تر دهمزنګ پورې ورسېدله. په دغه شپه د کابل اسمان په نریو وریځو پټ او د الوتکو د الوتنو لپاره برابر نه و، سره له دې هم الوتکو الوتنې وکړې او په دغې قوې باندې یې راکټونه حواله کړل او هغه یې پرشا تګ ته اړ کړه. ډګروال محمد هاشم ونیول شو او سم له لاسه اعدام شو. ددغې قوې په

خورېدلو او بیا د جمهوري ګارډ په تسلیمېدلو سره د ایسار شوي محمد داود د ملاتیر مات شو او کودتاچیان د بري درشل ته ورسېدل.
د ثور د اتمې ورځې په سبا د کودتاچیانو لپاره غټه ستونځه له ولسمشر محمد داود سره د چلند موضوع وه، چې په ارګ کې ایسار و. په دې اړه هم روایتونه ډول ډول دي. دستګیر پنجشیری وایي، چې د هغې ورځې په سبا محمد داود تورن اقا محمد کندهاري، د ګارد د مخابرې آمر په لاس پیغام واستوه، چې "... مایل است با اسلم وطنجار، قادر هراتی و شیر جان مزدور یار ملاقات کند." خو تره کي دغه غوښتنه ونه منله او وېرېده، چې محمد داود به په هغوی ډزې وکړي. پنجشیري په عین حال کې دا هم وایي، چې "ببرک کارمل طرفدار برخورد با انعطاف با سردار داود و خا ندانش بود. او اصرار میکرد که باید سردار داود و خانداانش کشته نه شود." "اما سلیمان لایق دور باره شیوه برخورد با سردار داود در پاسخ تره کی گفت: دا فرعون دې ووژل شي." خو لایق اوس دا یو تور ګڼي او ردوي یې.[42]
په خپله پنجشیری د محمد داود وژل کېدل غوښتل، خو دغه مطلب یې په ضمني ډول ادا کړی دی. خیال محمد کتوازی د پنجشیري د روایت پرخلاف وایي، چې په دغه ورځ نه یواځې کارمل، بلکې تره کي او امین هم د محمد داود وژل نه غوښتل او درې واړو له هغه سره پوهاوی غوښته، خو کتوازی هم وایي، چې تره کي قادر او وطنجار ته اجازه ورنکړه، چې له محمد داود سره وګوري، که څه هم محمد داود د یوه قاصد په لاس له هغوی سره لیدل غوښتي و. تره کي غوښتل، چې له محمد داود سره په خپله په افغانستان راډیو کې وویني او دد غه مقصد لپاره یې د کماندو یوه وسله واله ډله د تورن امام الدین په مشری محمد داود ته واستوله او په عین حال کې یې ما (کتوازي) ته "هدایت راکړ، چې د محمد داود دپاره یوه

مناسبه کوټه له پاکو څوکیو او مېزونو سره چمتو کړم." دی پسې اضافه کوي، چې "زه لا په کوټه کې لګیا وم، چې قادر خان او وطنجار یې د کوټې د کنټرول د پاره راولېږل او کله چې موږ د کوټې له سمبالولو څخه خلاص شو، یو افسر چې خپل مټ یې په لاس کې ټینګ نیولی و... راډیو ته رانووت... نوموړي افسر وویل، چې داود خان ووژل شو." کارمل او پنجشیري ددغه خبر په اورېدلو سره هورا کړ، چې د کمونستانو د خوښۍ نارې دي.

د محمد داود د وژل کېدلو په هکله هم اتفاق نه شته، د پنجشیري په وینا امام الدین په محمد داود باندې غږ کړ، چې "به فرمان کمیته مرکزی حزب [دموکراتیک خلق] محکوم هستید و خود را تسلیم کنید." خو محمد داود "به قدیر نورستانی و فرزند خود دستور صادر کرد تا به سوی امام الدین و دیگر سپاهیان و همچنین به زنان و کودکان بیگناه خانداناش اتش بگشایند... و انان اخرین فرمان سردار محمد داود را بدون تزلزل اجرا کردند. بسوی امام الدین و سربازان قطعه کوماندو اتش گشودند." [43]

د امام الدین له خوا له محمد داود نه ددغسې "تسلیمۍ" غوښتنه د "پوهاوي" له هغې روحیې سره نه جوړېږي، چې تره کي غوښته او په هغه سربېره که د محمد داود له زوی نه عمر داود مراد وي، هغه یوه ورځ دمخه ټپي شوی او په غالب احتمال مړ شوی و.

د کټوازي روایت د پنجشیري له روایت نه متفاوت او امام الدین ته منسوب له روایت سره سر خوري، چې زر به راوړل شي. کټوازی وایي، چې "کله چې سردار داود له امام الدین څخه پوښتنه کړې وه، چې چېرته مې بیایي؟ هغه په ځواب کې ورته ویلي و، چې راډیو ته. په همدغه وخت کې داود خان خپله یو ناڅاپه په امام الدین باندې

کلا شنکوف چلولی و، چې ټولې مرمۍ د امام الدين ترمټ وتلې وې او ]هغه[ په ځمکه لوېدلی و." بيا نو "د امام الدين سره ملګرو عسکرو د خپل ځان له وېرې په مقابلو ډزو کې داود خان د مرميو هدف ګرځولی او وژلی وو." په خپله د امام الدين له خولې نه روايت د اصلي ټکي په اړه، چې د محمد داود وژل کېدل دي، متفاوت دی. دده په روايت د ثور په اومه د شپې په نهو بجو حفيظ الله امين ورته ويلي وو، چې "د ر ارګ و ريشخور مقاومت ادامه دارد. اګر بزودی اين مقاومت ختم نه شود، امکان دارد بعضی از قطعات که تا حال شاهد و ناظر صحنه بوده و بيطرف مانده اند، بذفع داود خان فعال و متحرک خواهد گرديد... لذا هر چه زودتر موضوع ارګ در قدم اول خاتمه يابد." امين بيا ده ته وويل، چې "افسران بلند رتبه شامل کودتا پيشنهاد کردند که برای حصول اين مطلب ضروری است که برعلاوه فشار هوايي و توپچی با تعرض افراد پياده بداخل ارګ رخنه ايجاد ګردد و مقاومت ارګ از داخل از بئن برده شود." امين بيا ورته امر وکړ، چې "فردا قبل از طلوع افتاب اماده تعرض باشيد."

امام الدين، چې ځان يې د يوه کماندويي ټولي قوماندان باله، وايي چې د ثور په اتم سهار "من با دو نفر از افرادم با تاکتيک پياده خود را نزد يک قصر ګلخانه رسانيديم... به کلکين نزد يک دروازه پهلوی سالون ګلخانه يک نفر پهره دار استاده بود، ذريعه کلاشنکوف خود را بالای سرما نشانه ګرفت و نام مرا [امام الدين] ګرفته ضمن دشنام ګفت که تو انګور خور زرغون شهری... امده يی مرا تهديد ميکنی؟ چون ديدم پهره دار مرا شناخته است، من هم متوجه شدم که خواجه عبدالمجيد کلنګاری است که او هم از افسران ګارد بود، فوری بالايش صدا کردم که ميخواهم با

داود خان صحبت نمایم تا از خطر از بین رفتن
نجات پیدا کند. خواجه مجید کلنگاری گفت: این
قسم گپ بزن، گپ تسلیمی را برایم مزن.... او
به همکاری یک نفر صاحب منصب دیگر بعد از
اجازه از داود خان دروازه را برایم باز کرد.
من پیش و دو نفر از سربازهایم به عقب من
بودند، که با طاق داخل شدیم... به مجرد داخل
شدن با طاق به داود خان رسم تعظیم و سلام عسکری
را انجام دادم. داود خان که تفنگچه بدست
داشت، گفت: چه گپ است؟ گفتم صاحب گپ از
تیر است، تسلیم شوید. داود خان به قهر گفت:
من هرگز تسلیم شما نخواهم شد." امام الدین په
ځواب کې وویل، چې "به شورای انقلابی قوای مسلح
تسلیم شوید. داود خان گفت: من هرگز تسلیم شما
نخواهم شد."د امام الدین په قول "در این اثنا
داود خان ذریعه تفنگچه که بدست داشت بالای من
فیر کرد، که بدست من اصابت کرد و شدایداً
جراحت برداشتم... دیگر بین افراد من و پهره
داران فیرها مبادله شد که در نتیجه آن داود
خان کشته شد.[44]"

د ابو مسعود فاروقي په وینا بیا "امام
الدین با یک دسته کلاشنکوف را طرف داود خان
نشانه گرفته او را به قتل رسانیده است. بعد
سربازان معیتي امام الدین داخل اطاق شده همه
کسانی را که داخل اطاق بوده به قتل رسانیده
است.[45]" ددغه روایت له مخې ټول هغوی، چې له
محمد داود سره په کوټه کې وو، ووژل شول، نه
هغوی چې په بلې کوټې کې وو.

د یوه بل راوي په حواله، چې نه غواړي نوم
یې واخیستل شي، ښځې او ماشومان په اصلي کوټه
کې او نارینه د ناستې یا په کوټه یا هال کې
وو. پرېکړه شوې وه، چې هېڅوک به ژوندي نه
تسلیمېږي. ددغې فیصلې له مخې ویس د محمد داود
زوی د سهار په مهال د ښځو کوټې ته ننوت، په
کلاشنکوف سره یې اول په خپلې ښځې، بیا په خپلو

ما شومانو او مور او نورو ډزې وکړې او په اخر کې يې خپل ځان وواژه. شينکۍ، د محمد داود لور هم ځان په خپله وواژه. د راوي په وينا ويس په هغه وخت په دغه بېساري کار لاس پورې کړی و، چې پلار يې او نور وژل شوي وو. غوث الدين فايق هم دغې تراجيدي ته په لنډ ډول اشاره کړې ده. که دغه روايت رښتيا وي، محمد داود به د خپلې کورنۍ په غړو په تېره په خپلو لمسيانو باندې بېجوړې غټ ظلم کړی وي. هغه نه ددې حق لاره او نه دا يقيني وه، چې کودتاچيان به هغوی ووژني يا يې سپکاوی وکړي. ده په واقع کې په دغې بې رحمۍ سره د کودتاچيانو کار لا اسان کړ.
د مؤلف نذير کبير سراج په قول د ارګ په ګلخانه کې له ولسمشر محمد داود نه سربېره د هغه زامن، محمد عمر، ويس او خالد، د هغه لوڼې زرلښت او شينکۍ، د هغه لمسيان ويس، حارس، وايګل او لمسيانې يې هيله او غزال، مېرمن يې زينب او خور يې عايشه، ننګور يې شيما، ورور يې محمد نعيم، ورېره يې زرمينه، د ورور لمسۍ يې صفورا، نظام الدين د شاه محمود غازي زوی، د هغه مرستيال عبدالاله، د کورنيو چارو وزير عبدالقدير نورستانی او نور ووژل شول. په دغه ورځ د ولسمشري ارګ په ګلخانه کې شل تنه ووژل شول او اووه تنه ټپي شول. ټپيان په روغتون کې بېرته روغ شول، د محمد داود بله لور درخانۍ به هلته نه وه، چې هغه ژوندۍ پاتې ده او اوس په سويس کې ژوند کوي. څه وخت وروسته د محمد داود د توسعوی کورنۍ دوه نور غړي عبدالله روکی او صلاح الدين غازي په نوي رجيم کې بې له محاکمې نه اعدام شول[46].
د افغانستان په تاريخ کې د واکمنې کورنۍ د ټولو نارينه وو، ښځو او ماشومانو دغسې ټولوژنه ساری نه لري. دا هغه درنده کورنۍ وه، چې سروال يې محمد داود له څلوېښتو کلونو نه زيات وطن او افغانانو ته په ملکي او نظامي

ډګرونو کې خدمت کړی و. په د غومره اوږدې مودې کې موږ څو محمد داود وینو.
هو، هر یوه یې زورواکي کوله په اول کې ډېره او په اخر کې لږه، خو د هر یوه موخه د افغان ژوند ښه کول، د وطن ودانول او د افغانانو سرلوړي کول و. بې له دې، چې خپل ځان او خپله کورنۍ شتمنه کړي. محمد داود د وطن د ابادۍ په لار کې خپله شخصي شتمني هم لګولې وه، آن تر دې چې د هغه د یوه وزیر په وینا ځان یې خوار کړی هم و. مهمه دا هم ده، چې هغسې چې محمد داود په ملي چارو کې د تقوا او نضباط خاوند و، په کورنیو چارو کې هم و. هېڅ نه دي اورېدل شوي، چې د محمد داود زامنو، لونو یا مېرمن به له خپل مختار مقام نه ناوړې استفاده او له خلکو سره بد سلوکي کړې وي. زامنو یې په شوروي اتحاد کې په خپل لګښت زده کړې، کړې وې، نه د دولتي سکالرشپ یا بورس له لارې. لور یې زرلښتې د ادبیاتو پوهنځی په هنري څانګه کې د یوې عادي افغانې په شان زده کړه کوله او د ډوډۍ خوړ لو په سالون کې یې له نورو زده کوونکیو سره یوځای عادي ډوډۍ خوړله. د تدریسي مدیر وزیر تڼیوال په وینا هغې په خپلې سوانح کې ځان د یوه مامور لور ښودلی و، په داسې حال کې چې پلار یې د افغان دولت آعلی آمر و. هغه لا اول په عامه سرویسونو کې پوهنتون ته تلله، تر څو چې ښوونکي یې نامتو انځورګر امان حیدر زاد د کورنیو چارو وزیر په موضوع خبر کړ او هغه بیا ددې لپاره، چې کومه ناوړه پېښه ونه شي، د شخصي موټر ترتیب وکړ، خو بیا هم هغه به له پوهنتون نه لیرې له موټر نه ښکته شوه او پوهنتون ته به یې په خپله ځان رساوه. د ښوونکي سید حسین سعید په وینا، ویس داود په پولي تخنیک کې د یوه متواضع عالي ښوونکي په شان سلوک کاوه، چا چې د محمد داود مشر زوی عمر جان له نزدې نه لیدلی ډېر یې ستایلي دي.

د هغه ملي شعور د غومره پیاوړی و، چې په اخر کې د خپل تره محمد نعیم په شان د ځینو ملي مسئلو په سر له خپل پلار سره مخالف شوی هم و، نو د دوی ټولوژونه غټه انساني او ملي تراجیدي وه.

که وژنه په نظر کې ونیول شي، ددغې تراجیدي مخه به نیول شوې وای. محمد داود او نور ټول ټینګ ایسار وو، له لاندې سره یې اړیکې شلېدلې وو او محمد داود هم مړ اعلام شوی و. طبیعي ده، چې درې څلور ورځې وروسته دوی ټول له مقاومت نه لوېدل، خو هغوی د غه حال ته پرې نه ښودل شول. دغې ټولوژنې وښودله، چې په حکومت کولو کې افغان وژنه غوره لار ده. له بده مرغه چې دا نه یوازې د خلقیانو او پرچمیانو غوره لار شوه، د تنظیمي مجاهدو او طالبانو لار هم شوه، سره له دې چې په هغې سره وطن ورانېده او افغانان وژل کېدل.

دا چې د کودتا په دوو ورځو کې څومره افغانان ووژل شول، معلومه نه ده. د خلقي حکومت رسمي لیکنه یې سل یا اویا ګڼي، خو د غه نخښې شمېر د حقیقت پرخلاف دی. د نبي عظیمي په قول په دغو ورځو کې به یو یا یو نیم زره او د عاصم اکرم په اټکل درې زره افغانان وژل شوي وي)47(. د وژل شویو افغانانو شمېر شاید له وروستي اټکل نه هم ډېر وي، ځکه چې ټولو هغو افغانانو، چې له برحال نظام نه دفاع کوله او هغوی هم چې د کودتاچیانو مخالف ګڼل کېدل او یا د حساسو دولتي مقامونو خاوندان وو، ځای پر ځای وژل کېدل. تلفات د ریښخورو په فرقه کې بې خي ډېر وو، نو دغه کود تا د سرطان د کود تا پرخلاف د زرګونو افغانانو په وژل کېدلو سره سرته ورسېده. بده یې لا دا وه، چې د غه کود تا د بیخي ډېرو افغانانو د وژل کېدلو پیلامه شوه. په دې ډول دغې کودتا افغان ژوند ډېر بې اهمیته کړ، دغه بې اهمیته کېدل په خپله

کودتاچیانو د کودتا په دویمه ورځ وشود. په دې ډول، چې "اجساد همه مقتولین به شیوه منافی کرامت انسانی یکی بر دیگری اینا شته شدند و در تپه مرنجان در خندقی دسته جمعی زیر خاک شدند." (48)

## د ثور کودتا او شورویان

په افغانانو کې په ټینګه ویل کېږي، چې شورویانو د ثور په کودتا کې لاس درلود، خو په دې اړه د اعتبار وړ سند ښوول شوی نه دی. دا چې د غه کودتا د حفیظ الله امین په دستور د خلق د ګوند د نظامي څانګې د ملکي او نظامي غړو له خوا او د یو څو پرچمیانو په مرسته شوې ده، په دې اړه هېڅ شک نه شته چې پوره بیان یې دمخه شوی دی. لکه چې دمخه وویل شول، د ګوند عمومي منشي نور محمد تره کي او د هغه مرستیال ببرک کارمل پرې خبر نه وو او کارمل بیا امین په دې ګرم کړ، چې د کودتا دستور یې په خپله ورکړی او شوروي ملګري یې پرې خبر کړي نه دي، خو کودتا چې یقیني شوه او سرته ورسېده، پرچمیانو بیا تبلیغ کاوه چې د ثور کودتا چې دوی "انقلاب" بلله، د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند په مخکې سرته رسېدلې ده. له دغې تبلیغ نه اصلي مقصد داو، چې د امین اعتبار ډېر نه شي. مهمه دا ده، چې نه د شوروي اتحاد حکومت، نه د شوروي اتحاد کمونستي ګوند او نه ک.ج.ب ځان په دغې کودتا کې دخیل ښوولی. دغه څه له هغو پرېکړو او لیکنو نه معلوم دي، چې د دوی له خوا په هماغه وخت کې د افغانستان د پېښو په اړه شوي دي او هغه د شوروي اتحاد له شړېدلو نه وروسته ترلاسه شوي او خپاره شوي دي.

په دغو سندونو او لیکنو کې د ثور کودتا د بهير په اړه هېڅ نه دي ويل شوي، خو شوروي اتحاد له کودتا نه بې خبره هم نه و. واسيلي ميتروخين چې په مسکو کې د ک.ج.ب د ارشيف

چلوونکی و او د افغانستان په اړه يې د ک.ج.ب راپورو نه ټول کړي او بيا يې انګلستان ته په پټه پناه وړې وه، په خپل يوه اثر "ک.ج.ب په افغانستان کې وا يي، چې د سيد محمد ګلا بزوی او محمد رفيع په بيړه ک.ج.ب ته خبر ورکړ، چې په افغانستان کې "غټې پېښې" کېدونکي دي. ګلابزوی د مامد او رفيع د نيروز په مستعارو نومو نو د ک.ج.ب ايجنټان وو. ک.ج.ب بيا د اپريل په 26مه په دې اړه سمله لاسه مسکو ته تيلګرام واستوه او په هغه کې د شوروي سفير اليکزاندر پوزانوف د شوروي اتحاد د کمونستي ګوند پولټبورو يا سياسي دفتر ته وليکل، چې "په دې کې خطر دی چې د افغانستان د خلق دموکراتيک ګوند مرکزي کمېټې په هغو غړيو کې، چې لا آزاد دي ځينې ]غړي[ به وي، چې په افراطي کارونو لاس پورې کړي. دوی به د حکومت د خاصو ارګانونو له خوا و پارول شي، چې همدغسې وکړي. زموږ په نظر په اوسني حال کې دغسې افراطي عمل به په هېواد کې د پرمختلليو ځواکونو د ماتې لامل وګرځي." مسکو په هماغه ورځ په خپل ځواب کې د نورو ځيزونو په ترڅ کې وويل، چې "دغه امکان له نظر نه غورځول کېدی نشي، چې ساواک ]د ايران جاسوسي ايجنسي[ به دغه ګوند نظامي څانګه په ارادي ډول د حکومت پر ضد وپاروي، چې ورته ضربه ورکړي." له دغه پارونکي شخص نه به مطلب حفيظ الله امين و، چې د خلق ګوندګي د نظامي څانګې آمر او د ګوند د مرکزي کمېټې غړی و او شورويان پرې شکمن وو. ميټروخين دغو پېغامونو پر بنسټ حکم کوي، چې "لکه چې ليدل کېږي هستوګنځی ]د کابل ک.ج.ب مرکز[، د سفارت او مسکو مشرانو د ]افغانستان[ د هېواد د وضع په اړه دغومره لږه پوهه لرله، چې په غلطه يې تشخيص کوله او دغه امکان پر ضد زړه نازړه وو، چې کودتا به چې پرې پيل شوی و، بريالی کېدی ونه شي." (49)

ج.م.کورنینکو (Kornienko) د شوروي اتحاد د ګوند د پولټبورو علی البدل غړي هم لږ و ډېر د میتروخین په شان فکر کاوه. هغه لا ویل، چې "دغه کودتا د مسکو لپاره نه فکر کېدونکې ده. دغه نه فکر کېدونکي خبر د لومړي ځل لپاره د انګلیس د خبري اژانس رویټر له خوا راور سېد او له هغه وروسته په کابل کې د شوروي سفارت له خوا د ترسره شوي عمل پېغام راغی. زموږ خاصه خدماتي ایجنسي له هغه نه پخوا تر پخوا خبره نه وه، حتی د هغو لویانو نومونه چې په واک شول لکه تره کی، کارمل، امین او نور ګرومیکو او نورو شوروي مشرانو ته نااشنا وو. هغوی یواځې د شوروي د کمونست ګوند د مرکزي کمېټې د بین المللي څانګې او ک.ج.ب ماهرانو ته معلوم وو." کورنینکو دا هم وايي، چې "که مسکو د دوی ]د کودتا[ په نیت خبر وای، ډېره ځرګنده سپارښتنه به یې دا وای، چې ورته لاس وانه چوي، ځکه چې د مارکسزم له نظره دغه هېواد انقلابي شرطونه، نه لري. پر هغه سربېره د پاچا محمد ظاهر او ]محمد[ داود په وخت کې )له لویدیځ سره د هغه له معاملو سره سره( د شوروي اتحاد او افغانستان اړیکې د دوستۍ وو.(50) "

د خلقي حکومت د پوځ سیاسي آمر اقبال وزیري هم لږ و ډېر همدغسې وايي. د هغه په وینا د شوروي حکومت اول نه غوښتل د ثور پاڅون او د خلقي حکومت په رسمي ډول وپېژني. پوزانوف لا حاضر نه و له تره کي سره ووینې، که څه هم هغه اول صالح محمد پیروز او بیا ګل محمد نور زوی د همدغه مقصد لپاره د شوروي سفارت ته استولی و. د شوروي حکومت د پوزانوف له لارې خلقي حکومت د کود تا په دریمه ورځ وروسته له هغه په رسمي ډول وپېژندہ، چې تره کي او امین ورسره ومنله، چې پرچمیانو ته به په حکومت کې برابره برخه ورکوي. میتروخین د وزیري دغاه

لیکنه تاییدوي[51].

دا چې د شوروي اتحاد حکومت نه غوښتل د ثور کودتا او خلقي حکومت سمله لاسه په رسمي ډول وپېژني، لاملونه یې څرګند وو. لومړی دا چې دغه د لویانو په فکر افغانستان د انقلابي اوښتون لپاره تیار نه و. لا مهمه دا چې دغه کودتا د امین په دستور سرته رسېدلې وه، نه د کارمل په دستور چې هغه د "مرید" په مستعار نامه له 1957 څخه راپه دېخوا د دوی اجنټ و. د توجه وړ ده، چې هم میتروخین او هم وارنینکو د ثور پاڅون د کودتا په نامه یاد کړی، لکه چې په اول کې د شوروي په رسمي خپرونو کې هم هغه د کودتا په نامه یاد شوی دی. بله دا چې که شورویانو د ثور په کودتا کې لاس لرلای، هغه به یې په بېړه په رسمي ډول پېژندلی وای، لکه چې د ختیځې اروپا په ځینو هېوادونو کې یې همدغسې کړي و. د اقبال وزیري له اثر نه دا هم څرګندنده ده، چې د شوریو حکومت سره له دې چې د خلقي حکومت یې په رسمي ډول وپېژندنه، ور سره رښتینی نه و او له هماغه اول نه په دې پسې و، چې دخلقیانو پرځای پرچمیان ونیسي. دغه ټکی د همدغه اثر د بحث غټه موضوع ده، چې وروسته به بیان شي.

## د محمد داود تېروتنې

د محمد داود د ژوندانه ډېره غټه تېروتنه شاید دا وه، چې د پاچایي قانوني نظام یې په کودتا سره نسکور کړ، هغه هم په زیاته اندازه د ورو چپي افسرانو په مرسته. په دغې کودتا سره هغه نورو ته وښودله، چې که وغواړي دوی هم په کودتا سره دولتي قدرت نیولی شي. له دغې کودتا وروسته و چې حفیظ الله امین په پوځ کې د افسرانو په جلب او جذب پیل وکړ، ترڅو چې په هغه باندې یې هم کودتا وکړه. بله دا چې محمد داود په خپلې کودتا سره د پرچم ګوندګي ته

حیثیت قایل شو، په تېره وروسته له هغه چې پرچمي افسران او ملکي غړي یې په خپلې کابینې کې وزیران وټاکل، په داسې حال کې چې له هغو سره د هغه ایتلاف په اصل کې بې بنسټه و. دی نیشنلست او هغوی کمونستان او په فکري یا ایډیالوجیکي لحاظ سره مخالف وو. همدا چې محمد داود له خپلو اولو ورکړل شویو چېچي وعد نه مخ واړوه، نه یواځې هغوی، بلکې د خلق ګوند دواړه څانګې ترېنه واوښتلې. په واقع کې د غو چپډیانو له پیل نه په حکومت کې ایډیالوجیکي سیاست پرمخ بیوه.
د محمد داو بله غټه تېروتنه دا وه، چې په ولسمشري دوره کې یې د صدراعظمۍ دورې پرخلاف د یو څو وزیرانو نه پرته ناوړ او بې تجربې وزیران په ځان ټول کړي وو. په دې اړه یې حتی د خپلو خواخوږو شکایتونو ته هم غوږ ونه نیوه. د هغه د ورور محمد نعیم له خولې روایت دی، چې "اغا لاله ام کر و کور است." څنګه چې محمد داود په ولسمشري دوره کې په چپیانو ډډه کړې وه، دده او د پاچایي د وزیرانو ترمېنځ د ګډ کار کولو فضا له مېنځه تللې وه. د غه حال په پوځ لا ډېر صدق کاوه. په پوځ کې لویو افسرانو ارزښت او درنښت له لاسه ورکړ، په تېره هغه وخت چې تر شلو نه د ډېرو برحال جنرالانو ته سمله لاسه تقاعد ور کړل شو. محمد داود د محمد هاشم میوندوال د کودتا په تور پوځ له دغسې افسرانو څخه خالي کړ، چې په اصل کې ملتپال، وطنپال او دده طبیعي ملګري وو. کوم هغه واړه نظامي افسران، چې محمد داود د غټو ملکي او نظامي مقامونو ته هسک کړل، هغه کسان وو چې دده د صدراعظمۍ په وخت کې یا له هغه وروسته شوروي اتحاد ته د مسلکي لوړې زده کړې لپاره استول شوي وو. دوی د قدرت سخت لېوال وو، حکومت ته به معلومه وه چې دوی یا د دوی ځینې د خلق دموکراتیک ګوند غړي شوي او تر حکومت نه زیات

په خپل ګوند باندې ولاړ دي. دا چې د ځینو روایتونو له مخې حکومت د ګوندي لویانو له بندي کولو نه وروسته د ډېرو چپي افسرانو د بندي کولو امر هم ورکړی و، ښيي چې حکومت د هغو له ګوندي کېدلو نه خبر و. حکومت ته به دا هم معلومه وه، چې له هغو لسو زرو افسرانو نه، چې په شوروي اتحاد کې یې زده کړه کړې وه، یو شمېر یې د شوروي تر نفوذ لاندې تللي کمونست یا کمونست ډوله شوي وو.

د محمد داود د ناکامۍ بل لامل دی په خپله و، چې د ثور د کودتا په وخت کې 68 کلن او په ځان هم پڼ او له ډینامزم نه لوېدلی و. لکه چې دمخه ویل شوي، زړه یې هم پوره سالم نه و، نو دی په اضطراري حال کې د حکومتي چارو په څارنه کې ډینامیک کېدلی نه شو. په دغه حال کې هم ده دغسې یو څوک خپل مرستیال وټاکه، چې دده ځای یې نیولی نه شو. دغې موضوع وزیران سره ووېشل او حیدر رسولي د ولسمشر کېدلو لپاره تخریب کاوه. په اصل کې د ولسمشر محمد داود د امنیتي وزارتونو سروالان د کار سړي نه وو، په تېره حیدر رسولي چې د ځان لپاره یې اجندا هم لرله. له بلې خوا په ملکي او نظامي څانګو کې ګوندیانو په ظاهر کې خپلو آمرانو په تېره رسولي ته غوړه مالي کوله او په پټه یې خپل کار کاوه. نه یوازې رسولي، چې د محمد داود په شان صاف زړی مسلمان و، په خپله ولسمشر هم دغسې ګوندي غوړه مالانو باندې تېر وت، نو دوی دواړو په ځینو چپي افسرانو باندې د شک په حال کې هم د هغو په لوړو او غوړه مالیو باندې بسنه کوله، حال دا چې چپي ګوندیان د خپلې ایډیالوجۍ له مخې په څرګند ډول یو څه او په واقع کې بل ډول وي. په عین حال کې محمد داود، چې د افغانستان د عصري پوځ مؤسس و، فکر نه کاوه چې پوځ یان به دده پرضد جګ شي. د محمد نعیم له خولې نه ویل شوي، چې "فکر نمیکنم که

اردو به رهبر خود خیانت کند. همین داود خان بود که اردو را رشد داد و از اردوی عقبمانده اردوی منظم و عصری بوجود اورد. اگر اردو به داود خان خیانت کند، دیگر این اردو به درد هیچکس و هیچ نظامی نمیخورد.)52(" د همدغه ساده فکر له مخې به و، چې کوندي لویان د ولایت په توقیف خانه کې واچول شول، نه په کوم بل ټینګ ځای لکه په ارګ کې. مؤلف شاه زمان ستانیزی لیکي: "بعد از دستگیری تره کي و ببرک به سردار داود خان پیشنهاد شده بود که زندانیان باید در ارگ نگاه داری گردند. اما این پیشنهاد نیز پذیرفته نشد و باین اکتفا گردید که رهبران حزب زندانی شده اند دیگر خطر کودتا رفع گردیده است.)53("

جمهوري ګارد هم چې باید د کوندیانو تر بندي کېدلو نه دمخه پیاوړی شوی وای، پیاوړی شوی نه و. ټاکل شوې وه، چې درې ورځې وروسته به هغه ته نورې وسلې ورسېږي. عجبه دا ده، چې د کودتاګانو اوازې چې ډېرې وې هم ټینګې نیول شوې نه وې. حتی تر کودتا دوه یا درې شپې دمخه بي. بي. سي چې په خپل فارسي سرویس کې د افغان پوځ له خوا د کودتا خبر خپور کړی و، هم په چارواکیو اثر کړی نه و. د ملي دفاع وزیر حیدر رسولي دغومره وکړه، چې د ثور په پېنځمه ز غرورو قوتونو ته یو هیات واستوي. د غه هیات بېرته د خیریت راپور راوړ او بیا نور څه و نه شول، نو د ثور کودتا هغومره چې د کودتاچیانو د ټینګې ارادې او غوښ عمل نتیجه وه، په هماغه اندازه د ولسمشري د امنیتي لویانو د ناوړتیا نتیجه وه.

## د ثور کودتا یا د ثور انقلاب؟

خلقي لویانو د ثور په پېښې باندې د "انقلاب" نوم کېښود او هغه یې د "پرتمین او دوران جوړونکي انقلاب" په نامه بیخي ډېر یادوه، په

دې هیله، چې افغانان به یې هم په دغه نوم ومني او د دوی له حکومت نه به خوښ وي، چې دغسې غټ او بې ساری کار یې کړی دی او که کوم څوک د غه "پرتمین انقلاب" او د دوی واکمنۍ ته، چې هغه یې عملي کړی دی په کږه سترګه و ګوري، حکومت بیا حق لري، چې هغه "انقلاب ضد" وګڼي او و یې ټکوي. په دې ډول خلقي لو یانو دغسې ګڼله، چې دوی ددغه "پرتمین انقلاب" په سرته رسولو سره په واقع کې د افغانانو د ژوند او مرګ حق ترلاسه کړی دی. بیا نو دوی خپل او د انقلاب مخالفان د "انقلاب ضد" په نامه ټکول لکه چې جذمي مذهبیانو خپل مخالفان د "کافر" په نامه ټکول او اوس یې هم ټکوي. په دې ډول خلقي لویانو ته د "ثور پرتمین انقلاب" د دین په شان سپېڅلی او له انتقادي نظر نه اخوا وګڼل شو، په داسې حال کې چې هغه د لاندې بحث له مخې د دولتي قدرت د ګټلو په لار کې یوه سوچه نظامي کودتا وه.

د محمد داود په سروالۍ د ولمشري نظام نسکورول او پرځای یې د افغانستان خلق دموکراتیک جمهوریت په پښو درول د ولس یا کارګرو او خواري کښو کار نه و، هغه یوازې د پوځ کار و. د ټول پوځ کار هم نه و. په پوځ کې د هغې وړې برخې کار و، چې ستراتیجیکي مقام یې لاره او له هغه ځای څخه یې د لوړ دولتي قدرت مرکز په بیړه له کاره وایست، په یوه حساب د لسو ګړیو او په بل حساب د څلورویشت ګړیو په بهیر کې یې حکومت یا په دقیق ډول د حکومت د سروالۍ مقام د بیخي ډېرو افغانانو په وژلو سره ترلاسه کړ. د پوځ د غه وړه برخه د څرخي پله څلورمه زغروره قوه، د پېنځلسمې زغرورې قوې لوا، د قرغې فرقې د ټانک کنډک او د هوایي قوتونو غټه برخه وه. په دې ډول دغه کودتایي عمل د هغو نظامیانو کار و، چې تر نورو ډېر په پېچلو او پرمختللو تخنیکي وسلو سمبال وو. د

افغانستان د ټول پوځ نظامي سرتېرو او افسرانو څخه شاید څه باندې دوه زرو یې په کودتا کې برخه اخیستې وي. په دوی کې هم ځینو له وېرې نه برخه اخیستې وه. په کابل او ټول ملک کې د پوځ ستره برخه د برحال حکومت پر خوا او د کودتا کوونکیو پر ضد وه، خو پېښې په دغسې چټکۍ سره روانې شوې او نتیجه دغومره زر د کودتاچیانو لاس ته ورغله، چې هغوی ټول د ولسمشر محمد داود له مرګ نه وروسته له بشپړ شوي عمل سره مخامخ شول.

په عنعنوي ډول انقلاب هغه تغییر ته ویل کېده، چې د حکومت په ترکیب کې پېښېده او حتمي نه وه چې هغه به له تشدد سره ملګری وي. څه وخت چې په حکومت کې به یو وزیر د بل وزیر پرځا ټاکل کېده، خلکو به هغه ته انقلاب وایه، خو له 1978 نه وروسته د انقلاب مفهوم تغییر وکړ، "خلکو ته دغه کال د یوه نوي انقلاب پیل، له تېرې سره څرګنده پرېکړه وه، چې د زور په استعمال سره به ترسره شوی وي او د اجتماعي، سیاسي او اقتصادي اساسي او بنسټون لپاره نامحدود امکانات برابر کړي او خلک هم داسې وګڼي، چې دغه نوې حادثه له ملي پولو نه اوړي او عمومي او عالمي خاصه لري." (54) وروسته انقلاب په دغه مفهوم سره وپېژندل شو، چې د یوې ټولنې زیاتره غړي په خپل شعوري عمل سره مسلط نظام په خپله ګټه رنګ کړي او پرځای یې تر هغه لا ښه نظام په پښو ودروي. په دې اړه د شلمې پېړۍ نومیالی انقلابي لېنن وایي، چې "ددې لپاره چې انقلاب پېښ شي، د استثمار شویو او ستم ځپلو پرګنو لپاره کافي نه ده، چې په زړې لارې باندې د ژوند کولو نامممکني درک کړي او او بنسټون و غواړي، ددې لپاره چې انقلاب پېښ شي اساسي ده، چې استثمار کوونکي په زړه ژوند او حاکمیت و نه شي کولی. یواځې هغه وخت، چې )لاندې طبقې( ونه غواړي په زړه لار ژوند وکړي، )پورتنۍ

طبقې( و نه شي کولی په زړه لار حاکمیت ته دوام ورکړي، انقلاب بریالی کېدلی شي." لېنن دا هم وايي، چې "انقلاب په ټول ملک کې له عمومي بحران نه پرته ) چې استثمار کوونکي او استثمار شوي دواړه مثاثر کړي( امکان نه لري. له دېنه داسې نتیجه اخیستل کېږي، چې ددې لپاره چې انقلاب پېښ شي، اساسي ده چې لومړی د کارګرو اکثریت ) یا لږ تر لږه د طبقه یيز شعور خاوند، په سیاسي لحاظ فعال او سوچمن کارګران( پوره درک کړي، چې انقلاب ضروري دی او دوی دېته تیار دي، چې د هغه لپاره ځانونه قربان کړي. دویمه دا چې حاکمې طبقې په دغسې حکومتي بحران کې لتاړې وي، چې حتی تر ټولو بېرته پاتې کارګران هم په سیاست کې کشوي... حکومت ناتوانه کوي او د انقلاب کوونکیو لپاره ممکنه کوي، چې هغه په چټکۍ سره نسکور کړي.( 55 )"

ددغه تعریف له مخې په کابل کې نه د ثور پېښه او نه د روسیې په پتروګراد کې د 1917کال د اکتوبر پېښه انقلاب کېدی شي، دواړه په واقع کې کودتاګانې دي.

د روسیې انقلاب د همدغه کال په فبروری کې پېښ شوی و، چې په هغه سره په داسې حال کې چې روسیه په لومړي نړیوال لوی جنګ کې له ماتې سره مخامخ شوې وه، امپراتور نیکولای د عمومو په تېره د عسکرو په تقاضا سره ګوښه کېدلو ته اړ شو او د کرنسکي په صدراعظمۍ یو غیر خانداني موقتي حکومت مېنځ ته راغی او د نوي سیاسي نظم د جوړښت په اړه د سیاسي ګوندونو ترمېنځ کوښښونه جاري شول، خو د کرنسکي غټه تېروتنه د پوځ او بولشویکي ګوند په مخالفت دا وه، چې جنګ ته یې لا هم دوام ورکړ. په نتیجه کې سیاسي فضا کړکېچنه او په ګوندونو کې قدرت ته د رسېدلو هڅه پیاوړې شوه. "د موقتي حکومت پلویان دموکراتیکي عملیې ته ژمن وو او په دې ډول د دوی په مخ کې پارلماني کړنلارې او

قانوني مقرري د لارې خنډونه وو. د مساوات غوښتونکيو مشران _په تېره په هغو کې بولشويکان په اوله درجه_ متعهد وو، چې د )خلقو( په نامه په هرې لارې سره چې کېدی شي، قدرت ترلاسه کړي." په دغه حال کې د نومبر په اوومه )د پخوانۍ جنتري له مخې د اکتوبر په 25مه ( "سر تېرو د مرکز ستراتيجيکي ځايونه ونيول. د اتم نومبر د سبا په اولو ساعتونو کې د پترو ګراد د چونۍ شوروي پلوو سرتېرو، د کرون ستاډ سمندري عسکرو او د کارګرو سرو ساتونکيو په قصر باندې حمله وکړه، چې د نظامي ښوونځيو ځوانانو او حتی د ښځو يو ټولی يې په ضعيف ډول دفاع کوله او د موقتي حکومت وزيران بندي کړل. په خپله کرنسکي يو څو ساعت دمخه تر هغه تښتېدلی و. د شوروي حکومت په پتروګراد او روسيې کې جوړ شو." "په دې ډول دوی د 1917کال په اکتوبر کې نږدې په يوې سپينې کودتا کې په دغه کار بريالي شول.")55ب((

آيا په افغانستان کې هغسې، چې لېنن د انقلاب لپاره شرايط ښودلي، د 1357 کال په ثور کې وضع هغسې وه؟ نه ګرد سره نه وه. په دغو پېښو کې لکه څنګه چې وليدل شول، يواځې په کابل کې د پوځ ورې برخې برخه اخيستې وه او غټې برخې يې له کودتا سره مخالفت وکړ. نور خلک خو څه کوي، چې پرې خبر نه وو، ګوندي لويان هم پرې خبر نه وو. د ګوند د پرچمي اړخ غړيو لا له يو څو تنو نه پرته په سر کې ور سره مخالفت وکړ. له غېر نظامي ګوندیانو نه يواځې امين او يو څو تنه ارتباطي غړي خبر وو او بس.

ګوندیان ادعا کوي، چې کومو هغو افسرانو، چې په دغو پېښو کې ګډون کړی وو، د بزګرو، کارګرو او په عمومي ډول د خواريکښو زامن وو او دوی د هغو هيلې واقعي کولې. دا د شعور يا ويښتيا موضوع ده. ددغې ادعا مانا دا کېږي، چې د افغانستان خواريکښان له خپل بدحال نه خبر،

ترېنه بېزار او د هغه د اوښتون په لټه کې وو، خو په خپله يې د اوښتون راوستلو توان نه لاره او د دوی رښتيني زامن ياني دغه افسران چې د خلق ګوند په خلقي مفهومونو او ارزښتونو مجهز کړي وو، د دوی په استازيتوب پاڅېدل، هغه نظام يې ړنګ کړ، چې د دوی په تاوان او د فيوډالو او پانګه ورو په ګټه وو.

د افغانستان د خواريکښو په برخه کې دغومره ويل کافي دي، چې کارګر په کې بېخي لږ وو او د هغو ډېر شمېر دولتي کارګران او لږ يې د خصوصي صنعتونو کارګران وو. دوی ټول هغسې کارګران نه وو، چې د نولسمې پېړۍ په سر کې په لويديځې صنعتي اروپا کې وو. په فرانسې کې په دغه وخت کې دغسې کارګرو د لږې اجورې په برابر کې په شپه او ورځ کې تر دولسو ساعتونو نه ډېر کار کاوه. د مارکس په تعبير هغوی د خپلو غړيو قوه يواځې د ژوند کولو لپاره لرله او هغه يې د صنعتونو په خاوندانو خرڅوله، نو د افغانستان د کارګرو وضع د هغه وخت د اروپا د کارګرو له وضع نه غټ توپير لاره. افغانستان په اصل کې يو زراعتي هېواد او د ځمکه والو غټه برخه واړه ځمکه وال وو. لوی ځمکه وال هم په هرات، فراه، ميمنې او مزار کې وو، خو نه په ډېر شمېر. په ټول ملک کې يواځې يو څو تنو ځمکه والو که د زرګونو جريبو هغسې ځمکې لرلې، چې په روانو اوبو سره خړوبېدلې. د وړو ځمکه والو ترڅنګ زراعتي اجاره ګر، بې ځمکې بزګر، زراعتي کارګر د ټولنې ستره برخه وه. د دوی په اړه ددغه څيز په نظر کې نيول مهم دي، چې له ځمکه والو سره د دوی اړيکې د پېړيو پېړيو د عرف او رواج له مخې داسې منظم شوې وې، چې د دوی برخه د ځمکې د ماهيت په تناسب يا نيمايي، يا دويمه يا دريېمه يا څلورمه يا پېنځمه وه او د حکومتي ماليا تو تاديه د ځمکه والو په غاړه وه. په کندوز کې لا د ځمکې د اجاره ګرو عايدونه د

حکومتي اوسط مامور له قانوني عايد نه ډېر وو. د ځمکې د اجاره ګرو عايدو نه په عمومي ډول تر نورو ډېر وو. هغومره چې دوی خواري کوله، په هماغه تناسب يې حاصل ترلاسه کاوه. يواځې د هغو بزګرو وضع خرابه وه، چې بزګري ورته نه پيدا کېدله. دغسې کسان به لويو ښارونو په تېره د کابل شاوخوا کې په صناعتي اجوره کارو تبديلېدل. په دې حساب ځمکو ته منسوب بزګران په يوه استثنی سره د زراعتي لېږ و ډېر شتمنيو په لرلو سره د مارکسستي اصطلاح له مخې د وړو بورژواګانو په ډله کې شمېرېدلی شول. داسې شواهد هېڅ نه شته، چې وښيي چې دوی به په کليو او بانډو کې صنعتي يا طبقه ييز شعور پيدا کړی وي، چې له ځمکه والو نه يې بېل يا له هغو سره متضاد کړي. همدا لامل دی، چې دوی هېڅ وخت د صنعتي روحيې له مخې د ځمکه والو په برابر کې په ګډه عمل نه دی کړی. په معاصر افغانستان کې په تېره د امير عبدالرحمن په دوره کې د مرکزي حکومت له پياوړي کېدلو نه وروسته هغومره، چې دوی حکومتي مامورانو ټکولي ځمکه والو په هغه اندول ټکولي نه دي. ځمکه والو د هغو د ټکولو لپاره نه حقوقي دليلونه او نه عملي امکان لاره، نو عجبه نه ده چې دوی له ځمکه والو او روحانيانو سره په ګډه يو ځت بل وخت د حکومتي نادودو په مقابل کې پاڅ ېدلي وي. دوی هېڅ وخت د مجردو مفهومونو لکه نظام، صنف، طبقې او طبقه ييز جنګ او داسې نورو په فکر نه وو. د معاصر افغانستان د سياسي تاريخ تر ټولو مهم اړخ له حکومت سره د نورو ډلو په تېره د ځمکه والو ټکر او دننه په واکمنې کورنۍ او په حکومت کې د اعلی واک په سر د فردونو، کورنيو او ډلو ترمېنځ جګړې وې. له دغې شرح نه جوته ده، چې د غه کود تايي نظاميان د خواريکښو د فکري او عملي ليکې استازي نه شي کېدای.

د کودتاچیانو بله ادعا هم سمه نه ده، چې ویل یې نظامي پاڅون کوونکي د افغانستان د خواریکښو او بېوزلو زامن دي. په د غه حکم کې د غه مفهوم پروت دی، چې کوم هغه څه چې نظامي کودتاچیانو وکړه، د خواریکښو پلرونو د فکر او هیلو له مخې یې وکړل، خو دا د واقعیت پرخلاف دي. نظامي ګوندیان ټول تعلیم کړي وو او د دوی د زده کړې موده لږ تر لږه شپاړس کاله وه. په افغانستان کې زده کړه که څه هم وړیا او عمومي وه، د خواریکښو او بې وزلو زامنو لپاره په عمل کې ممکنه نه وه، چې د غومره اوږده موده په زده کړه کې تېره کړي. په دې برخه کې د لیکوونکي د زده کړې تجربه ده، چې تر دولسم ټولګي پورې یې په سلګونو هم ټولګیان له لاسه ور کړي دي، ځکه چې هغوی په اقتصادي لحاظ تر دولسم ټولګي پورې درس ویلی نه شو. یواځې هغو هلکانو زده کړه کولای شوه، چې پلرونو یې د هغو کار ته اړتیا نه لرله. نظامي او نور ګوندیان په تېره پرچمیان نږدې ټول د لویو یا وړو بورژواګانو، ځمکه والو، بیوروکراتانو، پانګه ورو، خانداني غړیو او داسې نورو ډلو کې راځي. په دغه ډول دغه نظامي تعلیم کړي د عایدو، سلقې، نړۍ لید او په یوه کلمه د شخصیت له مخې له عادي وګړیو نه متفاوت او حتی ور سره مخالف وو. د عصري تعلیم کړو افغانانو په توګه دوی په دغسې کسب اخته وو، چې سروکار یې له تخنیک، قدرت او دولت سره وو. هغوی چې په ګوند کې منظم شوي او له کمونستي مفهومونو سره اشنا شوي وو، متعهد شوي وو چې د خپل ګوند په دستور دولتي واک په یوه ګړندي غیر قانوني عمل سره ترلاسه کړي. دوی په دغسې ایډیالوجۍ کې نغښتي وو، چې د افغانستان د وضع او د افغانانو د ذهن محصول نه، بلکې له باندې په تېره له شوروي اتحاد نه راوړل شوې وه. په دغه حساب دغه تعلیم کړي ځوانان له خپل ولس نه بېګانه

شوي وو، خو څنګه چې ددغې بېګانه ايډيالوجۍ اساسي ټکی د قدرت ترلا سه کول او دوی په خپله هم د هغه شوقيان وو، دوی په هغې ټينګ ودر ېدل، بې له دې چې د خپل هېواد مشخص واقعيتو نه په نظر کې ولري.

له بده مرغه په افغانستان کې نظامي او سياسي قدرت هر وخت سره تړلي او نظاميان د سياست شوقيان وو. له 1956 نه وروسته، چې پوځ په نويو وسلو سمبال او عصري شو او زياتره افسرانو د شوروي اتحاد په ګډون په باندنيو ملکونو کې هم زده کړې وکړې، د نظاميانو حيثيت دننه په وطن کې تر پخوا لا لوړ شو. نظامي ډګر د حکومتي کېدلو او د واکمن کېدلو لپاره تر پخوا لا مهم شو. افغانستان، چې د خپل خلکو په تناسب لوی پوځ او افسران لرلي، هر وخت يې مستعد ځوانان جلب کړي دي. هغومره، چې دغه هېواد د سړي په سر ډېرې وسلې لرلي، په هماغه اندازه يې تر هر ملک نه ډېر افسران لرلي دي. په دې ډول په معاصر افغانستان کې نظامي افسرانو په عمومي ډول او د خلقي کودتايي نظاميانو په خاص ډول د هېواد په سيا ست باندې ډېر اثر کړی دی، خو په سيا ست باندې د دوی اثر د خواريکښو افغانانو په تاوان تمام شوی دی. په دې اړه د يو څو بېلګو يادونه کوم، که څه هم هغه به مو له اصلي مطلب نه يو څه لېرې کړي.

د محمد داود د صدراعظمی په وخت کې پخوا له دې چې په کال 1955 کې لويه جرګه وبلل شي او حکومت له شوروي اتحاد نه د وسلو پېرودلو ملا تړ ترلاسه کړي، د پنځوسو يا شپېتو لوړ رتبه نظامي افسرانو په ګدون يوه نظامي شورا جوړه شوې وه. محمد داود هغې ته څرګنده کړه، چې لويديځ هېوادونه نه غواړي په افغانستان باندې وسله خرڅه کړي او امريکا لا غواړي، چې ددغې معاملې په بدل کې په افغانستان کې هوايي هډې ولري،

په داسې حال کې چې د شوروي حکومت هم افغانستان ته وسله ورکوي او هم زموږ د ناپېيلتوب د دريځ درناوى کوي، نو موږ بايد له شوروي اتحاد نه وسله ترلاسه کړو. هلته دا هم وويل شول، چې لويديځ د پاکستان ننګه کوي او ورته وسله ورکوي او پاکستان خو د پښتونستان د کشالې په سر د افغانستان لپاره خطر دى. شورا په اتفاق سره د محمد داود نظر ومانه، يواځې جنرال اسدالله ساپي د ملي دفاع وزارت د محاکمو رييس ورسره مخالفت وکړ، په دغه دليل، چې افغانستان تراوسه پورې د ناپېيلتوب په حال کې ځان په مېړانه ساتلى او اوس نه شايي خپل هېواد د روسانو غېږې ته وغورزوو. تاريخ پوه او نامتو ديپلومات نجيب الله توروايانا او د پوهنې پخوانى وزير او نامتو عالم فيض محمد ذکريا او داسې هم عبدالروف د ملي بانک سروال له همدغې موضع سره د مخالفت له امله افغانستان پرېښود. په دې ډول د افغانستان د کشالو سرچينه د همدغو نظاميانو دغه فيصله شمېرل کېږي. دوى په دې نه پوهېدل يا نه غوښتل په دې پوه شي، چې همدغه شوروي اتحاد د ختيځې اروپا له هېوادونو سره څومره زوروا کي کوله. دوى په دې هم نه پوهېدل، چې د نړېوال ساړه جنګ په حال کې، چې شوروي اتحاد له افغانستان سره مرسته کوله، په واقع کې يې له خپل ځان سره کوله. شوروي لويان په سر کې يې خروشچف او بولګانين په دې پوهېدل، چې که افغانستان د امريکې په کامپ کې ودرېد، دوى به بيا مجبور وي په خپلو اسيايي جمهوريتونو کې د غومره ډېر نظامي تاسيسات ولري، چې لګښت به يې له هغه لګښت نه بېخي زيات وي، چې په افغانستان کې يې کوي. دغه نظاميان دېته هم ملتفت نه وو، چې د پاکستان له خوا افغانستان ته کوم اساسي خطر متوجه و؟ دوى دېته هم پام ونه کړ، چې افغانستان او پاکستان سره دغومره ډېر اړيکې

لري، چې په نړۍ کې به يې بل دوه ګاونډي هېوادونه سره ونه لري. که افغانستان هر وخت د ډيورنډ د کرښې له خوا پښتو او بلوڅو سره د عنعنوي خپلوۍ ريښې ټينګې او په رښتينې ډول وساتي، په پاکستان باندې به يې لاس بر وي.
د افغان نظامي افسرانو بل مثال هغه خلقي افسران دي، چې په خپلو ګوندي لويانو باندې يې فشار راووړ، چې بايد د محمد داود د ولمسشري نظام ړنګ شي. د غه افسران له د غه درک نه عاجز وو، چې کومه هغه سياسي تشيا چې د حکومت په نسکورېدلو سره مېنځ ته راشي، د دوی ګوند به يې ډکه نه کړای شي. د غو نظاميانو چې د خپلې ايډيالوجۍ له مخې هغه نظام نسکور کړ، پرېمانه وينې يې تويې کړې، چې خپل نظام د هغه پر ځای پر پښو ودروي. ددغو نظامي افسرانو وروستی مثال لا هم ورا نونکی ثابت شو. د شوروېانو په يرغل سره، چې ددغو "انقلابي" افسرانو حکومت يې له مېنځه يووړ، دوی وظيفه لرله، چې د خپلو خواريکښو "پلرونو"، وطن، ازادۍ، ناموس او خپلواکۍ په خاطر د يرغل دفع وکړي. دوی په اصل کې د همد غه مقصد لپاره د همد غه غريب ولس په پېسو روزل شوي وو، خو له جمهوري ګارد او يو ځو نورو پرته دغه "انقلابيان" د خپلو "پلرونو" په وژلو کې د يرغلګرو مرستندويان شول. له دوی نه ډېرو او ورسره ډېرو غېر نظامي خلقيانو وويل، چې حفيظ الله امين به داسې څه کړي وي، چې شوروي اتحاد يې حکومت ورنسکور کړ. حقيقت دا دی، چې ځومره د غه انقلابي افسران له خپل ولس نه بېګانه شوي او د يوې بېګانه ايډيالوجۍ تر اثر لاندې د پرديو د مقصد لپاره استخدام شوي وو، د افغانستان په اوږده تاريخ کې نور افسران هېڅ وخت دغسې نه وو شوي. د همدغه حقيقت له مخې و، چې د کابل وطنپالو ښځو د غو افسرانو ته د"مېړمن منصبدار" خطاب کاوه.
په پای کې دلته به دد غو انقلابيانو نظر هم

راوړل شي. دوى خپل "انقلاب" په دغه دليل سم شود، چې "فيوډالزم، پانګه وري، کمپرادوري او روحانيت" افغان خواريکښان زبېښلي او د ژوندانه له نعمتونو نه بې برخې کړي دي. د دوى په فکر دد غې بې عدالتى چاره له انقلابي عمل نه پرته په بل ډول نه کېږي او دوى د همدغه مقصد لپاره "انقلاب" وکړ.
اول خو د افغانستان اجتماعي وضع دغسې نه ده، چې دغو "انقلابيانو" تشخيص کړې ده او په هغې لارې، چې دوى لاړل د هغې چاره هم و نه شوه. پر هغه سربېره خلقي او وروسته په پرچمي دوره کې د غومره خلقي پاڅونونه، چې په افغانستان کې وشول، په بل هېڅ وخت په د غومره وخت کې نه و شوي. ددغو "انقلابيانو" اساسي تېروتنه دا ده، چې دوى د مارکس او لېنن انقلابي نسخه، چې د يوې اروپايي صناعتي ټولنې لپاره ايستلى شوې وه، دوى په افغانستان غوندې زراعتي هېواد کې خپل سر مشق وګرځوله. د مارکس نظر دا و، چې په يوه صناعتي هېواد کې د پانګه والى په انکشاف سره به کارګران، چې شمېر به يې وار په وار ډېرېږي او غريب کېږي، د پانګه والى د زبېښاک له امله به تر دې حده پورې انقلابي کېږي، چې يوه ورځ به په خپل انقلابي عمل سره د پانګه والى نظام ړنګوي او پر ځاى به يې تر هغه لا ښه سوشلستي نظام په پښو دروي، خو د صناعتي هېوادونو په کارګرو کې تر ننه ورځې پورې د غه ميل د غومره ضعيف دى، چې په اصل کې د توجه وړ نه دى. پرځاى يې دغه ميل عالمي شوى، چې د پانګه والى نظام د ننه سمونونه وشي، د کارګرو د کار موده لنډه شي، اجوره يې ډېره شي او داسې نور... د همدغه عالمي ميل له امله د مارکس د نظر له مخې تراوسه د نړى په هېڅ صناعتي هېواد کې انقلاب پېښ شوى نه دى. انقلاب په روسيې کې وشوو خو هغه په کال 1917 کې د فبروري په مياشت کې و، چې غټ عامل يې لومړى

نړېوال جنګ و، چې روسیې پکې ماتې خوړلې وه او سرتېرو یې د ځمکو په تمه له جنګ کولو نه ډډه کوله. اته میاشتې وروسته له هغه لکه چې دمخه ویل شوي، په داسې حال کې چې نوی حکومت هم د پخوا په شان جنګ ته دوام ورکاوه او سرتېرو یې جنګ نه غوښته، یو شمېر کارګرو او سرتېرو د پتروګراد په مرکزي ښار کې دغه موقتي حکومت په کودتا سره نسکور کړ او بولشویکان واک ته ورسېدل، خو روسیه په دغه وخت کې ډېره لږه صناعتي وه. د اروپا د صناعتي هېوادونو په شان صناعتي نه وه، یو ډېر پراخ زراعتي او د بزګرو هېواد و.

په هر حال، بولشویکانو د روسیې په فبروري انقلاب کې رول نه دی ادا کړی، د اکتوبر په کودتا کې یې د لېنن او تراتسکي په مشرۍ غوڅ رول لرلی، خو په دغه وخت کې دوی مخکښان وو، نه بزګران. بولشویکانو د ځمکې په تمه بزګران خپل ملګري کړل، په داسې حال کې چې بزګران د مارکس په نظر غېر انقلابي او د برحال نظام علاقمن ګڼل کېدل. داځکه چې بزګران د کارګرو پرخلاف لږ و ډېر د شتو خاوندان وو، نو د مارکس دغه نظر چې د کارګري طبقې ازادول په خپله د کارګرو کار دی، د روسیې په انقلاب کې صدق نه کوي. له همدې امله و، چې په روسیه کې له انقلاب نه وروسته کمونستي یا بلشویکي ګوند حاکم شو، نه کارګران. له هغه وروسته، چې په زراعتي هېوادونو کې د چین په ګډون انقلابونه وشول په هغو کې هم د مارکس نظر شاته وغورزول شو.

د افغانستان د **1357** کال د ثور میاشتې په پېښو کې نه کارګرو او نه بزګرو رول لاره. په دغو پېښو کې لکه چې ولیدل شول، نظامیان مخکښان او ګوندیان شاکښان او لویان یې بندیان وو. هغه نظامیان هم ګوندیان وو، خو هغوی د ګوندیانو په نامه نه، بلکې د نظامیانو په

توګه مخکښان شول. په داسې حال کې، چې له یو ځو ګوندیانو نه پرته نور ټول ګوندیان له پاڅون نه خبر نه وو. کارګران، چې ډېر لږ او بزګران چې ښه ډېر وو، د پاڅون په قصه کې هم نه وو. لکه چې دمخه وویل شول، په دغو پېښو کې د نظامیانو رول غو ځوونکی ثابت شو او حکومت په اولو ورځو کې څرګندوه کړه، چې "موږ انقلاب کړی دی او موږ یې ساتو." له "موږ" نه مطلب همدغه نظامیان وو. حکومت د غه ویـنا په واقع د همدغو افسرانو په ډاډینې ورکړه، نه د خلکو په ډاډینې، که څه هم په خپلو تبلیغونو کې یې د هغو نوم ډېر یاداوه. حکومت دغو "انقلابي" افسرانو ته بیا امتیازونه ومنل، یو شمېر یې په ملکي ساحو کې لوړو مقامونو ته هسک کړل، لکه وزیران او د ګوند د مرکزي کمېټې غړي او نور یې په پوځ او څارندوی کې د لوړو افسرانو پرځای کېنول او د ټولو افسرانو معاش یې په سلو کې سل زیات کړ. په داسې حال کې، چې دوی په عمومي ډول د تخنیکي او ماشیني چارو واړه افسران او په دولتي چارو کې بې تجربې او ناوړ کسان وو. په حکومت کې د نظامیانو اهمیت تر دې حده ډېر شو، چې حفیظ الله امین د هغو لا خوښ ساتلو لپاره یوه نوې تیوري وایستله او هغه یې نور محمد تره کي ته منسوبه کړه. "در افغانستان امکان است که از کوتاه ترین راه قدرت سیاسی بدست خلق برسد و آن راه کلاسیک که باید نیروهای مولده مراحل مختلف خود را پیموده و باز جامعه مبثتنی بر سوشلزم علمی را بنیان نهد مدت طولانی یی را ایجاب مینماید. پس کوتاه نمودن این مدت طولانی چنان صورت گرفته میتواند که در قوای مسلح افغانستان کار وسیع و عمیقی انجام پذیرد." امین دغه مطلب د ځان له خوا په دغه ډول بیان کړ: "لینن مرکز قوت اجتماعی را در پرولتاریای روسیه یافت. رهبر کبیر ما نور محمد تره کی مرکز قوت جامعه مارا

در قوای مسلح افغانستان درک کرد و با در دست داشتن مشعل دوران ساز پرولتاریا این قوت را تنویر کرد.[56]"

په اصل کې د همدغه نظر پر بنسټ، و چې هغه ویلي و، چې: لومړی باید اردو تر خلقي رهبرۍ لاندې راولو او بیا سیاسي قدرت ونیسو.[57]"
څنګه چې په افغانستان کې د کارګرو او بزګرو انقلابي شعور صفر و، نظامیان یواځیني کسان وو، چې "انقلاب" یې کولی، یانې برحال نظام یې نسکورولی شو، نو خلقي ګوندیانو هغوی په انقلابي مفهومونو مجهز او په ګوند کې تنظیم کړل او هغو هم د خلکو په نامه ورته دولتي واک ونیوه.

په دې ډول کوم هغه رول، چې مارکس کارګرو ته، لېنن کمونستانو ته، چې ګوارا شریکیانو ته او ماوتسې دونګ بزګرو ته اختصاص کړی و، امین پوځیانو ته اختصاص کړ، ځکه چې د هغه په اند په پرمختایي هېوادونو کې یواځې پوځیان انقلاب کولی شي، خو ددغې تیورۍ ژور او خطرناک ناسموالی اول د سرطان په کودتا او بیا د ثور په کودتا سره ښکاره شو. په دې ډول، چې په وروستۍ کودتا سره بېخي ډېر افغانان ووژل شول او ټولنه سخته کړکېچنه او د پرمختګ له کاروان نه ډېره وروسته پاتې شوه. د همدغې تجربو پر بنسټ ده، چې په پرمختللیو هېوادونو کې پوځیان د قانون له مخې له سیاستکولو نه منع شوي او مؤظف دي، یواځې خپله درنه او سپېڅلې دنده تر سره کړي، چې هغه د هېواد او د هغه نظام او اساسي قانون ساتنه ده، چې د خلکو او د دوی په ګډه انتخاب سره به رامېنځ ته شوي وي.

## دویم څپرکی




# د افغانستان لومړنی ایډیالوجیکي حکومت

د ثور کودتا د افغانستان په تاریخ کې یو نوی فصل پرانیست. په هغې سره دغسې افغانان په واک شول، چې ز یاتره یې ځوانان او د عصري زده کړې خاوندان وو. په عمومي ډول دوی بېلو قومونو ته منسوب د کلیو خلک وو، نه د یوې کورنۍ غړي لکه پخوا چې وو. ځانونه یې د کمونزم په پړي سره تړل شوي او پیاوړي ګڼل او ادعا یې کوله، چې خواریکښو خلکو ته یې د خدمت لپاره ملا تړلې ده. دوی د افغانستان ټول پخواني حکومتونه د واکمنې طبقې یانې د واکمنې کورنۍ، پانګه ورو، فیوډالو او روحانیانو په خدمت کې ګڼل او خپل نظام یې "خلقي" باله، چې هغه به یواځې د دوی له خوا د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند په دستور چلول کېږي. دوی په دې ډول د خپلې ایډیالوجۍ له مخې دغسې حکومتي نظام تنظیم کړ، چې قدرت یې د خپل ګوند له لارې ځانونو ته ځانګړی کړ، نورو افغانانو ته یې پکې برخه ورنکړه، خو هغوی یې د هغه مطلق اطاعت ته مکلف وبلل، نو د غه حکومت افغانانو ته مشروعیت پیدا نه کړ. په داسې حال کې چې قدرت دوی په کودتا سره نیولی و او په خپله د اسلام مخالف ګڼل کېدل او په حکومتي چارو کې یې تجربه هم نه لرله، په وطن کې یوه زوروره کړکېچنه دوره پیل شوه، چې د هغې له امله په ټولنې کې پاڅونونه او په حکومتي پاسنیو کړیو کې مرګکي ټکرونه وشول. په دغه او څو نورو

فصلونو کې به ګوندي او حکومتي جوړښتونه او په وروستيو کې به پېښې شرح شي.
خلق يانو وروسته له هغه په حکومت کولو پيل وکړ، چې ګوندي لويان د ثور په اومه د مازيګر په شپږو بجو افغانستان راډيو ته ورسول شول او حفيظ الله امين د خپلو ملګريو په سلا د حکومت کولو چارې په لاس کې ونيولې، که څه هم د جمهوري نظام ولسمشر محمد داود په ارګ کې ژوندی و، خو د کودتاچيانو له خوا محاصره و او له حکومتي ارګانونو سره يې رابطه شليدلې وه. تر دغه وخته پورې دوه ډېرش کلن محمد اسلم وطنجار د ځمکنيو ځواکونو لوی قوماندان د کودتا چارې پرمخ بيولې، چې شرح يې په تېرو پاڼو کې شوې ده. سره له دې هم لکه چې دمخه ويل شوي دي، ګوندي لويانو حکومت له راډيو نه د افغانستان د نظامي شورا په نامه اعلام کړ، نه د خپل ګوند په نامه.
په دغه وخت کې دوی په خپل بريا باور نه درلود، نو دوی له امين، وطنجار او خيال محمد کټوازي نه پرته د هوايي قوتونو مرکز )محل چنار( ته لاړل، چې که وضع سرچپه شوه، په الوتکې کې کوم خوندي ځای ته لاړ شي. له دغه وخت نه تر هغو چې حکومت د ګوند په نامه اعلام شو، امين په حېرانوونکې نه ستړتيا سره د پوځ په تنظيمولو، د قوماندانانو په ټاکلو او د امنيت په خوندي کولو کې تېر کړل. پخواني نظام يې له کار نه وايست او د خپل حکومت د واکمن کولو لپاره يې ډګر هوار کړ. امين د زيات و کم يوې اونۍ په بهير کې په شپه او ورځ کې يو ساعت خوب او درويشت ساعته کار کاوه. دی په دغه وخت کې 49 کلن او په ځان روغ تکړه و. د هېڅ څيز له خوړلو نه يې ډډه نه کوله، ګند نه او شنيلي يې ډېر خوښېده. له دغسې تکړه او روغ ځان سره زړورتيا او د نوښت ګرۍ فکر و، چې هغه يې په ګوندي لويانو کې بېجوړې کړی و. که د

خلق ګوند په دغه حساس وخت کې امین نه لرلای، واکمن کېدل یې په شک کې و. هغسې، چې غلام حیدر رسولي د پخواني نظام په نسکورېدلو کې غټ رول ولوباوه، داسې هم امین د نوي خلقي نظام په واکمن کېدلو کې غټ رول ولوباوه.

په هر حال، په دغسې حال کې چې نه بېرونۍ او نه دننۍ وضع ددغسې ګوند د واکمن کېدلو لپاره برابره وه، ګوندیانو او په سر کې یې امین په افغانستان کې د یوه پوره نوي طرز د رجیم په واکمن کولو پیل وکړ.

د ثور د میاشتې په لسمه د یکشنبې په ورځ د خلق دموکراتیک ګوند لویان رادمخه شول او د نظامي شورا پرځای یې په ګوندي حکومت کولو په څرګند ډول پیل وکړ. دلته به اول ددغه ګوند او ورپسې د نوي حکومت په اړه خبرې وشي.

## د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند

پرچمیان او خلقیان د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند ته منسوب وو، چې د 1343 د مرغومي په یوولسمه (جنوري 1_1965) د کابل ښار په شېر شاه مېنه کې د نور محمد تره کي په کور کې د یو شمېر افغانانو له خوا تاسیس شوی[1]. دغه ګوند د مارکس او لینن د فکرونو پر بنسټ تنظیم شوی او کمونستي و. دغه څه د دوی د لویانو له ویناوو نه پوره څرګند دی. د ګوند عمومي منشي نور محمد تره کي، د شوروي اتحاد د کمونست عمومي منشي لیوینډ بریژنیف ته په کال 1970 یې د اکتوبر په لومړۍ ورځ په یوه لیک کې څرګنده کړې وه، چې "د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند له پیل نه په افغانستان کې د مارکسزم_لیننزم فکرونه خپرول." په لیک کې یې دا هم تېرنه غوښتي وو، چې "هیله کوم چې تاسې بۀ د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند ته پاملرنه وکړئ، چې په مارکسزم_لیننزم باندې

ولاړ دی او د امپیریلزم او ارتجاع پرضد جګړه کوي.[2]" تره کی چې د هرات د پاڅون په وخت کې یوه شپه مسکو ته په پټه تللی و، هلته یې د شوروي اتحاد له ګوندي او حکومتي لویانو سره ژمنه کړې وه، چې "موږ به هېڅکله هغومره چې تاسو ته نزدې یو بل چاته نزدې نه شو. موږ له لینن نه زده کړه کړې ده او لا هم ترېنه زده کوو.[3]" ببرک کارمل د ثور له کودتا نه دوه میاشتې وروسته په کابل کې د شوروي سفیر الیکزاندر پوزانوف او څو نورو شورویانو ته په داسې حال کې، چې تره کی او امین هم هلته حاضر وو، شکایت وکړ، چې "زه په ګوند او حکومت کې له تره کي نه وروسته دویم مقام لرم، خو زه له داخلي چارو او باندني سیاست نه خبر نه یم. زه لکه چې په یوه طلایي قفس کې اوسم. دغه حال زما لپاره د یوه کمونست په توګه غټه تراجیدي ده.(4)" ورور یې محمود بریالی وروسته په مسکو کې د ک.ج.ب یوه مامور نیکراسوف ته ویلي و، چې "رښتیني کمونستان ټول د پرچم په ګوند کې دي او د شوروي اتحاد کمونستي ګوند سهو کوي، چې په خلق باندې حساب کوي.(5) " د بریالي په نظر ټول ګوندیان کمونست وو، خو پرچمیان رښتیني او خلقیان نارښتیني یا بدل کمونست وو.

د خلقیانو او پرچمیانو بیا غټه دنده دا شوه، چې په افغانستان کې کمونستي فکرونه خپاره کړي، بې له دې چې ځانونه او ګوند کمونست وښیي. کمونزم په مادیت ولاړه مفکوره ده، چې روح، دین، فلسفه، هنر او ادب د هغه خاصه او ظاهر ګڼل کېږي. داسې هم کمونستان دولت د حاکمې طبقې په خدمت کې ګڼي، چې هغه د دولت له لارې د نعمتونو اصلي تولید کوونکي یانې بزګران، کارګران او په عمومي ډول خواریکښان زبېښي او حکومت پرې کوي. په دغه ډول د دوی په فکر له سوشلستي نظام نه دمخه ټول نظامونه زبېښوونکي وو، چې باید د

خواريکښو په ګټه، چې د ټولنې ستر ډېره کې جوړوي، نسکور شي او د هغو د مخکښانو ياني د دوی کمونستانو له خوا وچلول شي. څنګه چې واکمنه طبقه، د دوی په اند، له قدرت نه په خپله لاس نه اخلي، خواريکښان دنده لري، چې دولت د خپلو مخکښانو په لارښود په انقلابي عمل سره نسکور او سوشلستي کړي. د غه کسان به بيا د نوي سوشلستي دولت له لارې ددغې ټولنې لپاره کار وکړي، چې د خواريکښو په ګټه وي، تر څو په پای کې دغې ټولنه رامېنځ ته شي، چې په هغې کې به د فرد له خوا د فرد زبېښاک نه وي او خلک به په بې طبقې ټولنې کې د تل لپاره د وروری ژوند وکړي(6). په دغه ډول د شوروي اتحاد د کمونستي ګوند غړي او پرچميان او خلقيان سره مسلکي ورونه شوي وو او شوروي اتحاد ورسره مرسته کوله، چې پياوړي يې کړي. په دغه مقصد چې يوه ورځ به په افغانستان باندې حکومت وکړي.

دا چې شوروي اتحاد له دوی سره څه وخت مرسته پيل کړه، معلومه نه ده، خو دا يقيني ده چې "د افغانستان خلق دموکراتيک ګوند ته د شوروي اتحاد د کمونستي ګوند د مرکزي کمېټې له خوا پيسې ورکول کېدلې. د ګوند له اخبار سره هم په دغه ډول مرسته کېدله." "تره کي ته په منظم ډول د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د مرکزي کمېټې د بين الملي څانګې له خوا پيسې ورکول کېدلې." په 1974 کې ورته پنځوس زره افغانۍ د 1977 په مارچ کې ورته دېرش زره او په مې کې ورته څه باندې دېرش زره افغانۍ ورکړل شوې وې. په 1965 کې ورته پنځوس زره افغانۍ ددې لپاره ورکړل شوې وې، چې ولسي جرګې ته يې د ځان د انتخابېدو په لار کې ولګوي. د غه پيسې په اصل کې د ګوند لپاره وې، د هغه شخصي لګښت لپاره 180روبله، چې څلور زره افغانۍ کېدلې، ورکول کېدلې(7). دغه پيسې شايد هره مياشت ورکول

کېدلې، په دغه ډول تره کي که څه هم افغان و، د سياسي مقصد لپاره يې له شوروي اتحاد نه په دې نامه پيسې ترلاسه کولې، چې د هغه په وينا "د شوروي اتحاد د کمونستي ګوند له اخلاقي او مادي مرستې نه پرته به د افغانستان کمونستانو لپاره ګرانه وي، چې خپلو فعاليتونو ته دوام ورکړي، په داسې حال کې چې واکمنه کورنۍ زموږ په ګوند باندې بې رحمه ګوزارونه کوي."[8] کارمل ته د نيکولای دوريانکوف په روايت، چې د افغانستان په اړه شوروي متخصص و، هره مياشت پېنځه دېرش زره افغانۍ ورکول کېدلې[9]. شايد له دې امله چې د ک.ج.ب د دوو پخوانيو ماموړانو اليکزاندر موروزوف او ولادمير کوزيچکين په وينا ډېرو کارمليانو د هغو په ګډون، چې د محمد داود د مرکزي کمېټې غړي وو، مسکو ته اطلاعات ورکول[10]. تر هرڅه زيات کارمل او تره کي دواړه د ک.ج.ب له لومړيو ايجنټانو څخه وو. تره کي په 1951 کې د "نور" په بدل نامه او کارمل په 1957 کې د "مارید" په نامه د ک.ج.ب ايجنټي منلې وه. دواړو په کابل کې د ک.ج.ب له ماموړانو سره کتل او د افغانستان په اړه يې اطلاعات ورکول، خو دوی لومړني افغانان نه وو، چې د ک.ج.ب ايجنټان شوي وو. له ک.ج.ب نه دمخه چيکا وه، چې د لېنن په وخت کې جوړه شوې وه او په افغانستان کې يې ځاله خپره کړې وه، خو دا د ک.ج.ب ځينې ايجنټان وو، چې په مارکسزم_لېننزم معتقد شوي وو، چې کارمل او تره کي د هغو له ډلې څخه وو. تره کي به ځان له افغانستان نه زيات شوروي اتحاد ته نږدې ګاڼه. په هغه ليک کې، چې په 1970 کې يې بريژنيف ته استولی و، له هغه نه غوښتې و چې "د افغانستان په حکومت باندې دې د اقتصادي مرستو کريډت په تېره د لګښتي څيزونو په اړه لکه پټرول او بوره، بنده شي."[11]
پرچميان او خلقيان که څه هم په فکري لحاظ

کمونست وو، یا ډېرو یې همدغسې فکر کاوه د خپل نوي هویت له څرګندولو نه ډډه کوله، ځکه چې د افغانانو غوڅ اکثریت هېوادپال، اسلام پال، عنعنه پال او د کمونزم مخالف وو، نو دوی خپل ګوند د خلق دموکراتیک ګوند په نامه یاد کړ.

په دې ډول دوی یا د دوی لویانو له اول نه دوه مخي توب غوره کړ، خو د قدرت ګټلو په لار کې یې فعالیت د خلکو په نامه پیل کړ. د غه دوه مخی توب او دا سې هم د دوی لو یانو ترمېنځ اختلافات په ټولو باندې ژوره اغېزه وکړه. ډېره موده نه وه تېره شوې، چې دوی په ډلو وویشل شول: د ظاهر افق جازا )د افغانستان د ځوانو زیار ایستونکو جمعیت( ډله، د د ستګیر پنجشیري د کار ډله، د عبدالکریم زرغون خلقي دموکراسي ډله، د طاهر بدخشي ستمي ډله، د پرچم ګوندګي او د خلق ګوندګي. بلکه دا چې د ثور له کودتا نه وروسته د دوی په ګوندي ایډیالوجۍ باندې د دوی شخصي، قومي او ژبني میلونه غالب شول او ګوندي پېوستون هوا وکړه. په دغه ډول دوی په خپله مرتجعان شول، که څه هم په ظاهر کې یې مرتجعان هغسې ټکول لکه فیوډالان، پانګه وال او روحانیان چې یې ټکول. د صالح محمد زیري په وینا د هغه د ګوندي ملګرو غټه خاصه "شخصي عقده" وه، چې دی یې ډېر زوروه. "یوه شي د ګوندي مبارزې په اوږده دوران کې ډېر زورولی وم، هغه په ګوندګي د ګوندي ملګرو ترمېنځ د شخصي عقدو، ځان غوښتنې او نورو له کبله یو له بله برخلافې، غیبتونه او کینه وه.)12( "

د ګوند ورې ډلې مهمې نه شوې، په تېره وروسته له هغه چې له ګوند نه وایستلې شوې. یواځې د طاهر بدخشي په سروالی ستمي ډلې په ټولنې کې مخ په ځوړې قومي تعصب بېرته پیاوړی کړ، خو د خلق او پرچم ګوندګي په ټولو کې مهم او لوی وو او دواړو د څوارلسو کلونو په بهیر کې )له 1878نه تر 1992 اپریل پورې( افغان سیاست

په ژور ډول اغېزمن کړ، خو دغه ګوندګي اوږده موده سره بېل او لنډه موده سره یو ځای وو. د اتحاد په حال کې هم دوی سره رقیبان او له بېل ګوندو نه داسې وو. دا به ځکه دغسې و، چې خلقیان زیاتره د کلیو او باندو پښتانه او لږ شتمنو کورنیو ته منسوب وو او پرچمیان زیاتره ښاري غېر پښتانه او شتمنو کورنیو ته منسوب وو، که څه هم په لوړه کړۍ کې یې یو شمېر پښتنو شتون درلود. په دوی کې ښځې هم شاېسته ډېرې وې، چې زیاتره یې تعلیم کړې ښاری وې. زیاتره خلقي لویان نېشنلست کمونستان او زیاتره پرچمي لویان انټرنېشنلست کمونستان وو. پرچمیان په عمومي ډول تر دې حده انټرنېشنلست او شوروي پال وو، چې افغان هویت، ملي واکمني او حتی وطن ته یې د خپلې ایډیالوجۍ په برابر کې اهمیت نه ورکاوه. پرچمیان تر خلقیانو نه ډېر بولشویکانو ته ورته وو، چې په هکله یې یو تاریخپوه وایي: "له یوې خوا دوی زیاتره په خپله د خواصو زامن وو، چې لوړه یې کړې وه، نسکور یې کړي. ښه تعلیم کړي، د فصاحت خاوندان او لوړو نظري مفهومونو ته ژمن دغسې کسان لکه لېنن، چې ځناورو ته هېڅ ورته نه وو، خو له بلې خوا دوی زر وښودله چې د خپلې ایډیالوجۍ په نامه سخت ځناورتوب وکړي.[13]"

# د افغانستان د خلق دموکراتیک حکومت

نور محمد تره کی د ثور په لسمه د انقلابي شورا له خوا دغې شورا د سروال او د هېواد د صدراعظم په توګه غوره شو. سره له دې چې د اقبال وزیري په فکر خلقیان "... په دغه وخت کې نه د انقلاب په فکر... وو او نه د انقلاب لپاره په ملي او نړیواله کچه شرایط برابر وو.[14]" حتی د شوروي اتحاد حکومت هم حاضر نه

و، چې د تره کي حکومت بې له قيد او شرط نه په رسمي ډول وپېژني. سفير يې پوزانوف اول نه غوښتل، چې حتی له نور محمد تره کي سره وګوري، که څه هم هغه د کودتا په سبا اول صالح محمد پيروز او بيا ګل محمد نور زوی د همدغه مقصد لپاره ورا ستولي وو. پوزا نوف غوښتل، چې تره کی او ملګري يې په نوي حکومت کې پرچميانو ته برابره برخه ورکړي. شوروي اتحاد بيا زر د ک.ج.ب د باندنيو چارو مدير ولادمير کريچکوف په مشری کابل ته يو هيات واستوه. ګريچکوف د حکومت په ترکيب کې "د خلق او پرچم ګوندګيو د غړيو په سره برابر غړيتوب باندې"[15] ټينګار وکړ. تره کي او امين دغه غوښتنه ومنله، يا يې منلو ته اړ شول. په هر حال، له هغه وروسته و چې پوزا نوف د کودتا په درېيمه ورځ خلقي حکومت په رسمي ډول وپېژنده[16]. په دې ډول په نوي "دموکراتيک جمهوريت" کې د ګوند عمومي منشي نور محمد تره کي د انقلابي شورا سروال او صدراعظم ببرک کارمل په دواړو مقامونو کې د هغه مرستيال شو. امين هم د صدراعظم مرستيال او هم د باندنيو چارو وزير وټاکل شو. کارمل که څه هم په نوي حکومت کې دويم شخص و، د ځانله وزارت يا ادارې خاوند نه شو. نور وزارتونه د خلقيانو او پرچميانو ترمېنځ په ظاهر کې برابر ووېشل شول او د ځېنو لپاره بې لزومه ادارې او حتی وزارتونه جوړ شول. د حکومتي ځانګو امرآن هم په همدغه تناسب د دواړو ډلګيو غړي شول. په پوځي واحدونو او ځانګو کې هم همدغسې و شول، خو په حکومت کې په تېره په پوځ کې تر پرچميانو نه د خلقيانو پله درنه وه او پرچميان په شورويانو باندې ډاډه او مغرور وو.

دا چې حکومتي مقامونه د پرچميانو او خلقيانو ترمېنځ برابر ووېشل شول، ما نا يې دا وه چې د دوی ترمېنځ حساسيتونه او بې اعتباري

ګانې لا هم وې او د دوی یو کلن اتحاد سر سري و. غیر له هغه هم مقامونه د لیاقت او شخصیت له مخې نه، بلکې د ګوندي کتنو له مخې وویشل شول. د شخصي لیاقت اصل، چې د ثور ترکودتا پورې یې تر ډېر حده پورې رعایت کېده او د محمد داود حکومت لا په اخر کې په یوې لایحې سره تنظیم کړی و، په یو وار له یاده واېستل شو، چې د غه کار د دوی په ناکامۍ هم غټ اثر وکړ، ځکه چې دوی غوښتل د ټولنې اړیکې چې د دوی په فکر "د فیوډالو"، "پانګه ورو" او "روحانیانو" له ګټه وي باید د کارګرو، بزګرو، وړو کسبګرو، روښان اندو، او حتی وړو بورژواګانو په نفع واړول شي، نو ددغسې غټ تحول د راستولو لپاره لایقو، مجربو، فني کدرونو او تکنوکراتانو ته اړتیا وه، چې په دغه وخت کې د عصري پوهنې د پراختیا له برکته په ملک کې لږ نه وو، خو دوی هغو ته شا کړه. د دوی له کړو او د حکومت له ترکیب نه معلومه شوه، چې د نظر اصلي ټکی د پرون ورځې له محرومانو نه نوي ممتازان جوړول وو. بیا نو له حکومت نه د پخوانیو مجربو او لایقو مامورانو تصفیه پیل شوه. د باندنیو چارو وزارت د دوی په اصطلاح له "نور چشمانو" نه پوره پاک شو. په عین حال کې بیوروکراتانو په تېره هغوی، چې شتمنو او واکمنې محمدزي کورنۍ ته منسوب وو، له وېرې نه میدان پرېښود او دباندې لاړل او افغانستان په یوه ځل له فني کدرونو او فني او مسلکي مامورانو نه محروم شو او پرځای یې بې تجربې او ناوړ ګوندي غړي کېناستل. په عین حال کې "انقلابي برخورد" یانې په زور سره د کار اجرا او په زور سره د مخالفانو او حتی بانفوذه مخالفانو له مېنځه وړل د دوی اصطلاح شوه.

ترهغې لا جدي دا وه، چې د ثور کودتا ته د "ثور انقلاب" وویل شول او ټولنه "فیوډالي"، "ماقبل فیوډالي" او په عین حال کې "پانګه

ورې" وبلل شوه. په دې حساب په دغې ټولنې کې د سليم عقل او منطق تقاضا دا وه، چې د حکومت په ترکيب کې نور ګوندونه هم بايد ځای ولري او که سمدلاسه د ايتلافي حکومت امکان نه وای، لږ ترلږه فني ماهران او ور متخصصان بايد په حکومت کې د مقامونو خاوندان شوي وای، خو د دوی "د شرق نابغه" او "ستر لارښود" نور محمد تره کي څرګنده کړه، چې "موږ انقلاب کړی او موږ حکومت کوو." افغانستان لکه چې يواځې د دوی هېواد و. محمد داود، چې د جزا قانون په ايستلو سره نور ګوندونه وېرولي وو، د "شرق نابغه" نور ګوندونه په خپل هېواد کې په حکومت کې له برخې اخيستلو نه محروم کړل او په حکومت او ګوند کې يې د زوروواکۍ لار ونيوله.

نوی دولت د درې ګونو قوتونو )اجرائيه، قضائيه او مقننه( په يو ځای کولو او د اعلی واک په غونډولو سره تنظيم شو. د دولت يا حکومت لارښوونه د رسمي ګوند په غاړه شوه او ولس او استازيو ته پکې د رول لوبولو ځای پاتې نه شو، خو هر څه د دوی يانې د خلقو په نامه کېدل. د دولت لوړ رکن پېنځه دېرش کسيزه انقلابي شورا شوه، چې سروال يې د دولت د رييس حيثيت پيدا کړ. د غې شورا ته قضايي قوه، چې د قضايي شورا په نامه له يوه هيئات نه مېنځ ته راغله، مسؤوله وبلل شوه لکه هسې چې اجرائيوي قوه د صدراعظم په مشرۍ هغې ته مسؤله وګرځول شوه. انقلابي شورا پورې د تړل شويو قواوو سروالان او غړي او وزيران ټول د حاکم ګوند غړي وو. يواځې په کوم وزارت کې که د وزير کوم مرستيال پخوانی غيرګوندي مامور په خپل مقام پاتې شوی وي. د انقلابي شورا غړي هم نزدې ټول ګونديان شول. په هغې کې وزيرانو هم غړيتوب لاره. په دې ډول ګونديان او په مشخص ډول د مرکزي کمېټې غړي او د پولټبورو يا د سياسي دفتر غړي د حکومت په ټولو لوړو مقامونو باندې

وګومارل شول. سره له دې هم د واک سرچینه خلق ګډنل کېدل، خو د سیاست ایستلو، تصمیم نیولو او ټولنې او دولت ته د لوري ورکولو اختیار د رسمي ګوند سیاسي بیورو ته انحصار شو. څنګه چې په واقعي ژوند کې د سیاستونو او طرحو ایستل او په خلکو باندې د هغو تطبیقول خورا مهم او د سیاسي مشرۍ نښې دي، له دې امله حاکم ګوند مهم وګرځېد. په خپله ګوند په اصل کې د قدرت د تمرکز له مخې تنظیم شوی و، چې دوی ورته "دموکراتیک مرکزیت" وایه، خو دېته توجه ونه شوه، چې واک په دموکراسۍ کې متمرکز نه وي او که وي، بیا دموکراسي نه وي.

په ګوند کې د پرېکړې کولو واک په مرکزي کمېټې کې او په مرکزي کمېټې کې په سیاسي بیورو کې او هلته په شخص عمومي یا لوی منشي، چې په واقع کې د ټول نظام اعلی واکمن و، متمرکز شوی و. د هغه د واکمنۍ موده هم ناټاکلې یا ترهغو وه، چې د کارتوان یې درلود. په دې ډول ټول نظام په زورواکۍ بنا و. دغه زورواکي په خپله ګوند هم د جوزا د میاشتې په دستور العمل کې ښکاره کوي، چې غړیو ته یې د "اطاعت مطلق و بدون چون و چرای دساتیر حزبی" امر کړی و. څنګه چې د ټولنیزو چارو په اړه د پرېکړې کولو اختیار به د غه ډول ګوند ته ځانګړی شو او څنګه چې ګوند د حکومت په شان د قدرت د تمرکز د اصل له مخې تنظیم شوی و، د "خلق دموکراتیک" نوم په واقع کې بې مفهومه شو، خو په پای کې هم په حکومت او هم په ګوند کې د واک تمرکز په فردي زورواکۍ تمام شو. د کرنې وزیر صالح محمد زیری، چې د پولټبورو غړی هم و، وایي چې "تر انقلاب وروسته ګوند منحل غوندې و" په دې مانا چې "د ګوند او دولت رهبري د یو څو ملګرو لاس ته ولوېده، چې عمده یې امین و." دی دا هم وایي، چې "... موږ هم له دې وضع څخه شکایت نه درلود، ځکه د غو

کارونو ته مو هېڅ وخت نه لاره. د خپلو وزارتونو په کارونو کې غرق وو." په دغه متمرکز نظام کې ولایتونو ته والیان او منشیان هم له کابل نه استول کېدل او "هغوی هم هرڅه چې یې زړه غوښتل، هغه یې کول. ویل به یې انقلاب دی او هر یو باید لکه ملګري امین قاطعیت ولري." دوی ځانونه "سره خلقیان بلل."[17] په دوی او داسې هم حتی په وزیرانو کې کم سواده او بېسواده غړي لږ نه وو. څرګنده بېلګه یې د فواید عامې وزیر محمد رفیع او د مخابراتو وزیر سید محمد ګلابزوی وو. لومړنی حتی د خپلې ګوندي ملګرې اناهیتا راتب زاد نوم هم سم لیکلی نه شو. د وروستي لیک لوستل کېدی نه شي، یا په ډېرې سختۍ سره لوستل کېدلی شي. په هغه نظام کې، چې اعلی واک په هغه ډول انحصار شي، لکه د خلقیانو په دولت کې چې انحصار شو، هلته دموکراتان هم دکتاتوران کېږي او د هر ډول نه تصور کېدونکې پېښې امکان پیدا کېږي. افغانستان د خلق دموکراتیک په ګوند په واکمن کېدلو سره ددغسې پېښو لپاره یوه صحنه شوه، ځکه چې دغه ګوند د قانون له لارې نه، بلکې په وچ زور سره واک ته رسېدلی و او ځکه چې دغه ګوند نور ګوندونه ځپل او په خلکو یې زورواکي کوله، د هغو له خوا په پټو او څرګندو مخالفتونو سره مخ شو. په دغه حال کې حاکم ګوند او حکومت مجبور شول، ترهرڅه دمخه د هغو د ځپلو او د خپل حاکمیت د خوندي کولو په فکر وي. اصلي نیمګړتیا دا وه، چې کودتایي حکومت د لایقو افغانانو ترکیب نه، بلکې د کمونستي ایډیالوجۍ له مخې ددغسې کسانو ترکیب شو، چې خواریکښو ته د خدمت او له فرد نه د فرد د استثمار د امحا په پلمه یې زورواکي کوله.

## د حکومت لومړي ګامونه

د ثور په لسمه د خلق دموکراتیک گوند په سروالی د حکومت کولو اعلام زیاتره افغانان اندېښمن کړل. یو خو دا چې ویل کېده، چې په وطن کې کمونستان په واک شول، بله دا چې خلکو دغه بې تجربې گوندیان د حکومت کولو وړ نه بلل. اندېښنه هغومره د محمد داود له نسکورېدلو څخه نه وه، چې د نویو او ناپېژندل شویو څېرو د هسکېدلو له امله وه. خلک که څه هم د محمد داود له زورواکۍ نه ناراضي وو، خو په کودتا سره یې حکومت نسکورول او د هغه د کورنیو غړیو او وزیرانو وژنه یې د راتلونکي لپاره بده علامه گڼله. خلک له دېنه هم په وېره کې شول، چې نوی حکومت به د شوروي اتحاد په ملاتړ په افغانستان کې د کمونزم د خپرولو لپاره کوښښ وکړي او زیار به وباسي، چې د دوی ژوند طرز او ملي او دیني ارزښتونه واړوي. وېره هغه وخت لا زیاته شوه، چې خلقي لویانو خپل نظام لږ و ډېر په هغه شکل په پښو ودروه، چې بولشویکانو د اکتوبر له کودتا نه وروسته په پښو درولی وو. داسې هم هغسې، چې په شوروي اتحاد کې د تشدد ایډیالوجي غوره شوې وه، خلقي لویانو هم له دغسې ایډیالوجۍ نه کار واخیست. په واقع کې دوی ته شوروي اتحاد او په خاص ډول لېنن سرمشق شو. په داسې حال کې، چې د لېنن واقعي څېره دوی ته معلومه نه وه او په تبلیغي څېرې باندې غولېدلي وو، لکه چې تر دې نږدې وختو پورې ډېر نور هم پرې غولېدلي وو.

تر دې نږدې وختو پورې ویل کېده، چې لېنن په اصل کې د تشدد پرخلاف یو زړه سواندی انسان و او دا ستالین و، چې د لېنن له مړینې وروسته یې د ترور او دکتاتورۍ لار ونیوله. الیکزاندر یه کوولیف چې د میخائیل گورباچوف په وخت کې د شوروي اتحاد د کمونستي گوند دپولټ بورو غړی او د گورباچوف د اصلاحي سیاست یا پرسترویکا اصلي نوښتگر او مشاور و په خپل یوه نوي اثر کې

وايي، چې په شوروي اتحاد کې د ترور د سياست اصلي مؤسس لېنن و او لېنن د چيکا د سروال له وژل کېدلو وروسته خپل ترور ستي چلند غوره کړی و. لېنن د 1918کال د جون په 21مه ګريګوري زينوويف ته په خپل قلم وليکلو چې "... موږ تر مرګ پورې په جنګ اخته يو. حتمي ده، چې موږ بايد د انقلاب ضد په برابر کې خپله انرجي او د ترور ټول امکانات په تېره په پتروګراد کې تجهيز کړو، چې د هغو مثال به غوڅ وي." د اګست په نهمه يې فيودوروف ته په نووګراد کې په يوه تېلګرام کې وويل، چې "موږ بايد هرڅه وکړو، له درې دکتاتورانو نه يوه کميټه... جوړه کړو، سمدلاسه عمومي ترور پېل کړو. په سلګونو فاحشې زموږ سرتېري او پخواني افسران او نور نشه کوي، ووژنو او پرار کړو. يوه دقيقه هم ځنډ په کار نه دی. موږ ته حتمي ده، چې عمل وکړو. عمومي لټونې، د وسلو پټولو لپاره اعدامونه د منشويکانو او نورو غېر اعتمادي کسانو تبعيد." لېنن په هماغه ورځ ملګري بوش ته په سنزا کې هدايت ورکړ، چې "اساسي ده، چې له اعتمادي غوره کسانو نه د محافظانو يوه پياوړې ډله تنظيم کړې، د کولاکانو، مذهبيانو او سپين محافظانو پرضد يو بې رحمه عمومي ترور پيل کړې. مشکوک کسان بايد له ښار نه دباندې په يوه کامپ کې بندي شي." لېنن په بله ورځ په پنزا کې څو کمونست ملګري په دې ډول مخاطب کړل: "ملګرو! د کولاکستان پېنځه ناحيې بايد په بې رحمۍ سره وځپلی شي. د ټول انقلاب د ګټو غوښتنه همدغه ده، ځکه چې له کولاکانو سره اخري جنګ دی، په ټولو ځايونو کې له پېژندل شويو کولاکانو، پشوګانو او ويني زبېښوونکيو نه چې له سلو نه کم نه وي، په دار وځړوئ... لکه چې په پرو نې تېلګرام کې ويل شوي يرغمل ونيسي. دغه کار په دغه ډول وکړئ، چې خلک يې په سلګونو ميلو ليرې ووينې او وويرېږي." (18)

د خلق او پرچم ګوندګیو ډېرو غړیو د لېنن په فکرونو باندې هغسې ټینګه عقیده لرله، لکه چې د یوې طریقې مریدان یې په خپل پیر لري. تره کي ویل، چې "خو لېنن مونږ ته ښودلي، چې د انقلاب د دښمنانو په برابر کې باید بې رحمه اوسو او په ملیونونو خلک باید له منځه یووړل شي، ترڅو د اکتوبر انقلاب بریالی شي." تره کي دغه څه هغه وخت پوزانوف ته ویلي و، چې ورنه یې غوښتي و، چې سلطان علي کشتمند او عبدالقادر چې د کودتا په کولو تورن شوي او بندي شوي وو، ونه وژني[19].

ستالین بیا د ترور په چلند کې له لېنن نه هم دمخه ولاړ. په شوروي اتحاد کې غټ تبلیغ دا و، چې "ستالین د نن ورځې لېنن دی." دغه فارمول په خپله ستالین ایستلی و. په کوولیف وایي، چې دغه تبلیغ د نورو رسمي تبلیغونو پرخلاف سم او مناسب و. د هغه په وینا "ستالین په نفرت او وینې ته په لېوالتیا کې په رښتیا هم د لېنن شاګرد شو. هغه نه یواځې د لېنن جنایي کوښښونه په ټینګه پرمخ بیول، د کولیکتیف کولو او د کولاکانو له منځه وړلو په وېروونکیو کلونو کې یې د ځمکه والو طبقې له مینځه وړل تکمیل کړل، چې دا د روسیې په تاریخ کې یوه غټه غمیزه وه.[20]"

د ستالین په وخت کې د ټولو سیاسي ګوندونو په تېره د منشویکانو، روسي انقلابیانو او تراتسکیانو او داسې هم د روښانفکرو او مذهبي ډلو ځپل تکمیل شول. په ټولیز ډول د شوروي اتحاد په څه باندې اویا کلو عمر کې په ملیونو شورویان له منځه یووړل شول، چې په هغو کې د کولاکانو یا ځمکه والو شمېر بېخي ډېر وو. شوروي اتحاد په ټوله نړۍ کې یواځینی هېواد وو، چې خپل تبعه یې په دغومره ډېر شمېر په ارادي ډول له منځه وړي دي. بل هېڅ حکومت خپل خلک په هغه تناسب له منځه وړي نه دي. په دې

ډول شوري اتحاد وښودله، چې متحد المرکز ایډیالوجیکي نظام او انسان وژنه لکه نوک او ورئ داسې دي.

خلقي چاروا کیو د فرمانونو له لارې په حکومت کولو پیل وکړ. ددې لپاره، چې دوی د عمل آزادي ولري، اساسي قانون یې له منځه یووړ، بې له دې چې نوی اساسي قانون وباسي. نور محمد تره کي د زوروا کو واکمنو په شان احکام د فرمانونو په شکل ایستل. فرمانونه د غومره مهم ګڼل کېدل، چې لکه قانونونه او تلپاتي وي. فرمانونه که څه هم د انقلابي شورا په نامه ایستل کېدل، اصلي سرچینه یې د ګوند د مرکزي کمېټې سیاسي دفتر وو چې له یوولسو ګوندیانو نه جوړ او سروال یې د عمومي یا لوی منشي په نامه همدغه تره کی و، چې هېڅ چا ته یې مسؤلیت نه لاره. د خدمت دوره یې د قانون له مخې محدوده هم نه وه، دی په واقع کې د روسي امپراتور په شان اتوکرات او په خپل سر واکمن و. د سیاسي دفتر د غړیو دوره هم ناټاکلې وه او هغه د نورو په تېره د عمومي منشي په خوښه وه. حکومت د مرکزي کمېټې په هدایت چلېده او وزارتونه د پخوا پرخلاف یواځې د تخنیکي او فني چارو لپاره مامور شول. دغه حکم په خاص ډول د هغو وزارتونو په اړه رښتیا و، چې وزیران یې د سیاسي بورو غړي نه وو. د ټولو اساسي سیاستونو ایستل او د هر راز طرحې تجویز نیول د سیاسي دفتر مسؤلیت شو. د ګوند په مرکزي کمېټې کې د هر وزارت لپاره یوه څانګه د کمېټې په نامه وایستله شوه. پر دغو ټولو سربېره د ملي مصؤنیت یا استخباراتو اداره د افغانستان د ګټو ساتلو اداره (اګسا) په نامه په ډېرو پراخو تشکیلاتو او لوړ صلاحیت د خلکو، سیاسي ډلو او په خپله د حکومتي مامورانو او ګوندي غړیو د څارنې لپاره جوړه شوه. په دې ډول په افغانستان کې د ثور تر کودتا وروسته ددغسې

سیستم بنیاد کې ښودل شو، چې دوه ډوله حکومتونه یکې په کار ولوېدل. په دغه سیستم کې پاسني کسان په خاص ډول عمومي منشي د لوړ واک خاوندان شول، خو څنګه چې واک په قانون سره ټاکل شوی او محدود نه و، د ګوندي لویانو په مېنځ کې چې له تره کي پرته په عمر کې لږ و ډېر سره برابر وو، سیالي او توطیې رواني شوې.

نور محمد تره کي د ثور په اتلسمه له افغانستان راډیو نه د "اساسي کرښو" په نامه یوه وینا واوروله، چې حکومت ورته د اساسي قانون په شان اهمیت ورکاوه. په دغې وینا کې د باندنیو او دننیو چارو په اړه اساسي ټکي بیان شول، چې په هغو کې د ځمکو د اصلاحاتو، د فیوډالي او فیوډالۍ نه دمخه اړیکو د الغا، د دولتي سکتور د پیاوړتیا و عدې ور کړل شوې. بله مهمه وعده دا وه: "تصفیه دستگاه دولت از وجود عناصر ضد انقلاب، ضد دموکراتیک و ضد منافع خلق و وطن و ایجاد یک اداره دولتی سالم دموکراتیک و خدمت گذار مردم." په یوې بلې فقرې کې ویل شوي و، چې "وضع و تطبیق قوانین دموکراتیک در تمام عرصه ها و الغای کلیه قوانین، مقررات و مؤسسه های که با ارمان ها و اصول انقلاب هفت ثور در تناقض است." (21) نوي حکومت په دغه ډول د خپل فعالیت ډګر ډېر پراخ ونیوه، له دولتي دستګاه نه یې د "ضد انقلاب عناصرو" د تصفیې په اعلام سره د مخالفانو ځپل خپل څرګند سیاست وګرځاوه. سرو خلقیانو چې ځانونه یې "انقلابي او قاطع شخصیتونه او د انقلاب ساتونکي" (22) بلل، له هغه نه د مخالفانو په ځپلو کې پوره کار واخیست. په دې ډول، چې هر هغه افغان چې یې نه خوښېد ورسره به یې د "ضد انقلاب" په نامه " انقلابي برخورد" کاوه، چې مانا یې د هغه ځپل یا بندي کول او یا وژل و.

حکومتي ادارو د پخوا په شان کارونو ته

ادامه ورکړه، د قدرت په انتقال کې څنډ پېښ نه شو، خو نوي حکومت چې ځان ته يې "انقلابي" وايه، ډېرو غټو موضوعګانو ته لاس واچوه. دا له دې امله، چې يو خو ګوندي لويانو د اساسي او ښتون راوستلو په نامه غړي پرځان را ټول کړي وو، بله دا چې دغو لويانو د خواريکښو د ژوند د ښه کولو په مقصد ناشونکې وعدې ورکړې وې. څنګه چې دغه حکومت اجتماعي بيخ نه لاره، د هغه د پيدا کولو او د مخالفانو د شنډولو لپاره يې ځان مجبور وليد، چې د خواريکښو د ژوند د ښه کولو په مقصد غټو کارونو ته لاس واچوي، نو يې د خپلې مادي فلسفې له مخې خواريکښو ته د "کور، کالي، ډوډۍ" شعار عام کړ او ددې پروا يې نه کوله، چې په دغې شعار سره انسانان د څارويو سطح ته کوزېږي او انسان له هغو نه اخوا نورو څيزونو او ارزښتونو ته په هماغه اندازه ضرورت لري.

حکومت د انقلابي شورا په نامه د جوزا د مياشتې تر دوه ويشتمې پورې پېنځه فرمانونه يو په بل پسې وايستل، چې هغه د نوي سياسي نظام د جوړښت، له نوي سره بېرغ او د پخوانۍ واکمنې محمدزي کورنۍ د غړيو په اړه وو. څلورم لمبر فرمان، چې خاص د نوي بېرغ په اړه و، د اندېښنې وړ شو، خو د بېرغ تر هسکولو پورې هغه کومه موضوع نه وه. د دولتي تشکيلاتو په ترڅ کې انقلابي نظامي محکمه د انقلاب ضد عناصرو د محاکمې لپاره جوړه شوه او د عسکري اصولنامې له مخې اکسا ته د تورنو په محاکمه کولو کې ډېر واک ورکړل شو. په داسې حال کې، چې ان د ثور په لسمه په ټول ملک کې نظامي حکومت اعلام شوی و، په پېنځم فرمان سره هر افغان مکلف وګڼل شو چې د انقلابي ګټو نه "دفاع" او د انقلابي شورا د قانونو "اطاعت" وکړي. په همدغه فرمان سره د سلطنت ټول غړي د پخواني پاچا په ګډون، چې 23تنه کېدل "ملي خاينان" وبلل شول

او د افغانستان له تابعیت نه محروم وګڼل شول. په دې ډول دغو فرمانونو د انقلاب، ملي ګټو او ملي امنیت په نومونو د ثور انقلاب په نامه اکسا ته د ترور کولو لار خلاصه کړه.

## لومړي اعتراضونه او د حکومت ځواب

له کله چې دمخه وویل شول، د خلقي حکومت په هسکېدلو سره افغانان اندېښمن شول. غټه اندېښنه دا وه، چې افغانستان به د کمونزم په لور روان کړل شي. زیاتره افغانان د خلقي حکومت مخالف او د کمونزم دښمنان وو، خو په خلکو کې نظم نه و. هغه درې اسلامي تنظیمونه، چې د نوي حکومت تېنګ مخالف وو، د محمد داود د حکومت په مقابل کې له ناکامو پاڅونونو نه وروسته له اعتبار نه لوېدلي او سران یې په پېښور کې اوسېدل. چین پلوي شعله یان یا ماوستان او نورې چپې ډلې هم د نوي حکومت سختې مخالفې وې، خو له هغه سره یې د ښکاره مقابلې توان نه درلود. غړو یې چې زیاتره ښاري او تعلیم کړي وو، د پټو مخالفتونو او تخریبونو لار ونیوله، خو د حکومت لاس په ټولو بر و. د غه لاس برى د پوځ او ګوند په سبب و، پوځ چې سرتېري او افسران یې او یا زره او په عصري او پېچلو وسلو سمبال و، د خلقي افسرانو تر کنټرول لاندې و. سره له دې، چې په پوځ کې اخواني او ملتپال افسران هم ډېر وو، د حکومت د قوت اصلي ستنه رسمي ګوند و، چې زیاتره خلقیان یې سر پرېکړي ملاتړان وو او د ټولو شاته ګاونډي شوروي اتحاد و، چې له امریکې نه وروسته زبرځواک هېواد و. نوي حکومت ته د افغانستان بانک کې د څلور سوو ملیونو ډالرو زېرمه هم په لاس ورغله.

حکومت په دغه حال کې هم په پوځ او هم په

ټولنې کې د ماوستانو، اخوانیانو او "تنګ نظره نېشنلستانو" په ځپلو پیل وکړ او دا یې یو انقلابي عمل وګاڼه. افغانانو ته ژوند په عادي حال کې هم ډېر ارزښت نه لاره. اوس خلقي ګوندیانو افغان وژنې ته انقلابي بڼه ورکړه او په دې اړه یې قوي تبلیغ هم پیل کړ. لویانو خپل ګوندیان هڅول، چې مخالفان له مېنځه یوسي، د ګوند د سیاسي دفتر له یوه غړي نه اورېدل شوي، چې له یوه دوه مرګ نه وروسته مرګ یو عادي څیز کېږي. د هرات له پاڅون وروسته حکومت حتی په خپلې رسمي اعلامیې کې له خلکو نه وغوښتل، چې "دښمنان له مېنځه یوسي."[23] حفیظ الله امین د 1357 کال په دلو کې د حربي پوهنتون فارغانو ته په خطاب کې وویل، چې "... انانیکه... در تاریکی علیه ما توطیه می چینند... در تاریکی از بین برده میشوند. ما هر آن عنصریکه... علیه تکامل پیروزمندانه انقلاب ما سر بالا میکنند، به هنگام قلعه وقمع مینماییم." ده دا هم وویل، چې "هر آن کسیکه... بنام دین اسلام بر ضد نظام خلقی شان تبلیغ میکنند... و یا طرح دسیسه میریزد انرا بحیث خاین وطن دستگیر مینمایند."[24] حکومت ته دغه "دښمنان" "مسلمان ډوله پرنګیان وو" چې مقصد یې اخوانیان وو. اخوانیان، چې اول په اسلامي جمعیت کې تنظیم شوي وو، په دغه وخت کې په درې تنظیمونو کې وېشل شوي او درې واړه یې بنسټپال اسلامست وو. په دغه مانا چې دوی به د سیاسي قدرت له لارې ټولنه او دولت اسلامي او په شرع برابر وګرځوي. دغه درې تنظیمونه، چې مشران یې په پېښور کې اوسېدل، د افغانستان اسلامي جمعیت د برهان الدین رباني، د افغانستان اسلامي حزب د مولوی محمد یونس خالص او د افغانستان اسلامي حزب د ګلبدین حکمتیار په مشری وو.

افغان ټولنه، چې د محمد داود له کوده تا نه وروسته د حکومتي پرچمیانو په کړو سره تاوجنه

شوي وه، د ثور له کودتا نه وروسته د خلقي لو یانو په کړو سره نوره هم کړکېچنه شوه او خلک حکومت ته بدوراګي شول. خلک یو ځای بل ځای اول بې له پخواني اماده توب نه د حکومت پر ضد پاڅېدل، د غه پاڅونونه چې په اول سر کې واړه او محلي وو، وروسته د غټې ناکرارۍ پیلامه شول.

د ثور له کودتا نه پېنځه ورځې وروسته د ثور د میاشتې په دیارلسمه د پکتیا د زېړوک علاقه داري ځدران د حکومت په مقابل کې جګ شول او پرچمي علاقه دار او یو څو خلقي ښوونکي یې ووژل او د حکومت پر ضد یې جهاد اعلام کړ. څنګه چې دا یو محلي قیام او له کابل نه لیرې و، خلک پرې خبر نه شول ) په تېره چې حکومت هغه د ګل عثمان ګربز په تدبیر سره زر غلی کړ او قیام له یاده وایستل شو.( څلور ورځې وروسته د پکتیا د وزې ولسوالۍ هم د لږ وخت لپاره د حکومت له کنټرول نه ازاده شوه[25]. تر هغه لوی قیام د پېچ ولسوالۍ د ننګلام د خلکو وو، چې دثور په 23مه وشو. خلک په ظاهر کې د پېچ د نوي ځايي خلقي ولسوال د هنډې او سر زوري له امله جګ شوي وو، چې د یوه نفوذ ناک روحاني سپکاوی یې کړی و. په نتیجه کې د پېچ اوږده دره وپاربده او ډېر مرګ او ژوبله وشوه. حکوت د ربړو نو په ګاللو سره د غه پاڅون غلی او خپل حاکمیت بېرته پرې جاري کړ، خو د تاثیر او اهمیت په لحاظ هغه حکومتي ضد حرکت و، چې له کودتا نه وروسته )څومره وروسته معلومه نه ده( په لوګر کې پیل شو. هلته یو ځای بل ځای په دغه مقصد جرګې وشوې، چې د "کمونستي حکومت" په مقابل کې څه وکړي؟ ځواب جهاد و، که څه هم ګونديان د لوګر او د دوی خپلوان او حتی ورو نه او زا من وي. دوی په د غه وخت کې په عام ډول جګ نه شول، خو حکومتي ضد شعور یې خپور کړ او د وروستیو فعالیتونو لپاره یې لار هواره کړه. دا هم د حکومت لپاره ګرانه شوه. لوګر

کابل ښار ته نږدې او شمالي غونډې د هر حکومت لپاره مهم دی. دا چې پکتیا ته د حکومت لار له لوګر نه تېرېږي، له دې امله هم حکومت ته مهمه وه، چې په لوګر باندې کنټرول ولري. څنګه چې په لوګر کې اجتماعي پېوستون ټینګ او اجتماعي توپیرونه او امتیازونه پکې لږ دي، د حکومت لپاره ګرانه وه چې په پارېدلو لوګریانو کې نفوذ وکړي. څنګه چې نږدې هر لوګری په پښتو او فارسي روان ګړېږي، د دغه حقیقت هم په اجتماعي پېوستون کې غټ رول ادا کوي. په هر حال، ددغه پېوستون له برکته په لوګر کې دغسې کوم قومي، ژبنی، یا مذهبي دردېدلی اقلیت نه و، چې حکومت پرې نفوذ وکړي او د نورو پر ضد ترېنه کار واخلي.

حکومت د پورته او نورو پېښو په کتنې سره او دا چې د مخالفانو فعالیتونه او تبلیغونه بې اثره کړي، په دوو کارونو لاس پورې کړ. یو دا چې د ګوندي او حکومتي فعالانو له لارې یې په ټول ملک کې قومونه مذهبي او اجتماعي ډلې او حکومتي ماموران وهڅول، چې د "انقلاب" په ملاتړ لاریونونه وکړي، غونډې جوړې کړي، اتڼونه وکړي او حکومت ته د مبارکۍ پیغامونه واستوي. بله دا چې له ټول ملک نه یې قومي او مذهبي مشران او مخور وار په وار کابل ته غوښتل او هلته یې له نور محمد تره کي او امین سره لیدل. کارمل ته موقع نه ورکول کېدله، چې له هغو سره ووینې. تره کي د هغو هرې ډلې ته په عامه او ساده ژبه وینا وې کولې او په هغو کې به یې د خپل حکومت پروګرامونه څرګندول. د "انقلاب" ښېګڼې یې بیانولې او په تېرو حکومتونو یې نیوکې کولې. دا به یې هم ورته ویل، چې د خلقي حکومت کسان چې له ولس نه ولاړ شوي، د دوی ورونه او زامن دي او د دوی د خدمت لپاره یې

لاسونه بـه وهلـي او د همدغـه مقصد لپـاره يـې پـخوانـی حکومت ړنګ کړی او د خلقي نظام بنسټ يې ايښی دی. نـور محمـد تـره کـي پـه خپلـو دغـو لېکچرونـو سـره هغـه ذهنيـت، چـې د کودتـا پـه لومړيـو ورځـو کـې دده او دده د ملګـرو پـه اړه پيدا شوی و او د هغـه لـه مخـې يـې دوی "کمونسـت" او "کـافر" بلـل، تـر ډېـر حـده پـورې خفيـف وګرځاوه. خلقـيان، چې نـزدې ټول يې ځوانـان وو، په دې فکر شول چې دوی تره کي ته د يوه مـشر په توګه سخت ضرورت لري. بيا نو د تـره کي ستاينه له حد نه واوښته، پـه هرې رسمي ويـنا او ليکنې کې به تره کـي د "شـرق نـابغـه"، "د ګونـد روح" او "ستر لارښود" په لوړو لقبونو يادېـده. مـا يـو ځـل د انيس ورځپاڼې په يوې ګڼې کې د هغې په درې مخونو کې دده نوم په همدغسې لقبونو سره پېنځه ديـرش کرتـه ولـيـد. د ښار پـه هـرې دولـتـي مـاڼۍ باندې د تـره کي لوی عکسونـه ځړول شوي وو، تـره کي ولسي مـخورو تـه پـه لېکچر ورکولو سره خپل حکومت او ګوند ته بې ساری خدمت وکړ. هغومره، چې دی پـه دغه وخت کې وځلېد، بـيـا هېڅکله و نـه ځلېد.

# تـرور او وژنې

پور تـه ويـناوې او تبليغو نه ددې لپـاره وو، چـې خلکو تـه د غـټو وعدو پـه ورکـولو سره د حکومت پـه اړه روغ نيتي پيدا شي، خو هغه څه چې انسانان پـه ژوره توګـه اغېـزمن کـوي، پـه دوی بانـدې د سياسـت او پروګـرام عملـي کـول دي. هغـه څـه چـې نويو چـارواکيو د امنيت او انقلاب پـه نامه حتی د کودتـا پـه اولو شپو ورځو کې د پـالېسۍ لـه مخې وکړل، هغومره بې ساري وو لکه پـه لږ وخت کې چې د دوی لـه خوا د حکومـت نـيول و. دغـه نوي څه د چـارواکيو پـه تېـره امنيـت چـارواکيو لـه خـوا د

افغانانو ډلې ډلې ترور او وژنه وه.

ترور او وژنه له کابل نه پیل شوه، که څه هم د نوي حکومت پر ضد نه فردي او نه ډله ییز عمل شوی و. د ثور په دیارلسم ماښام د نهو بجو په شاوخوا کې د پخواني حکومت د سرکسان په هغه ځای کې ووژل شول، چې د خلقیانو "انقلاب" ترېنه پیل شوی و: څرخي پله ته نزدې د څلورمې زغرورې قوې هستوګنځی. په دغه ځای کې د پاچایي د وختونو صدراعظم او د پاندنیو چارو وزیر موسی شفیق، د تېر حکومت د بهرنیو چارو د وزارت مرستیال سید وحید عبدالله، د عدلیې وزیر او لوی څارنوال وفي الله سمیعي او یو څو نور د زغرورې قوې پخلنځي ته ورخرمه د پولیګون په نامه ډګر کې له مېنځه یووړل شول. ویل شوي، چې د نوي حکومت د دفاع وزیر عبدالقادر او پرچمي افسر خلیل بابکرخېل هم هلته چیرې نزدې ولاړ وو. په یوه روایت خلیل په خپلې توپنګچې سره هغه وواژه او وروسته، چې په څرخي پله کې بندي شو، دغه وژنه یې په ویاړ سره یادوله.

موسی شفیق د مصر د ازهر په پوهنتون کې د لېسانس او ماستري شهادتنامې او بیا د ممتاز محصل په توګه د امریکې د کولمبیا پوهنتون کې په مقایسوي حقوقو کې د ماستري بله شهادتنامه حاصله کړې وه. په دې ډول دی د اسلامي او غربي حقوقو متخصص و. دی په پښتو، فارسي، انګرېزي، عربي او فرانسوي پوهېده. شاعر، لیکوال، نطاق او داستان لیکونکی او نوښتګر انسان و. د نومیالیو شخصیتونو لکه عبدالصمد حامد، سید شمس الدین مجروح او نورو په ملګرتیا یې د قانوني پاچایي د اساسي قانون له اېستلو نه وروسته، چې انګلستان ته په یوه رسمي سفر تللی و، د لندن پوهنتون د اسیا او افریقې پوهنځي استادانو او محصلانو ته یې د همدغه قانون په اړه په لوړه سویه وینا وکړه او پوښتنو ته ځوابونه ورکړل. لیکونکی هم هلته و، د

صدراعظمۍ په دوره کې موسی شفیق په دې لټه کې و، چې افغانستان په شوروي اتحاد باندې له مخ په زیاتېدونکي خطر ناکې اتکا نه وژغورل شي او ایران او پاکستان ته په نږدې کولو سره د لویدیځ پر خوا واړول شي. د هغه په فکر چپیان هېواد ته خطر وو، ځکه یې د صدراعظمۍ په وخت کې تر فشار لاندې نیولي وو، خو محمد داود پرې زر کودتا وکړه. موسی شفیق د یوه ډینامیک مستعد او جذاب انسان په حیث خپلو دوستانو ته د اعتماد وړ او حتی د الهام منبع وه، خو چپي ګوندو نه ور سره مخالف او پرچمي لویان یې د ښمن وو. هغه شاید تر کودتا نه وروسته د کارمل په هدایت وژل شوی وي. په یوه روایت سره شفیق تر کودتا وروسته ددې پرځای، چې له هېواد نه ووځي، د تره کي دفتر ته د مبارکۍ ویلو لپاره لاړ. تره کي ورته د ویښ زلمیانو د وخت د غومره نږدې دوست و، چې فکر یې نه کاوه چې د هغه په واکمنۍ کې به ده ته ضرر ورسول شي، خو تره کي په دغه وخت کې په دفتر کې نه و او ده خپل د هویت کارډ ور ته پرېښود او هغه د کارمل لاس ته ورغی. کارمل د تره کي په غیاب کې د شفیق د نیولو امر صادر کړ، چې وروسته ووژل شو. دده په ځوانیمرګ توب سره افغانستان له خپل دغسې وړ بچي نه محروم کړی شو، چې د هغه اعتبار له مخې چې په وطن، په عربي او لویدیځو ملکونو یې لاره، وطن ته د شوروي یرغل نه وروسته بحران کې اساسي خدمت کولی شو.

وفي الله سمیعي هم یو وتلی عالم او د اصولي عمل سړی و. د از هر پوهنتون نه له فراغت نه وروسته اول د کابل پوهنتون رییس او بیا د عدلیې وزیر او لوی څارنوال شو. د یوه ټینګ اعتدال مسلمان په حث له کمونزم سره مخالف او له عربي هېوادونو سره د افغانستان د نږدې کېدو په سیاست کې د محمد داود ټینګ مرستیال و، لکه هغسې چې وحید عبدالله له لویدیځو ملکونو

سره د افغانستان د نزدې کولو په سیاست کې ټینګ و. داسې هم وحید عبدالله د بهرنیو چارو په وزارت کې د سمون راوستلو په لړ کې کوښښ کاوه، چې نه یوازې ددغه وزارت لیسانس دیپلوماتان، بلکې د نورو وزارتونو لیسانس ماموران د دیپلوماسۍ کورس په لوستلو سره د ماسټرۍ شهادتنامه ترلاسه کړي. د همدغه مقصد لپاره په دغه وزارت کې په لوړه سویه یو کورس پرانیستل شوی و، چې ما هم د پوهنتون د یو شمېر نورو استادانو په ملګرتیا ورته درس ورکاوه. وحید عبدالله له دغه کور سره د غومره علاقمن و، چې په ازموینه کې به یې د مشاهد په توګه ګډون کاوه.

په دغو کسانو باندې هېڅ تور نه و لګول شوی، یو هم محاکمه نه شو. یوه هم د نوي حکومت پر ضد عمل نه و کړی، دوی د نورو په شان له کورونو نه واېستل شول او له یو ځو ورځو بند وروسته په داسې حال کې، چې امنیت پرځای و، له منځه یووړل شول.

## سیاسي آمران او لومړني ګوندي سازمانونه

د افغانستان د حکومتونو یوه ځانګړتیا د امن په حال کې هم نه یوازې د فعالو، بلکې د بالقوه مخالفانو ځپل دي. هغو حکومتونو دغسې کارونه ډېر کړي دي، چې دولتي واک یې په زور سره نیولی او بیا یې هغه د امنیت، خدمت او پرمختګ په نامه ځانله منحصر کړي او نور یې ترېنه بې برخې کړي دي. په دغسې حال کې د چارواکیو لپاره له واک نه د خپلې خوښې استفادې امکان ډېر شوی، په تېره د هغو لپاره چې د خپلې ایډیالوجۍ له مخې چې دوی ته سپېڅلې ښکاري، خپل ځانونه په سمه لار روان او مخالفان بې لارې ګڼلي. دوی بیا په دې پسې شوي، چې په خپل فکر دغه بې لارې وځپي، بې له دې چې د قانون او اخلاق پروا وکړي. په دغسې حال کې

نورو ته ممکنه نه وي، چې حتی د هغو پېښو په هکله هم چې د دوی په ژوند نېغ اثر کوي، د خپل ازاد فکر او وجدان له مخې اواز او چت کړي، دا خو لا پرځای پرېږده چې د هغو له مخې په عمل لاس پورې کړي.
په افغانستان کې د پاچا امان الله او پاچا محمد ظاهر له قانوني واکمنۍ پرته د څه کم سلو کلونو په بهیر کې لږ و ډېر همدغسې شوي. په دغې مودې کې د فرد حیثیت او ژوند د حکومتي قدرت په برابر کې، چې د پولیسو، سرتېرو، حاکمانو او عدلي محکمو په بڼه ځرګند شوی، بې اهمیته شوي. په داسې حال کې، چې د حکومت د پیاوړتیا نه دمخه افغانان د ازادۍ له لوړې درجې نه برخمن وو. په نتیجه کې په افغانستان کې فردي استعداد چې د نامحدود انکشاف ظرفیت لري، انکشاف نه دی کړی یا په کافي اندازه انکشاف نه دی کړی. ځینو چې څه ځلا لرلې ده، په حکومتي چوکاټ کې یې دننه لرلې ده، خو څنګه چې حکومتي چوکاټ په اصل کې محدود وی، ددغسې افرادو انکشاف هم محدود و. ددغه محدودیت پایله هغه شوې، چې انګلیس فیلسوف جان ستوارت مل څه باندې یوه پېړۍ دمخه د هغه وړاندوینه کړې وه. هغه ویلي و، چې په اوږدې مودې کې د دولت ارزښت دهغو افرادو ارزښت دی، چې دولت تری‌نه جوړ دی او هغه دولت چې خپل افراد کوچني کوي، ددې لپاره چې د هغه د لاس ارامې وسیلې وګرځي، که څه هم هغه به د ګټورو موخو لپاره وي، وبه مومي چې په وړو انسانانو سره لوی کارونه، نه ترسره کېږي.
تر ستوارت مل دمخه جرمني فیلسوف ایمانویل کانت ویلي و، چې هېڅ انسان باید د بل انسان د لاس الې ونه ګرځول شي. فرد او ژوند ته ددغه اهمیت او ارزښت د قایل توب له امله ده، چې د یهودو په لرغوني مذهبي او مدني قانون، تالمود کې راغلي، چې هغه څوک چې یو ځانګړی ژوند

ژغوري لکه چې ټوله نړۍ يې ژغورلې وي او هغه څوک، چې يو ځانګړی ژوند له مېنځه وړي، لکه چې ټوله نړۍ يې له مېنځه وړې وي.
د همدغه فکر له مخې ده، چې نن هم يو يهود بل يهود نه وژني او په زياترو لويديځو هېوادونو کې د انسان اعدام غېر قانوني ګرځول شوی دی. دغه فکر د يوې ټولنې د سالم توب لپاره اساسي اهميت لري، ځکه چې غړيو ته يې ممکنه کوي، چې د ژوند د ښه کولو لپاره رغنده او ابتکاري کارونه وکړي. د لويديځ دغه حېرانوونکې پرمختيا شايد په اصل کې د همدغه فکر له مخې د ژوند کولو نتيجه وي.
خو په مسلمانې نړۍ کې يو مسلمان بل مسلمان وژلی، وژنه په پښتنو کې شايد تر هر بل ولس نه ډېره وي. يو پښتون نه يواځې بل پښتون وژني، د خپلې کورنۍ غړي هم وژني. وژنه د دوی د کولتور په تېره د تربورۍ او ګونديمارۍ غټه خاصه ده. دا شايد د پښتنو د بېرته پاتې توب او کمزورۍ اصلي عامل وي. په دغسې وژنې سره ولس د خپل د سر او کاري کسانو له فکر، عمل او خدمت نه بې برخې کېږي او ټولنه په خاص ډول په انتقام سره په دايمي کړکېچ اخته کېږي. دا په دغسې حال کې، چې د قرآن مجيد (د النساء سورت، 92_93 ايتونه) حکم دی، چې "مومن دې هېڅکله بل مومن ونه وژني" او "که څوک يو مؤمن په قصدي ډول وژني تل پاتې ځای يې دوزخ دی او د خدای تعالی غضب به پرې باندې او لوی عذاب به ورته تيار وي."
سره له دې هم هغومره د سر پښتانه چې په تربورۍ او ګونديمارۍ کې او داسې هم د حکومتونو له خوا او په دې وروستيو وختونو کې د ايډيالوجيکي او مذهبي تندلارو له خوا وژل شوي، په طبيعي مرګ سره نه دي له مېنځه تللي. دغسې وژنه د ثور له کودتا نه وروسته بيخي ډېره شوې ده.

خلقي حکومت تر کود تا وروسته د ملي مصؤنیت اداره لغو کړه، په دغه مقصد چې له دغې بدنومې ادارې نه ځان خلاص کړي او خلکو ته و ښيي، چې نور نو د غې ځپونکې ادارې ته ضرورت نشته. په معاصر افغانستان کې د امیر عبدالرحمن، صدراعظم محمد هاشم او ترځه حده د محمد داود په وختونو کې، چې درې واړه وطنپال زورواکان وو، د جاسوسي ځالو پراخېدل، د افغانانو بندي کېدل، ځورول او وژل د حکومتونو حتمي برخه شوې وه. تاریخ ښيي، چې اتوکرات یا په خپل سر زورواک حکومتونه او دغسې افراطي کړه سره تړلي دي. څومره چې دکتاتوري پیاوړې وي، هغومره بندیخانې، وژنې، کړونې او وېرې ډېرې او شدیدې وي. خلقي او وروسته پرچمي رجیمونه په دغې برخې کې تر ټولو دمخه ولاړل.

د ملي مصؤنیت د ادارې د له مېنځه وړلو مانا په عمل کې دا شوه، چې یواځې د هغې نوم له مېنځه لاړ شي او پرځای یې د شوروي د ک.ج.ب ډوله )اګسا( په نامه دغسې زورزوره اداره تنظیم شوه، چې په بندي کولو، کړولو او وژلو کې یې هغه هم بې له محاکمې او شواهدو نه بې مسؤلیته اختیار لاره. کوم هغه قانون، چې د هغه له مخې تر محاکمې وروسته د اعدام حکم د دولت د سروال له منلو نه وروسته اجرا کېده، په انقلابي ډول له مېنځه یووړل شو. د اګسا چارواکیو ته د "انقلاب ضد" افغانانو له مېنځه وړل هغسې مطلوب شول لکه د جګړې په ډګر کې چې د دښمن وژل مطلوب وي. ددغه مطلب لپاره د پوځ او څارندوی او په عمومي ډول په هر اداري واحد کې سیاسي آمران په پوره اختیار سره وټاکل شول. تره کي ویل، چې د هغو امر دده د امر په شان د اطاعت وړ دی. سیاسي آمران په خپل فکر "انقلابیان" شول او له خپل واک نه یې د "ضد انقلاب" په ټکولو کې اعظمي استفاده وکړه او دوی د اګسا چارواکیو د "ضد انقلاب" په نامه بېحسابه

افغانان د مرګ پنجو ته وسپارل.
د عامه ذهنيت پرخلاف د کودتا په لومړيو اوونيو کې د "ضد انقلاب" د ځپلو چارې تر څارندوی نه زيات د پوځي واحدونو کار شو، د پوځ جزاوتام )ټولي، کنډک، غونډ، لوا، فرقه( ته هم د شاوخوا ملکي سيمو څارنه وسپارل شوه. څنګه چې په پوځ کې غير ګوندي افسران تر ګوندي افسرانو نه ډېر وو، حکومت له پوځ نه وېره لرله، نو د هغو افسرانو په څارنې باندې لنګر واچول شو، چې اخواني، ماوست او "تنګ نظره نېشنلستان" ګڼل کېدل. د غه افسران د " ضد انقلاب" په تور نيول کېدل او بې له محاکمې نه مجازات کېدل. په خلقي دوره کې ددغسې تورنو لپاره عدلي محکمه نه وه. په اګسا کې بنديان وهل کېدل، کړول کېدل او وژل کېدل. دا ټول ددې لپاره، چې پوځ خلقي شي او حکومت حاکم وي. سره له دې هم پوځ خلقي نه شو يا هغسې خلقي نه شو، چې حکومت غوښتل. مخالفو افسرانو په څرګند ډول له "انقلاب" نه پلوي کوله، خو په واقع کې مناسب وخت ته په انتظار وو، چې قيام وکړي. دغسې قيامونه د هرات په فرقه کې، د جلال آباد په فرقه کې، د اسمار غرني غونډ کې او د بالاحصار په لوا کې وشول، چې وروسته به يې بيان وشي. هغومره نظامي قيامونه، چې د خلقي حکومت په لنډې دورې کې وشول، د بل هېڅ افغان حکومت په مقابل کې نه دي شوي. د "انقلاب ضد" افسران د کودتا په لومړيو اوونيو کې نه يوازې په کابل کې، بلکې په ټول افغانستان کې د ملي دفاع وزير عبدالقادر په ټليفوني امر له منځه وړل شوي دي.
له کودتا نه يوه اونۍ وروسته بنديان دومره ډېر شول، چې چارواکيو ته يې ساتنه مشکله شوه. "د مې د مياشتې په شپږمه د افغانستان د وسله وال پوځ وزير عبدالقادر ] له شورويانو نه[ مشوره وغوښتله، چې له ټولو بنديانو سره

څه ډول چلند و شي؟ په دغه وخت کې د پـ ندیانو شمېر لـه لـسو زرو څخه اوښتی و او شمېر یې لا هم زیاتېده او بندي خانې ډکې وې... اندروپوف او ګرومیکو د غه مـسئله پولټ بورو ته وړاندې کړه. پولټ بورو د اندروپوف وړاندیز ومانه، چې د ک.ج.ب یو غړی چې له قادر... سره یې په اوږدې مودې کې اړیکې درلودلې، کابل ته له دغسې هدایتونو سره واستول شي، چې له بـ ندیانو سره څنګه چلند شي؟ میجر جنرال ل.ن.ګوریلوف ]په کابل کې[ د شوروي د نـ ظامي متخصصانو د مـ شر په توګه غوره شو.(26)"

په ملکي ادارو کې هم لـومړني ګوندي سازمانونه جوړ شول، په کابل پوهنتون کې سربېره پر هـ غه سازمان چې د پوهنـ تون په مرکز کې جوړ شو، په هر پوهنځي کې هم یو ګوندي سازمان جوړ شو. د ګوندي دستور له مخې دغو سازمانونو د نده لر له، چې ګوندي پرېـ کړې غړیو ته ورسوي او پر هـ غو بـ حث وکړي او و ګوري، چې اړونده اداره چارې د حزب د هدایت له مـ خې پرمخ بوځي، خو په واقع کې دد غو سازمانونو د نده دا شوه، چې دوی د خپلو اړوندو ادارو ماموران وڅارې او مخ بري یې وکړي. مخبري د شخصي کتنو له مـ خې هم کېدله. څنګه چې ګو ندیان په ټولیز ډول پر ځان ناډاډه او د ټینګې کمونستي جذبې خاوندان وو، شخصي اړیکیو او امنیتي وضعې ته یې ډېره پاملرنه کوله. کله به چې د یوه ګوندي په راپور سره تورن بـ ندي نه شو، بـ یا به هغه په نورو سازمانونو کې خـ پل ګو ندي ملګري هڅول، چې د تورن په اړه دې هم راپور ورکړي، چې بندي شي. په دغه حال کې د دوی لـ پاره د خپـ لو مربوطو ادارو د غړیو او په واقع کې د هر چا په اړه د اطلاعاتو ټولول مهم شول. دوی په مرکز کې له امنیـ تي مقامونو او بـ یا له اګـ سا سره لار پـ یدا کړه، د ځیـ نو مؤسسو آمران د همدغه ارتباط له امله د اګسا معاش لرونکي ماموران هم شول.

زیاترو خلقي ګوندیانو په خپلو سیمو او ادارو کې خپل پخواني مخالفان ترټل او حتی د مرګ پنجو ته سپارل. دغه کار دوی د اګسا له لارې کاوه. د اګسا چارواکیو استادان د پوهنتون له انګړ نه په ګړندیو موټرونو کې وړل، چې یو یې ما په خپله هم لیدلی و. په دغه اړه زه د کابل پوهنتون د ادب پوهنځي په باب یو څه په زغرده ګړېدلی شم، چې هلته مې د تاریخ درس ورکاوه.

محمد طاهر علمي د ادبیاتو د پوهنځي مرستیال او وروسته سروال د اګسا معاش خور و. دی چې د ننګرهار د شینوارو د ګلاپي له جولایانو نه و، د افغانستان د وړیا او عمومي پوهنې له برکته په وطن کې لېسانس او په شوروي اتحاد کې ماستر شوی و. دده په ټلیفون سره به د اګسا غړیو استادان او محصلان اګسا ته بېول. علمي د پوهنتون د لیلیې په تشنابونو کې تورن محصلان د شپې له خوا هم بندي کول او په سبا به یې د اګسا مامورانو ته سپارل. د ثور له کودتا نه یوه اونۍ وروسته محمد طاهر علمي د خپل پوهنځي د درویشت تنو استادانو یو لست په خپل قلم د پوهنځي سروال محمد حسن ضمیر ساپي ته وړاندې کړ، چې د هغه له مخې څوک بندي، څوک له وظیفې نه ګوښه او څوک په کور کې کېنول شي. ضمیر ساپی هک پک شو، د هغه په سپارښتنه یې عمل ونه کړ، خو دی چې د پرچم ډلګي ته منسوب و، په ځان وډار شو. ددې لپاره چې ژوند یې خوندي وي، وروسته له دې چې د لوړو زده کړو وزیر محمود سوما یې له موضوع نه خبر کړ، د پوهنځي سروالي پرېښوده او د افغانستان د علومو د اکاډمۍ غړی شو. علمي که څه هم پوهنیار و، د هغه پر ځای د پوهنځي سروال وټاکل شو. علمي د خلقي حکومت تر پایه پورې ډېر استادان او محصلان اګسا ته وسپارل، چې هلته بندي شول، وکړول شول او له مېنځه یووړل شول او لږ یې ترېنه ژوندي راووتل. په وژل شویو استادانو کې یو هم غلام

غوث شجاعي و، چې په جرمني کې يې يوولس کاله زده کړه کړې وه او په فلسفه کې يې د ډاکټرۍ شهادتنامه ترلاسه کړې وه. دی د لوړ استعداد خاوند، هېوادپال افغان او يو خوښ طبعه ډيناميک ځوان و. ليکوال و، شاعر و، مترجم و او څېړونکی هم و. په شوق سره يې استادي کوله او په محصلانو باندې هم ګران و. ما په ټول عمر کې بل څوک دده په شان له نزاکت نه ډک ټوکمار او غوريالی نه دی ليدلی.

د ادبياتو پوهنځي په نورو وژل شويو استادانو کې خان اباد وزيري، امير محمد ياد (ارملی)، محمد علم مله بار، خانباز تڼيوال او داسې هم د طب پوهنځي استاد محمد هاشم مهربان د شخصي دوستانو په حيث ماته نه هېرېدونکې څېرې دي. د ادب په پوهنځي کې محصلان تر استادانو ډېر نيول شوي او تري تم شوي دي. د نورو پوهنځيو استادان او محصلان هم د ادب د پوهنځي د استادانو او محصلانو په تناسب بندي شوي او له منځه وړل شوي دي. د څرخي پله په زندان کې مې د خلقي حکومت د لوړو زده کړو وزير محمود سوما وپوښته، چې ولې يې د استادانو او محصلانو د نيولو مخه ونه نيوله؟ هغه وويل، چې د غه موضوع دده له واک نه لوړه او د ګوندي منشيانو کار و، خو د لوړو زده کړو د وزير په توګه دا دده وظيفه وه، چې د پوهنتون د استادانو او محصلانو د غير قانوني بندي کېدلو مخه ونيسي او لږ تر لږه محمد طاهر علمي او د هغه په شان د پوهنتون نور کسان کنټرول يا له وظيفې نه ګوښه کړي، خو ده په دې اړه هېڅ و نه کړل او طاهر علمي ته بيا نورو دغسې جزا ورکړه، چې ګومان نه کوم په نړۍ کې به بل چا ته دغسې جزا ورکړل شوې وي. طاهر علمي د پرچمي رجيم په پيل سره له شينوارو نه د پېښور پر لور وخوځېد، چې د خپلو جنايتونو له جزا نه ځان وژغوري، خو دی په لار کې د کوم

اسلامي تنظئم مجاهدو ته په لاس ورغی. په یوه روایت مجاهدو علمي د یوه هسک غره سرته بوته، هلته یې د هغه لاس او پښې تیذ ګې وتړلې او مخ ښکته یې تړېل وهه. محمد طاهر علمي بیا چا ژوندی ونه لید.

## د پرچمیانو ځپل کېدل

لکه چې دمخه مې ویلي، پرچمیان او خلقیان سره له دې چې د یوه ګوند غړي وو، له اوله نه سره وران وو. د اختلاف غټ لاملونه یې درې وو: د دوی د ګوندګیو ترکیب، له شوروي اتحاد سره اړیکې او د لویانو په تېره د کارمل او امین ترمېنځ اختلاف. د دوی د ډلو په ترکیب دمخه ګړېدی یم. په دې هم غږېدلی یم، چې پرچمیان شوروي اتحاد ته زیات و فادار او شوروي اتحاد هم غوښتل، چې پرچمیان حکومت په لاس کې و لري، خو څنګه چې کودتا په اصل کې خلقیانو کړې وه، هغو نه غوښتل پرچمیانو ته په حکومت کې برابره برخه ورکړي، خو د شوروي اتحاد په هڅونې یا فشار سره د غه کار ته اړ شول. شوروي اتحاد او پرچمي لویان په د غه امتیاز هم قانع نه وو. د اقبال وزیري په وینا، ک.ج.ب والو "... د ثور د انقلاب د بریالیتوب له لوړی شېبې څخه د خلقیانو پر ضد دسیسې جوړې کړې."[27] پرچمیانو د حکومت له جوړېدلو نه درې ورځې وروسته اول د کورنیو چارو وزیر نور محمد نور په دفتر کې او بیا په بادام باغ کې د کوپراتیفو په ریاست کې غونډې وکړې. په وروستۍ غونډې کې د شوروي سفارت کوم مامور هم ګډون کړی و. پرچمیانو وروسته په پغمان کې د همد غه مطلب لپاره خپله ګوندي کانګره جوړه کړه[28]. تر هغه دمخه دوی د ک.ج.ب له مامورانو سره په ګډه د خلقي حکومت په بدنومي کولو پیل کړی وو او د نجم الدین کاویاني په روایت کارمل دستور ورکړی و، چې

"تخریب، تخریب، باز هم تخریب." (29) دغه څه به ځکه رښتیا وي، چې کارمل د امین له لاسه بې واکه کېده او بې اهمیته کېده. د دوی ترمېنځ اړیکې له پخوا نه ترخې وې.

د دوی اختلاف په اصل کې د مفکورې و، چې ورو ورو یې شخصي او نورې بڼې هم پیدا کړې. امین په اصل کې نېشنلست او کارمل په اصل کې سووینسټ وو. د سیاست په ډګر کې کارمل په شوروي اتحاد او امین په خپل ګوند ولاړ وو. کارمل له پاچا محمد ظاهر او محمد داود سره هم لیدل. په داسې حال کې، چې امین په خپل ولس په تېره په پښتنو او له امو نه تر اباسین پورې په لوی افغانستان باندې ټینګ وو (29 الف).

په دغه حال کې کارمل او پلویانو یې امین "فاشست" او په عین حال کې د سي.آی.ای "ایجنټ" باله، په داسې حال کې چې امین کارمل د پنجابي طاهر پهلوان کړوسی ښوده او ویل یې، چې هغه په اصل کې افغان نه، بلکې "مطلق یو ایجنټ" دی (30). د افغانستان د ټولو اساسي قانونو له مخې هر څوک چې د افغانستان تابعیت ولري، افغان دی، خو لکه څنګه چې لیدل شوي دي د مهاجرو په زوزاد کې افغانستان ته د رښتین توب او وفادارۍ احساس ډېر ضعیف وي. کارمل د یو شمېر نورو افغانانو په شان له مهاجر نسل نه و، نیکه یې محمد هاشم پر 1879 کې له انګرېزي پوځ سره د هندوستان له کشمیر نه افغانستان ته راغلی و (31). کارمل، چې په 1957 کې د ک.ج.ب ایجنټي منلې وه، په دې فکر و چې افغانستان د شوروي اتحاد شپاړسم جمهوریت وګرځوي (32). د عبدالقدوس غوربندي دغه وینا سمه ده، چې "کارمل منبع و منشا قدرت حزبی را در خارج از حزب [در اتحاد شوری] جستجو میکرد و برای بدست اوردن اعتماد آن از هیچگونه جدوجهد دریغ نمیکرد." (33)

کارمل د ثور تر کودتا نه دمخه کوښښ کاوه، چې امین له ګوند نه واېستل شي، دا هغه وخت و چې د امین او کارمل نزدې ملګرو د یو بل پر ضد تبلیغ کاوه او موضوع د تحقیق لپاره د تفتیش کمیسیون ته وسپارل شوه، چې مشر یې د ستیګیر پنجشیری و. دغه کمیسیون په پای کې دې نتیجې ته ورسېد، چې "... امین د ]علي احمد[ خرم په ترور کې لاس درلود او باید له ګوند نه واېستل شي." سیاسي دفتر د څلورو رایو په برابر کې په شپږو رایو د کمیسیون فیصله تایید کړه، خو عمومي منشي نور محمد تره کي، چې په امین ولاړ و، وخت وغوښته او فیصله په دې عملي نه شوه، چې امین کودتا وکړه. وزیري له ګوند نه د امین د اېستلو حرکت په اصل کې د ک.ج.ب دسیسه بولي، ددې لپاره چې د خلق ګوندګی ناتوان او په نهایت کې قدرت ته د کارمل د رسېدلو لپاره لار هواره شي. دی لیکي، چې "ددې په څنګ کې غلام دستګیر پنجشیري هڅه وکړه، چې په ګوند کې د بې باوري او بې اتفاقی اور ته لمن ووهي، چې پخوا په ګوند کې موجود وو.... څنګه چې د خلق یانو په منځ کې د ګوند دننه د زړ غون فرکسیون و، چې د امین پر ضد یې فعالیت کاوه، ولې په واقعیت کې ددغه فرکسیون شاته درې تنه، چې اصلي محرک یې پنجشیری و او صالح محمد زیری او عبدالکریم میثاق هم ورسره ملګري وو، ولاړ وو... په پای کې د حفیظ الله امین او د هغه پلویانو ته د ګوند د ضدیت تر نوم لاندې دوسیې جوړې شوې او د امین د ایستلو د سند مسوده د میثاق له خوا ولیکل شوه."[34] دغه روایت د زیري له روایت نه یو څه توپیر لري، خو د دواړو اصلي ټکي له ګوند نه د امین ایستل و، چې امین د هغه په برابر کې د "افغانستان د ملي دموکراتیک ګوند" په نامه په خپلې مشرۍ سره د بېل ګوند بنسټ کېښود، چې د مرکزي کمېټې غړي یې محمود سوما، منصور هاشمي، عبدالرشید

جليلي، صديق عالميار، راز محمد پکتين او صاحبجان صحرايي وو. "(35)

د خيال محمد کټوازي په وينا، پنجشيري د کودتا "په هماغه اوله ورځ... د تره کي او امين په څنګ د کارمل پر ضد دريځ بدل کړ." له دواړو سره يې پښتو ويل پيل کړل او امين ته يې غوړه مالي کوله. په خپله کارمل هم، چې هر وار امين ليده، مخ مچې يې ورسره کاوه او دواړو ورنه مننه کوله، چې له مرګ نه يې ژغورلي دي. امين تره کي ته، چې ورنه يې غوښتي و، له کارمل سره ښه وضع وکړي، وويل "... نور لا څه وکړم، چې هره پلا مې ويني، د مخ مچي روغبړ راسره کوي." زيری لا وايي، چې په دغه وخت کې "ملګري ډلې ډلې شول او هر يوه امين ته ځان نژدې کاوه." دی دا هم وايي، چې "زه په وجداني توګه د امين په اړه له بد نظر څخه پښېمانه وم او له ځان سره مې ويل، چې په دې سړي کې دومره استعداد و، چې د ګوند په غياب کې يې انقلاب ترسره کړ او موږ ټول يې له مرګ څخه خلاص کړو. "(36)

خو د امين او کارمل ترمنځ بې اعتمادي رښتينې او ژوره وه، هغه وروسته له هغه برالا شوه، چې امين او وطنجار په يوې لويې غونډې کې په پولي تخنيک کې څرګنده کړه، چې د "ثور انقلاب" يواځې خلقيانو کړی او پرچميانو پکې برخه نه ده اخيستې. تر دغه وخته پورې رسمي نظر دا و، چې کودتا د ګوند له خوا د تره کي په لارښودنه بريالۍ شوې ده، خو امين لا تر کودتا وروسته د اتحاد په نامه د کورنۍ چارو وزارت د امنيتي لوی قوماندان محمد داود ترون له لارې له پرچمي قوماندان صمد ازهر نه د پرچم د پوځي او پوليسي افسرانو لستونه ترلاسه کړي و، نو امين ته د پرچمي ګوندګي قوت چې ډېر نه و، معلوم و. له همدې امله به هم و، چې امين

له کودتا نه وروسته سره له دې چې د ک.ج.ب په سپارښتنه یې منلې وه، چې پرچمیانو ته به په حکومت کې برابره برخه ورکوي، خو په ګوند، حکومت او په خاص ډول په پوځ کې یې د خپل ګوند دریځ ټینګ کړی او کارمل بېواکه ګرځولی و. کارمل تر دې حده پورې بېواکه شوی و، چې د جون په اتلسمه یانې درې اونۍ وروسته له هغه چې د پولټبورو د یوې پریکړې له مخې دواړه ګوندګي یو موټی شوی ګوند ګڼل شوی او حتی د "خلق" او "پرچم" د نومونو اخیستل منع اعلام شوي و، د تره کي په شتون کې پوزانوف او ورسره یو څو نورو شوریانو ته شکایت وکړ، چې "زه په حکومت او ګوند کې له نور محمد تره کي نه وروسته دویم مقام لرم، خو سره له دې هم زه نه پوهېږم چې په هېواد کې څه واقع کېږي؟ دوی زه ګوښه کړی یم، زه له باندني او دننني سیاست سره سر او کار نه لرم. زه لکه چې په طلایي قفس کې اوسم. دا د یوه کمونست په توګه زما لپاره لویه تراجیدي ده." هغه دا هم وویل، چې "وضع د ګوند د ټوټه کېدلو په لور روانه ده، هر څه د حکومت او پوځ لاسونو ته درومي." (37)

له بلې خوا خلقیانو پرچمیان په حکومتي ضد عملونو تورنول، تره کي لا ویل، چې "حتی تر انقلاب نه دمخه موږ په پرچمیانو اعتماد نه کاوه او له پرچمیانو سره اتحاد یوازې فرمایشي و. دوی په پاڅون کې نږدې هېڅ رول نه لاره، خو د انقلاب له بریالي کېدلو نه وروسته د پرچمیانو مشر ببرک کارمل په ټینګه وغوښتل، چې د وزارتونو او څانګو لوړ مقامونه دې سره برابر وویشل شي." تره کي دا هم وویل، چې کارمل "...ادعا کوله چې د ګوند په جوړولو کې یې د مشري رول لوبولی، څرګندوله یې چې که تاسې پوځ لرئ، ګوند موږ ته راکړئ." په هغه سربېره وروسته له هغه، چې د دوی غوښتنې و نه منل شوې، دوی ترټل چې پاڅون به وکړي. په دغه

حال کې تره کي او امين ښکاره کړه، چې اوس يوائې يوه لار پاتې ده، يا دوی يا موږ.(38)

په دغه حال کې کارمل د خپل او خپل ګوند سياسي ژوند د شوروي اتحاد په قوت کې ليده، شوروي اتحاد هم د کارمليانو شاته ولاړ و. د وزيري په وينا "د شوروي اتحاد مشرتابه د ببرک ډله دې ته هڅوله، چې څومره زر کېږي، له خلقيانو څخه سياسي واک ترلاسه کړي.(39)" پروګرام دا شو، چې پرچميان به په خلقيانو کودتا کوي.

نبي عظيمي، چې تراوسه هم پرچمي پاتې شوی، د کودتا شکل په دې ډول بيانوي: "په داسې حال کې چې د پرچمي لويانو د سفير کېدلو اوازې روانې وې، د کودتا موضوع ټينګه ونيول شوه. عظيمي، چې په دغه وخت کې په غزني کې د څوارلسمې فرقې قوماندان و، د پرچمي عبدالوکيل له خوا کابل ته وغوښتل شو او هلته يې ورته هدايت ورکړ، چې "نظر تمام اعضای حزب این است که در صورتیکه امین در تصمیم خود پافشاری نماید، اردو قیام مسلحانه را علیه امین اغاز نماید." وکيل دغه "پاڅون" په دې ضرور ګاڼه، چې امين "در نظر دارد تمام پرچمی هارا از رهبری ای صفوف از صحنه خارج و بصورت فزیکی به نام خاینین بانقلاب ثور از بین ببرد." عظيمي دا هم ليکلي، چې "من به وکیل گفتم اگر راه ها و وسیله های دیگری سراغ ندارید، من حاضرم. اما تاکید میکنم که انتخاب این راه خون ها بسیاری را خواهد ریخت [ریختاند] و فرجام ان بسیار تاریک است. وکیل خوشنود گردید و رمزی بین ما تعیین شد.(40)"

نبي عظيمي وروسته د غزني په فرقه کې ټول پرچمي افسران، چې شمېر يې د هغه په وينا لږ نه و، د حکومت پر ضد پاڅون ته وبلل. "آنها بدون تردید حاضر گردیدند که در صورت رسیدن

دستور بخاطر انتقام گرفتن از امین و حمایت از ببرک کارمل داخل اقدام شوند." دی دا هم وايي، چې "ما پلان دقيق اما ساده يی طرح کرديم که نکات اساسی آن را گرفتاری افسران مخالف، مسلح ساختن فرقه و ترک نمودن وضع الجيش فرقه بخاطر جلوگيری از بمبارمان هوايی تشکيل ميداد."[41]
خو کارمل طالع من و، چې ترڅو دی په کابل کې و، ملګرو يې په کودتا لاس پورې نکړ.
د محمود سوما په روايت امين "غوښتل چې ببرک کارمل او په کودتا کې نور کسان بنديان کړي، خو د نور محمد تره کي له مخالفت سره مخامخ شو." په دې اړه تره کي له پوزانوف سره مشوره وکړه، چې لکه هغه دده آمر وي. پوزانوف دوه مشورې ورکړې: يوه دا چې کارمل په چکوسلواکيه کې او ملګري يې په نورو هېوادونو کې د سفيرانو په توګه واستوي. بله دا چې د غه ټاکنې بايد په دموکراتيکه توګه ترسره شي، خو څنګه چې په د غه مهال کې د سياسي دفتر زياتره غړي د کارمل په خوا وو، تره کي خپلو پلويانو ته دنده ورکړه، چې هغوی راواړوي. هغوی په دغه کار کې برياليي شول. "بيا همدغو ټولو ملګرو ته د تره کي له خوا هغسې فيصلې و غبرول شوې، چې د ببرک ډلې د کودتا د جريان خبرې پکې ثبت شوې."
او چې هغو ته دا هم وويل شول، چې هغوی د پوزانوف په مشوره سفيران کېږي، هغه د سياسي دفتر په غونډه کې د غه وړانديز په زياترو رايو ومانه[42]. بيا نو کارمل پراګ ته، محمود بريالی اسلام آباد ته، عبدالوکيل لندن ته، نور احمد نور واشنګټن ته، نجيب الله تهران ته او اناهيتا بلګراد ته د سفيرانو په توګه واستول شول. دلته د دوو ټکو يادول ضروري ښکاري: يو دا چې په يوې داخلي موضوع يې د يوه خارجي هېواد سفير دخيل کړی شو او بله دا چې که هغوی په رښتيا کودتا کوله، له ملک نه دباندې په ښه نامه ووتل او مصؤون شول.

خو دننه په وطن کې نور پرچمیان کرار نه شول او د پخوا په شان یې په پټه غونډې کولې. څنګه چې دوی نږدې ټول ښاریان وو، غونډې یې د خلقیانو لپاره د اندېښنې وړ شوې. سره له دې چې ګوندي حوضې د ښار ندوی په شان په ښار کې ځای پرځای جوړې شوې او فعالې وې. لومړنی ګوندي سازمانونه غیر له هغو څخه وو، چې په حکومتي ځانګو او هم د هستوګنځیو په سیمو کې په زیات شمېر فعال وو. ددغو ټولو له لارو ښارېان ښارل کېدل. سره له دې هم څنګه چې خلقیان ساراني او اطرافي وو، هغو ته ګرانه وه چې ښاري پرچمیان تر ډاډمنې څارنې لاندې ونیسي.

وضع داسې وه، چې لکه د اطرافي حاکمانو او ښاري مخالفانو ترمېنځ جنګ وي. په همدغه ګیر او دار کې د اسد د میاشتې په 28مه ) اګست1978 ( حکومت په کابل کې د خلقي نظام پر ضد د ځینو پرچمي لویانو د کودتا خبر خپور کړ. په اول سر کې د دفاع وزیر جنرال عبدالقادر لوی درستیز شاهپور احمدزی او د جمهوریت د روغتون سر طبیب میر علي اکبر ونیول شول او وروسته د پلان وزیر سلطان علي کشتمند او د فوایدعامې وزیر محمد رفیع ونیول شول. ددغو بندیانو "اعترافونو" فوتوکاپي ګانې په ورځپاڼو او وروسته په کالنۍ کې خپرې شوې، چې د خلق حکومت په هکله یوه ډېره غټه سرچینه ده. ددغو "اعترافونو" له مخې کارمل پخوا له دې چې له وطن څخه بهر شي، عبدالقادر او نورو ته د کودتا کولو دستور ورکړی و. د کشتمند د "اعتراف" له مخې دغه وخت د کودتا لپاره شرایط برابر شوي وو. "از انجائیکه دولت کنونی از راه سوشلزم دور میرود، مردم ناراضی هستند، یک قیام عمومی سرتاسری در تحت رهبری قادر خان باید صورت بگیرد. در دولت جدید باید تمام نیروها و عناصر ناراضی بشمول خلقی هائیکه موافق باشند، تحت یک اتحاد عمومی یک دولت

بنام جمهوری دموکراتیک خلق افغانستان را بوجود بیاورند.)[43] " په کودتا کې به بنسټیز رول د پېنځلسمې زغرورې قوې وي، چې د ډګرمن هدایت الله، محمد رفیع، فاروق او خلیل په سروالۍ نظامي کود تا د اختر په ورځ پیل کړي. په داسې حال کې چې کشتمند به په ښار کې د مظاهرې لار ښودنه کوي. اطرافي پرچمیان به په خپلو سیمو کې په کار لاس پورې کوي او داسې نور... د بریالیتوب په حال کې به د نوي دولت سروال او د ملي دفاع وزیر عبدالقادر وي. د کشتمند د لیکنې له مخې کارمل هغه په ځان مَېن ګڼلی او په دغې و عدې سره یې د هغه همکاري جلبه کړې ده. د کتوازي په وینا عبداقادر تر پایه پورې خلقي و.

دا چې کودتا په دغه ډول ترتیب شوې وه، یقیني نه ده. دا هم یقیني نه ده، چې دغو پرچمیانو به چې لویان یې له وطن نه بهر وو، په رښتیا کودتا کوله. د تورنو خپاره شوي اعترافونه د واقعیت څرګندوی کېدلی نه شي. د خلقیانو په وخت کې لکه وروسته د پرچمیانو په وخت کې اعترافونه په زور او کړاونو سره ترلاسه کېدل. په هغه وخت کې کلکه اوازه وه، چې له کشتمند نه د اعتراف ترلاسه کولو لپاره د هغه مېرمن یې ورته حاضره کړې وه، چې که اعتراف ونه کړي، سپکاوی به یې وشي. ددې خبرې مانا دا نه کېږي، چې تورنان به په کړول کېدو سره هم رښتیا ووایي. دوی هغه څه وایي، چې ورنه غوښتل کېږي او له دوی نه هغه څه غوښتل کېږي، چې په هغو سره په سختو جزاګانو محکوم شي. خلقي مستنطقینو ته هر تورن "خاېن" و او دوی خپله دنده ګڼله، چې له هغو نه همدغسې اعتراف ترلاسه کړي. مستنطق غلام صدیق تورن عبدالغني ساپي ته ویلي و، چې "خاینینیکه اینجا نزد ما حاضر ساخته میشوند، همه انکار مینمایند، (ما) مجبوراً انها را شکنجه میدهیم."

کودتا یا نه کودتا د کودتا په نامه د پرچمیانو بندي کېدل د نورو پېښو لپاره لار هواره کړه، چې تر ټولو مهمه یې د نورو پرچمیانو بندي کېدل او پټېدل وو. د بندي کېدلو لړۍ تر میاشتو میاشتو اوږده شوه، پرچمي فعالان هم له خپلو کورونو او هم له ادارو نه وړل کېدل او اګسا ته سپارل کېدل. په دغې فضا کې څرګند پرچمیان اړ شول، په ورځپاڼو او غونډو کې خپل پراري لویان وغندي. یوه یې لا په یوه لوړ پوړي غونډې کې د امین په مخ کې پرچمي لویان د درباریانو، اشرافو او داسې نورو نومونو وغندل او په خپله کارمل یې د امپیریلزم تورې چترۍ ته پناه وړونکی وښود. څرګندو پرچمیانو او هغو چې د پرچمي توب ګومان پرې کېده، په ورځپاڼو او غونډو کې پراري پرچمي لویان په سپکو نومونو یادول. په غندنې کې د پرچم مخالفان تر ټولو دمخه وو. دوی په خاص ډول کارمل سخت غنده او د "دربارمل"، "دربارغل"، "ارستوکرات"، "پردي" د "پردیو ایجنټ" او په داسې نورو نومونو یادوه. په دغه تبلیغ کې عبدالمنان ملګري، چې یو زړور ممثل او زما په وخت کې د پښتو ټولنې د کابل مجلې په اداره کې کاتب و، پوره نوم ایستلی و. په دغه وخت کې په کابل کې د پرچمیانو د ټکولو لویه مسابقه روانه وه، خو محمود بریالي په مسکو کې د ک.ج.ب یوه مامور نیکراسوف ته ویل، چې په دغې مسابقې کې "دغسې کسان ګړول کېږي، چې شوروي اتحاد ته په مطلق ډول وفادار دي."[44] په هر حال په دغې مسابقې کې هغومره، چې په پرچمیانو پسې ډول ډول پروپاګندونه و شول، په افغانستان کې بل هېڅ وخت دغسې پروپاګندونه نه دي شوي.

پټو پرچمیانو هم د حکومت په تېره د امین پر ضد پروپاګندونو باندې زور واچوه. دوی امینیان "فاشستان" بلل او په خپله امین یې د سي.آی.ای

"ایجنټ" ګڼله. په عین حال کې حکومت پرچمي سفیران "خاینان" اعلام کړل، موقوف یې کړل او له افغان تابعیت نه محروم کړل. دا یې هم څرګند نده کړه، چې دوی د سفارتونو نغدې پیسې غلا کړي. دوی په رښتیا هم دغه اختلاس کړی و. نور احمد نور وروسته ددغو پېسو مجرایي له خپل پرچمي رژیم نه واخیستله. په دغه دلیل، چې هغه غلا کړې پیسې یې په ګوندي چارو لګولي دي. د پرچمیانو د ادعا له مخې نږدې یو نیم زر پرچمیان بندي شوي، چې څه یې له منځه وړل شوي وو، خو دا غټه مبالغه ده. شوروي مشاورانو نه غوښتل، چې د غومره ډېر پرچمیان بندي او اعدام شي، خو په دې کې شک نشته، چې امین غوښتل پرچم د یوه تنظیم په توګه له منځه یوسي او د دوی له لارې افغانستان د شوروي اتحاد له احتمالي خطر نه وژغوري. له نومیالیو بندیانو نه میر علي اکبر او شاهپور احمدزی اعدام شول. احمدزي په ځکه اعدام شوی وي، چې دی د لوګر د نامتو فرقه مشر عبدالغني احمدزي کورنی نفوذناک قومي مشر و، په اصل کې د کمونزم مخالف و. دی پخوا د محمد داود له معتمدانو څخه و او هغه "...محمد داد خان را بار بار از تحریک و دسیسه سازی اطرافیان کمونستی اش و کشتار و زندانی کردن مردم بیگناه بر حذر میداشت. (45)"



# دریم څپرکی

## سور بېرغ او درې وروستي فرمانونه

## یا

## له ولس سره د حکومت مقابله

حکومت د شپږم فرمان تر ایستلو پورې د حکومتي جوړښتي مسئلو، د محمدزي واکمنې او ماوستي ډلو په ځپلو بوخت او په پېښو یې لاس بر و. په همدغه وخت کې یې د خلکو د ښېګڼې لپاره هم یو څه وکړل، لکه د عمومو د اندېښنې وړ د اتم ټولګي د کانکور لغو کول، د کانکور وهلو لپاره بسپنه ټولول او د بسپنې په پېسو سره د هغو لپاره یوه لېسه پرانېستل او په کابل او شاوخوا کې د محمد داود د وخت د جنايي بنديانو ازادول، خو په وروستي کار سره د حکومت په اړه د خلکو شک پیدا شو. هغه درې زره بندیان، چې په کابل او ولايتونو کې د جوزا د میاشتې په 28مه د فرمان له مخې ازاد شول او د نورو د بند موده لږه شوه، جنايي یانې هغه بندیان وو، چې د قتل، غلا او دغسې نورو جنايتونو په تور په محکمو کې محکوم شوي وو. حکومت په دې اړه تر دې حده نندارې جوړې کړې، چې حتی د هغو دوسیې او دفتري پاڼې یې د خلکو په غونډو کې وسوځولې. آوازه شوه، چې حکومت غواړي د ولس په تاوان جانیان له ځان نه خوښ کړي. په داسې حال کې، چې جانیان په هر رژیم کې جانیان دي. دا هم ویل کېدل، چې که حکومت په رښتیا د اصلاح په

فکر وای، له جانیانو نه به یې ضامنان ترلاسه کړي وای، چې بیا به جنایت او د قانون پرخلاف عمل نه کوي. دا چې دغومره ډېر جانیان په زندانونو کې پراته وو، د پخواني حکومت په لمن کې یو تور داغ و. د همدغه داغ له امله به هم و، چې د ثور له کودتا نه وروسته په ټول ملک کې دغسې یو غورځنګ و نه لیدل شو، چې د محمد داود په پلوی عمل وکړي.

په هر حال، اوس اندېښنه دا شوه چې حکومت ولې د غه جانیان د نورو جرمونو د کولو لپاره ازاد او په ولس حواله کړل؟ د حکومت په اړه په دې هم شک پیدا شو، چې سیاسي بندیان یې ازاد نه کړل، په داسې حال کې چې په افغانستان کې د رواج له مخې د رجیم په بدلېدلو سره سیاسي بندیان خوشې کېدل او له دغه حکومت نه هم دغه هیله کېده، خو دغه انتقادونه او نارضایتونه د ذهن په ساحه کې محدود وو او که حکومت نور پارونکي کارونه، نه وای کړي، پر ضد به یې عمل نه وای شوی، خو له هغه وروسته حکومت په دغسې پارونکو کارونو لاس پورې کړ، چې د هغو له امله نژدې ټول ولس د حکومت پر ضد فعالیتونو لپاره په پښو ودرېد.

## سور بېرغ

د تلې د میاشتې په 27مه ) اکتوبر 1978 ( د ځلورم فرمان له مخې، چې دمخه ایستل شوی و، د کابل په ښار کې نوی بېرغ په ډېر لوړ شان سره جګ شو. د هغه لپاره نه یوازې لوړ پوړي ګوندي او حکومتي کسان، بلکې حکومتي مامووران، د لوړو زده کړو مؤسسو محصلان، د ښوونځیو شاګردان، ښاریان او د شش کراهۍ بزګران په ښه تنظیم سره په پښتونستان واټ او شاوخوا کې سره غونډ شول. د ټولو خلکو شمېر له حساب نه وتلی او ډېر و. خلک ډله ډله د مني په یوې ښکلې لمریزې ورځې کې د ارګ د ختیځ وره ترمخه، چې هلته لیرې حکومتي او ګوندي لویان د نور محمد تره کي په

سروالۍ په لېسو درېشيو کې د شوروي لويانو په شان قطار ولاړ وو، رژې تېرېدل. حکومت بيا هېڅکله په هېڅ نامه د غومره ډېر افغانان پر ځان ټولولی ونه شو. دا يې په واقع کې د برياليتوب او وياړ هسکه وه، خو هغه د لږ وخت لپاره وه. د بېرغ رنګ تک سور غوره شوی و او په يوه څنډه کې يې بس د "خلق" کلمه ليدل کېده. هغه زر په "خلقي بېرغ" ياد شو او د پاچا امان الله د وخت بېرغ، چې تور، سور، زرغون رنګ يې لاره او محراب او منبر هم پکې په نښه شوی و او افغانانو ته د وياړ او سرلوړی بېرغ و، ترک شو. افغانان پوهېدل، چې سور رنګ د کمونزم نښه ده، دغه پوهه نوره هم شعوري او ټينګه شوه، چې تره کي په هغې وينا کې، چې د نوي بېرغ په اړه وکړه، څرګنده کړه چې د هغه تر نامه لاندې به زوړ "فيوډالي سيستم" ټوټه ټوټه کړو او پر ځای به يې د دوران جوړونکې کارګري نقشې له مخې نوې ټولنه جوړه کړو او د ځمکو اصلاحات به عملي کړو. په عين حال کې يې اخوانيان د خلکو "دښمنان" وبلل او پرضد يې جهاد اعلام کړ. ډېرو خلکو سور بېرغ د ملک د کمونستي کولو په لور د خلقي لويانو لومړی ګام وباله. انديښنه د پخواني بېرغ له ترک نه هم راولاړه شوه، چې افغانانو ته د خپلواکۍ او هويت وياړلې نښه وه. په دغه حال کې د خلقي بېرغ په نامه د سره بېرغ غوره کول او په ننداره ييز ډول د هغه هسکول د خلکو له پارولو نه پرته بل څه نه و. خلک په رښتيا هم وپارېدل، په دې کې حکومت ته څه عملي ګټه هم نه وه. د ګوندیانو لپاره دا بس يوه رومانتيکي جذبه وه.

هو، دوی به په دغه بېرغ سره شوروريانو ته ښودلي وي، چې دوی د هغو په لار روان ملګري دي. خلکو البته په هغه وخت کې د سره بېرغ په وړاندې څه غبرګون ونه ښود او نه يې ښودلی شو، خو مخالفانو په تېره اخوانيانو د خلکو له دغه

ناراضي توب نه ګټه اوچته کړه. په نتيجه کې دغه شک په يقين بدل شو، چې خلقي لويان د ملي ارزښتونو او اسلام مخالف او د شوريانو پيروان دي. په دغه حال کې په پېښور کې د افغانستان اسلامي تنظيمونو لويانو هم د حکومت پر ضد جهاد اعلام کړ او افغان ټولنه په دغه ډول په دوو کامپونو ووېشل شوه.

## د ليک او لوست کورسونه

د لويانو د ليک او لوست کورسونو پروګرام عملي کول هم پارونې وکړې. د پرنسيپ له مخې خلک مخالف نه وو، چې لويان ليک او لوست زده کړي. د دوی لپاره دغه موضوع حياتي وه، ځکه چې هېواد يې په دغه اړه د نړۍ د بېرته پاتې هېوادونو په ليکه کې راته او د دوی نارينه او تر هغو لا زيات ښځې په لوړ تناسب په ليک لوست نه پوهېدلې، نو په دوی کې تر کودتا دمخه د ښوونځي او زده کړې شوق تر دې حده عمومي و، چې د اطراف خلکو هم نه يواځې د هلکانوو بلکې د نجونو لپاره هم ښوونځي غوښتل او حکومت د ځمکې او کار په بڼه د خلکو په مرستو سره حتی په ډېرو ليرو سيمو کې د نجونو لپاره هم ښوونځي پرانيستلي وو. په خلکو کې د ليک او لوست احساس به له دې امله هم قوي و، چې د نويو ښوونځيو په پرانېستلو او په عمومي ډول د عصري پوهنې په رواجولو کې د خلکو ارزښتونه په نظر کې نيول کېدل او د پاچا امان الله د وخت د ترخو تجربو په نظر کې نيولو سره دعمومو د ارزښتونو په مخالفت څه نه کېدل، خو خلقيانو دغو واقعيتونو ته ونه کتل او دغه متل يې له ياده وايست، چې وايي "افغانان په هڅونې سره دوزخ ته ننوځي، خو په زور سره به جنت ته هم لاړ نه شي."

د لويانو د ليک لوست زده کړې په کورسونو کې د تعريف له مخې لويان بايد داخل شي، همدغسې

هم ک ېدل. په کور سونو کې نارينه او ښځې دواړه غو ښتل ک ېدلې، خو د کورسونو لپاره نه ښوونکي او نه درس کوټې په کافي شمېر موجودې وې. کورسونه زياتره په ماجتونو او ښوونځيو کې پرانې ستل شول، د ښځو لپاره بايد ښځينه ښوونکي واى، خو ښوونکي زياتره خلقي نارينه وو او هغو د امنيت په نامه ښځې درسي خونو ته د ننوتلو په وخت کې لټولې. يو شمېر خلقيانو په خپلو سيمو کې د اعتبار وړ کسانو لوڼې د نکاح لپاره وغوښتلې او يو شمېر نورو دغسې نجونې په زور خپلې ښځې کړې. اوازه شوه، چې په ښارونو، ولسواليو، علاقه دار يو او ښوونځيو کې يانې په حکومتي مرکزونو کې له نجونو او نورو ښځو نه د ګونديانو او حکومتيانو لپاره د استفادې لار خلاصه شوې ده. مجرد تاوجن ګونديان او حکومتيان لېږ او بې ميله نه و، چې له نجونو او ښځو سره د جنسي غريزې له مخې چلند وکړي. بيا نو دغه وېره عامه شوه، چې له دې وروسته به نارينه د خپل ناموس اختيار و نه لري او د کورس په نامه به يې اختيار د حکومتيانو په لاس وي. حکومت اوس په يوه بل ډول په کورنۍ کې لاسوهنې پيل کړې او ددې پروا يې نه کوله، چې په افغانستان کې نارينه د خپلو کورنيو واکمنان دي، چې ښځې خپل ناموس ګڼي او سپکاوى يې نه زغمي. له بلې خوا ګونديان او حکومتيان په دغه وخت کې په رسمي ډول ددغومره زيات رسمي واکخاوندان شوي وو، چې بل هېڅ وخت کې تر دغه حده پورې نه وو شوي. دغو وړو فرعونانو په کورسونو کې هم حاکميت چلاوه، ددې لپاره چې بايد د ثور "د پرتمين انقلاب" د لومړۍ کليزې په وياړ يو مليون لويان او لوياني باسواده کړي.

دا چې په ټول هېواد کې کورسونو ته د ښځو له ورتګ سره مخالفت عام و، په دې کې شک نه شته. په کومو ځايونو په تېره په ښارونو کې چې ښځې په لومړيو ورځو کې په کورسونو داخلې شوي دي،

له ډارنه و. خلکو نه غوښتل په دغه نامه ورسره انقلابي چلند وشي، ځکه چې کوندیانو ته انقلابي چلند د مرګ تر پولې پورې جزا ورکول و. په اطراف کې لویان او لویانې تر کورس لوستلو نه ډېرې د ژوند د چارو په فکر وې. کورسونو دوی ته سمدلاسه عملي ګټه هم نه کوله، نو کورسونو ته د دوی کشول یو ډول حکومتي بیګار شو. په دې سربېره په کورسونو کې ایډیالوجیکي تبلیغ هم کېده. په ټولو هغو وړو لویو پاڅونونو کې، چې یو ځای بل ځای په تېره په هرات کې وشول، په کورسونو کې د ښځو موضوع دخیله وه، چې وروسته به یې بیان وشي.

## د ګروي په اړه فرمان

د سود او سلم او ګروي په هکله شپږم فرمان د خلقي حکومت په نظر د ستمګرو له جغ نه د خواریکښو بزګرو په ګټه وایستل شو، خو په واقع کې د دغه فرمان د دغه مقصد پرخلاف تر ډېره حده پورې د ځمکه والو په ګټه تمام شو. فرمان په هغو باندې عملي شو، چې له کال 1974/1353 نه دمخه یا تر هغه وروسته یې د پېسو په بدل کې ځمکې په مشروط ډول یانې په ګروي سره ترلاسه کړې وې، په دې مانا چې ګروي وال به د پېسو په بدل کې تر هغو پورې د ځمکې له حاصل نه استفاده کوي، چې د ځمکې څښتن د هغه پېسې بېرته ورکړي. د فرمان مهم ټکی دا و، چې که ځمکه له 1353 کال نه دمخه په ګرو اخیستل شوې وي، ګروي وال مکلف دی له ولاړ فصل نه وروسته ځمکه مسترده کړي او که یې ځمکه په 1353 کې په ګرو اخیستې وي، د اصلي پېسو په سلو کې شل مستحق ګڼل کېږي. هغه هم یو کال وروسته او که یې د کودتا په کال (1978/1357) ځمکه په ګرو اخیستې وي، په سلو کې نوي د خپلو پېسو مستحق دی، هغه هم په پېنځو کلونو کې. البته ځمکه به

په هماغه اول سر کې د ځمکې اصلي څښتن ته پرېښودل کېږي.
د فرمان بل مهم ټکی دا و، چې يواځې بې ځمکې زراعتي کارګر پور وړی، نه هر پوروړی، مالکانو ته د سود او پور له ورکولو نه معاف دی. په همدې ډول بې ځمکې بزګر او هغه چې د لس جريبه اولې درجې ځمکې خاوند وي او له 1353 نه وروسته د سود او سلم پر اساس د يوه يا څو کسو پوروړی شوی وي، د پور او سود له ورکولو نه معاف دی، خو اصلي پيسې به په هغه تناسب بېرته ورکوي، چې تناسب يې د ځمکې د ګروي د بېرته ورکولو په باب دمخه ټاکل شوی وي. په دغسې مقررو سره دد غه فرمان عملي کول نااشنا ستونځې پيدا کړې، چې د هغو هوارول د حکومتي مامورانو له صلاحيت او توان نه اوچت و. له دې امله د ولايتونو او ولسواليو په سطح ددغسې کشالو د هوارلو په مقصد د کمېټو جوړول په نظر کې ونيول شول، خو دغه کمېټې د والي يا ولسوال په سروالي، د حکومتي څانګو آمرانو او د بزګرو له استازو نه جوړې شوې. په هغو کې نه ځمکه والو ته او نه هم د محل مخورو ته د غړيتوب حق ورکړل شو. د حکومت په نظر دوی "فيوډال" وو او حکومت د "فيوډالزم" د له مېنځه وړلو او د خواريکښو بزګرو د جلبلو ل پاره پښې لوڅې کړې وې.
ددغه فرمان له مخې له سود او سلم او پور ورکولو نه د بزګرو معافېدل سمدلاسه د هغوی په ګټه تمام شو، خو دغه فرمان په عين حال کې د ژوندانه او ضرورت په سختو شېبو کې لکه د واده، ناروغۍ او داسې نورو د دوی په مخ د پې سو سمدلاسي او اسانه منبع وچه کړه او ټولنه يې د معاملو له رکود سره مخ کړه. تر دغه وخته پورې خلکو په اطراف کې د همدغه دود له مخې په سختو ورځو کې خپلې ستونځې رفع کولې. د همدغه دود له مخې بې سوده يا حسنه پور هم مروج و،

چې دواړو د ټولنې په پېوستون کې رول درلوده. دغه دود تر اقتصادي نه زیات اجتماعي او د پېړیو پېړیو د تجربو محصول و، چې ممکنه نه وه هغه په یوه فرمان سره له منځه لاړ شي، خو دا چې د کار او عایدو په ډېر بدلو سره ژوند ښه او خلک پر ځان ډاډه شي، د ځمکو د ګروي برخه د فرمان لا غټه خواده. په دغه فرمان سره ګټه د هغه چا شوه، چې د ځمکې خاوند و او تاوان هغه چا وکړ، چې بې ځمکې و او د خپل کار له برکته د پېسو او ګروي ځمکې خاوند شوی و. په ګروي والو کې ځمکه وال هم شامل و، خو دوی تر هغو نه ډېر کم وو، چې ځمکې یې په خپلو ګټلو شویو پېسو سره په ګروي اخیستې وې. په افغانستان کې له هغه وخت نه، چې په کیمیاوي سرې او اصلاح شوي تخم سره حاصل ډېر شوی و، د ځمکو اجاره داران د نقده محصولاتو یانې د سبو، ګلپي، پیاز او کچالو د زیات والي او د ترانسپورتي لارو د ښه والي له امله د پېسو خاوندان شوي وو. دوی چې په څومره ډېره خواري کوله، په هماغه اندازه یې ګټه کوله. په ټولیز ډول دغه ډله خلک په تېره په ننګرهار کې د پېسو خاوندان شوي وو او له دوی نه ډېرو په خپلو دغو پېسو سره ځمکې په ګروي ترلاسه کړې وې.

په همدغه ډول افغان کارګرو، چې په ایران او عربي هېوادونو کې پیسې ګټلې وې، په وطن کې یې په ګروي سره ځمکې خپلې کړې وې. په دغه فرمان سره دغو ټولو خواریکښو د ګروي ځمکې او خپلې پانګې له لاسه ورکړې. دا چې حکومت دد غه فرمان له ایستلو نه وروسته ناړې سورې سر کړې، چې یوولس ملیونه بزګر یې له درانده بار نه ژغورلي او دهقانان یې د ډېرش ملیاردو افغانیو په حدودو کې د پور له ورکولو نه معاف کړي[1]، هسې پروپاګند و. که د حکومت د تعریف له مخې د لسو جریبو ځمکو او یا تر هغه لږ د ځمکو خاوندان هم په بزګرو کې حساب شي او په دغې

کتنه ګوری کې هغوی، چې بې ځمکې یا لږ ځمکې او د سود او سلم پوروړي وي او شمېر یې یوولس میلیونو ته ورسېږي، په دې حساب باید د ملک ټول نفوس د پنځوس ملیون په شاوخوا کې وي، حال دا چې د همدغه حکومت د سروې له مخې د افغانستان ټول نفوس په 1979/1358 کې پېنځلس نیم ملیونه وو.

دد غه فرمان یوې بلې برخې پارول و کړل، د غه برخه د بزګرو د ستونزو د لیرې کولو لپاره کمېټې وې، چې په هرې یوې کې د بزګرو دوه استازیو غړیتوب لاره، خو د محل مخورو او ځمکه والو یکې غړیتوب نه لاره. دغسې کمېټې په علاقه داریو، ولسوالیو او د ولایتو نو په مرکزو نو کې جوړې شوې. د کمېټې ښکاره د نده دا شوه، چې د ګروي او سود او سلم راپیدا کشالې به هواروي، خو اصلي مقصد دا و چې د بزګرو د غه استازي به د ملکانو، خانانو، بېګانو او نورو محلي مخورو ځای نیسي، چې حکومت "فیوډال" ګڼل او غوښتل یې د خپلې ایډیالوجۍ له مخې یې وځپي او "فیوډالزم" په افغانستان کې بې ریښې کړي، خو دا چېرته کېدی شي چې په افغان ټولنه کې به بې سواده، ناداره، بې تجربې او د ټولنې د ښکته درېځ غړي سمدلاسه اجتماعي شخصیتونه شي. نتیجه دا شوه، چې له حکومت سره د مخالفت په ډېرېدلو سره د بزګرو دغه استازي له مېنځه یووړل شي یا په خپله ډګر پرېږدي.

عنعنوي ملکان او نور تر ډېره بې اثره او د حکومت مخالفان شول، په تېره وروسته له هغه چې ډېر اطرافي مخور د ځمکو د وېش په درشل او د وېش په بهیر کې بندي شول، له مېنځه یووړل شول یا بې ځمکې یا لږ ځمکي شول. په د غه ډول کومه هغه د مشري تشیا، چې په ولس کې پیدا شوې وه، نوره هم ژوره شوه. د پرچمي رجیم په دوره کې له 1985/1364 نه وروسته کوښښ وشو، چې عنعنوي مشري د حکومت په پلوی پیاوړې کړي، خو دغو

کوښښونو نتیجه ورنه کړه او ځای یې د اسلامي تنظیمونو قومندانانو او مذهبي کسانو ونیوه. دوی هم په خپل وار له محلي او عنعنوي مشرانو سره مخالفت پیل کړ. دغو ټولو پایله په اطراف یانې په ولس کې د مشري تشیا ژور کېدل او دغو رجیمونو بېګانه کېدل شول او د ټولنې د پېوستون زخمي کېدل او ناکراري شوه.

## د ښځو او ودونو په اړه فرمان

د حکومت اووم لمبر فرمان د ښځو او نارینه وو د برابري او د پلار واکي او "فیوډالي" د غېر عادلو اړیکو د له منځه وړلو په مقصد د میزان د میاشتې په 25مه وابستل شو. د فرمان مهم ټکي دا و، چې هېڅ څوک نشي کولای نجلۍ د پیسو یا جنس په بدل کې چا ته په نامه او نکاح کړي، یا د واده په وخت کې زوم د ولور په ورکولو او د نورو لګښتونو په کولو مجبور کړي، یا له لس شرعي درهم نه چې معادل یې درې سوه افغانۍ وټاکل شوې، ډېرې پیسې ترلاسه کړي. په همدغه فرمان سره اجباري واده هم منع وښودل شو او د نکاح ښکته منګ د هلک لپاره 18 کاله او د نجلۍ لپاره 16 کاله وټاکل شو او کونډه په بیا مېړه کولو کې واکمنه وګڼل شوه.

د نورو فرمانونو په پرتله دا یو بې ازاره فرمان و، نه خلکو پرې عمل وکړ او نه حکومت د هغه عملي کول ټینګ ونیول او نه یې ټینګ نیولی شو. په افغانستان کې په لویو ښارونو باندې د ولور په نامه پیسې اخیستل او په ودونو او نورو خوښیو کې ټنګ ټکور کول او د غم په وخت کې خواخوږي ښودل، ټینګ اجتماعي دود دی. په دغسې وخت کې لکه د مړو او خیرات په وخت کې خپل خپلوان او کلیوال واده وال، مړي وال او خیرات وال یواځې نه پرېږدي، ور سره د مېړو، خوړو او حتی پېسو مرسته کوي، دا ځکه چې دغه پېښې په افغان ټولنې کې په ماهیت کې اجتماعي دي، نه د سوداګرۍ معاملې. که څه هم په نجونو باندې د

ولور په نامه پیسې اخیستل کېږي، ځینې په دې
فکر دي چې په افغانستان کې پلرونه خپلې لوڼې
د پیسو په بدل کې د نکاح په نامه خرڅوي، خو
دوی دا په نظر کې نه نیسي، چې واده په ماهیت
کې یوه اجتماعي پېښه ده او د ولور یوه برخه
په کوزده او واده کې په ولس لګول کېږي او
ودونه د دوارو خواوو کورنیو او د هغوی د
خپلوانو ترمېنځ اړیکې پیدا کوي او سره نږدې
کوي یې. په افغانستان کې د هندوانو پرخلاف، چې
نجلۍ وال د هلک کورنۍ ته شته ورکوي، د هلک
کورنۍ د نجلۍ کورنۍ ته پیسې ورکوي. د دوارو
ولسونو دغه سرچپه رواجونه د هغو په خوښه وي.
دواړه رواجونه ناوړې خواوې لري، چې باید ورو
ورو له مېنځه یوړل شي، نه دا چې هغه په کوم
فرمان سره متروک اعلام شي. خلک د پوهې او
روښانتیا او په ټولیز ډول د روضع په اوښتلو
سره له هغو نه په خپله اوړي، لکه ډېر وخت
کېږي چې په تعلیم کړو افغانانو کې ولور نه
اخیستل کېږي او د څو ښځو کولو رواج هم سست
شوی دی، خو دوی په ودونو کې لا هم ډېر لګښت
کوي. همدغه لګښتونه که څه هم د ځینو لپاره به
له حد نه ډېر وي او رواجونه دي، چې ژوند ته
کیف، ټولنې ته ټینګښت او افرادو ته ارزښت او
روحي قوت ورکوي. له همدې امله به و، چې ددغه
فرمان له ایستلو نه وروسته ویل کېدل، چې د
ښځو ارزښت لږ شو.

## د ځمکو د ویش فرمان

ددغه فرمان مقصد د حکومت په ژبه د
"فیوډالي" او "فیوډالي دورې نه دمخه" اړیکو
له مېنځه وړل، د کارګرو او بزګرو ترمېنځ د یو
موټي والي ټینګښت او ژورتیا او د زراعتي
محصول د حجم زیاتووالی وښودل شو، خو د هغه
سملاسي مقصد سیاسي او هغه دا چې حکومت غوښتل
د خپلو مخالفینو پرضد د بزګرو، کارګرو او

نورو خواریکښو ملاتړ ترلاسه کړي. په دغه وخت کې که څه هم نور محمد تره کي ویل، چې اوس په وطن کې د خلق دموکراتیک ګوند پرته بل ګوند نشته، نور ګوندونه هم موجود وو، خو هغه له حکومت سره پوره مخالف او غړي یې پټ وو او پر ضد یې فعالیتونه کول. سره له دې چې حکومت د هغو په ځپلو کې د هر ډول فشار او زور له استعمال نه ډډه نه کوله. په ټولنه کې بزګران او د لږې ځمکې مالکان په اکثریت کې وو او حکومت دغه فرمان د هغو په ګټه وایست. حکومت دغه فرمان په بېړه وایست، بې له دې چې ددغسې ډېرې مهمې او پېچلې خواوې یې په ښه ډول مطالعه کړې او د تطبیق امکان او وسیلې په فني ډول ورته برابرې کړې وي.

د فرمان مرکزي ټکی د ځمکه وال لومړنی یا هستوي کورنی ) مور، پلار او تر اتلسو کالو پورې اولاد ( لپاره د ځمکې د اندازې ټاکل و، چې هغه د پرش جریبه اعلی ځمکه یا د هغې معادل وه. تر هغه زیاته ځمکه د دولت مال وګڼل شوه. که څه هم مالک مالکیت یې ثابت و او یا یې د ملکیت سند نه لاره او یا یې نوې اباده کړې وه او په تصرف کې یې وه. قانوني سن ته رسېدلی د بې ځمکو، لږ ځمکو، زراعتي کارګرو او بې شتو کوچیان د یوې نومرې ځمکې مشخص وګڼل شول. د هر یوه مستحق لپاره لومړی درجه ځمکه )باغي او تاکي( پېنځه جریبه، دویمه درجه ځمکه )دوه فصله او بهیزه ځمکه( شپږ جریبه، درېیمه درجه ځمکه )یو فصله اوبه ییزه( اته جریبه او څلورمه درجه ځمکه ) یو فصله او بهییزه( دولس جریبه وټاکل شوه. د وېش وړ بل ډول ځمکه للمي وه، پېنځمه درجه ځمکه چې للمي وه، 25 جریبه، شپږمه درجه 33 جریبه او اوومه درجه 50 جریبه وټاکل شوه.

د لومړی او دویمې درجې ځمکې ډېرې، مهمې او عامې وې. مستحقان یې د پېنځه جریبه او شپږ

جریبه په نومونو یاد شول. لومړۍ درجه مستحقان هغه بزګران وګڼل شول، چې پخوا یې د وېش وړ ځمکې د بزګرو په توګه کرلې. وروستي یې هغه بزګران وو، چې په بل ولایت کې ورته ځمکې ورکول کېدلې. د وېش ځمکه د دولت مال وګڼل شوه او هغه مستحقانو ته د ملکیت د سند په نامه، نه د شرعي قبالې له مخې چې په وطن کې معمول، وړیا ورکول کېدله. د غه ځمکې د نویو مالکانو قانوني وارثانو ته د انتقال وړ وګڼل شوې او نوي مالکان مجبور وګڼل شول، چې درې میاشتې وروسته له هغه چې ځمکې ترلاسه کړي، په کرلو یې پیل وکړي. په نظر کې ونیول شول، چې د ځمکو د غه نوي څښتنان به وروسته په کوپراتیفونو کې تنظیم کېږي او ورته به بیا د دولتي شرکتونو له لارې کیمیایي کود، اصلاح شوی تخم او زراعتي آلې په مناسبو شرایطو ورکول کېږي. په عین حال کې د ځمکو له وېش نه د راپیدا کشالو د هوارولو لپاره د ولایتونو او ولسوالیو په سویه اختصاصي خلقي کمېټې په نظر کې ونیول شې. په دې اړه د هغو فیصلې نهایي او غوڅې وګڼل شوې[2].

په پورته ډول په افغانستان کې په یوه ځل او په غوڅه توګه په ځمکې باندې د شخصي ملکیت اصل د دغسې حکومت له خوا په حاکمانه ډول محدود شو، چې قانوني مشروعیت یې نه لاره او په دې اړه یې له ولسي استازیو سره مشوره هم ونه کړه. حکومتونو پخوا هم د خلکو ځمکې ظبطولې، خو هغه لېږې او د انفرادي مالکانو وې، چې په کوم ډول به حکومت ته نامطلوب کېدل. دغسې ځمکې به دولتي کېدلې او یو څه به یې له څه وخت وروسته اصلي مالکانو ته بېرته ورکولې. په ځمکې باندې به د ملکیت اصل پرځای د ماضي د ولسمشر محمد داود د ځمکو د اصلاحاتو په وخت کې هم.

د ولسمشر محمد داود د ځمکو د اصلاحاتو پروګرام د مترقي مالیې پر بنسټ و. په دې ډول،

چې د لږو ځمکو خاوندان د مالیې له ورکولو نه معاف وو او له سلو جریبو نه د پر مالکانو به ډېره مالیه ورکوله، نو دغه پروګرام له مخې له سلو جریبو نه د زیاتو ځمکو ساتل به د مالک لپاره ګرانه تمامېده او دا به د هغه په ګټه وه، چې له سلو جریبو نه زیاتې ځمکې په دولت خرڅې کړي. دولت به بیا دغه اضافي ځمکې په مستحقو بزګرانو باندې په لږه بیه خرڅولې او پیسې به یې هم په اوږدې مودې کې په قسطونو سره ترلاسه کولې. له دې امله په 1974/1353 کې، چې د محمد داود په وخت کې د ځمکو د اصلاحاتو اعلام و شو، ځمکه والو د خپلو اضافي ځمکو په خرڅولو پیل وکړ. ځینو یې په نورو لارو هم خپلې ځمکې له سل جریب نه شکته کړې او په دې ډول یې د درندو مالیاتو له ورکولو نه ځانونه خلاص کړل او خپلې ځمکې یې هم له لاسه ورنه کړې[3].
امیر عبدالرحمن د افغانستان لومړنی واکمن و، چې د لومړي ځل لپاره یې د جګو مالیاتو په وضع کولو سره د ځمکه والو عنعنوي قدرت مات کړ. په دې ډول، چې له هغو ځمکو نه چې په جاري او بو سره خړوبېدلې، د حاصل درېیمه برخه، له هغو ځمکو نه چې په چینو او کاریزونو سره کرل کېدلې، د حاصل پېنځمه برخه او له للمي ځمکو نه د حاصل لسمه برخه د دولت برخه وګرځوله. د دولت دغه برخه هم په جنس سره ترلاسه کېدله او دا د پاچا امان الله خان په وخت کې و، چې دغه مالیه له جنس نه په نغده بدله شوه[4]. په دواړو حالتونو کې د ملکیت اصل پرځای پاتې و او د محمد داود په وخت کې له مالک نه اضافي ځمکه په پېسو اخیستل کېدله او هغه بیا مستحق بزګرته په پېسو ورکول کېده، خو د اتم لمبر فرمان حکم دا و چې له ځمکه وال نه له دېرش جریبو نه زیاته ځمکه په حاکمانه ډول وړیا واخیستل شي او مستحق بزګرانو ته په وړیا ورکړل شي. دا د کرنې د وزارت د مشاور فضل

رحيم مومند د نظر خلاف و، چې ويل يې "په ټولو هغو هېوادونو کې، چې ارضي اصلاحات يې کړي دي، ځمکه نه ده مصادره شوې او بزګرو ته هم د لږ مقدار پېسو په مقابل کې ورکول شوې ده، چې پېسې يې په وړو قسطونو د اوږدې مودې په جريان کې اخستل کېږي."[5] خو د کرنې او اوبو وزير زيري په وينا "له دې خبرې سره ټول ملګري او تر ټولو زيات په خپله زه او نور محمد تره کی مخالف وو."[6] دوی ځکه مخالف وو، چې د ځمکو له دغه وېش نه د دوی اصلي مقصد د "فيوډالو" ځپل او د بزګرو د ملاتړ ترلاسه کول و. په دغه حال کې غټه ستونځه د مستحقو بزګرانو ډېروالی او د هغه پرخلاف د وېش وړ ځمکو لږوالی و[7]. له همدې امله به هم و، چې دوی د محمد داود د وخت د ځمکو اصلاحات ګرد سره له پام نه وغورځوي، ځمکه والو ته لږې ځمکې پرېږدي (دېرش جريبه) او بزګرو ته د ځمکو وړې ټوټې (پېنځه يا شپږ جريبه) ور کړي. په دغه حال کې د افغانستان د کرنې ميکانيزه او ماشيني کول که ناممکن نه شول، ګران شول. د دېرشو جريبو ځمکو خاوند له توان نه پورته و، چې زراعتي ماشينونه په بيه واخلي او واړه بزګران په کوپراتيفونو کې سره تنظيم شي. په هغه سربېره ددغه پروګرام په تطبيق سره د کرنې د ميکانيزې کولو هغه طرز هم له مېنځه لاړ، چې په ځينو سيمو کې يې رواج موندلی و لکه په هلمند کې چې لويو مالکانو له درې سوه زراعتي ماشينونو څخه کار اخيسته.

غېر له هغه هم د شوروي اتحاد سوخوز (دولتي فارم) او کولخوز (کوپراتيفي فارم) ښوولې وه، چې په دغه ډول له ځمکو نه په هغه اندازه حاصل ترلاسه کېدلی نه شي، چې د پراخو شخصي ځمکو نه ترلاسه کېدلی شي. زيري ته د دغه واقعيت معلوم و، چې ويلې زه "پوهېدم هر څونه چې په يوه زراعتي قطعه کې د ځمکې اندازه زياته وي، په هغه اندازه يې کښت، قلبه کول، تخم پاشل،

کوډور کول او نور خدمات اسانه او تولید یې زیات وی، خو اراضي اصلاحات له یوې خوا ځمکه په وړو ټوټو وېشي او د بله پلوه د داسې کسانو په لاس ورکول کېږي، چې د ځمکې د تنظیمولو تجربه نه لري."(8) سره له دې هم حکومت ددغه واقعیت پرخلاف عمل وکړ. زیری اعتراف کوي، چې "موږ پوهېدلو چې تر ارضي اصلاحاتو وروسته به د هېواد د مجموعي ځمکې حاصل لږ شي."(9) له دېنه هم څرګنده ده، چې د ځمکې د وېش له دغه طرز نه د حکومت اصلي مقصد سیاسي و او په فرمان کې د محصولاتو د حجم زیاتوالی شوول هغسې غولوونکی پروپاګند و.

د زراعتي حاصلاتو او د حکومتي مالیاتو د زیاتوالي او د هېواد د ابادۍ لپاره یوه ښه لار داده، چې د بندونو په جوړولو او د کارېزونو په کندلو سره هغه پراخې او مکینې ځمکې، چې له مقرنه د لویدیځ په لور ان تر هرات پورې او له هندوکش نه پورته او نورو ډېرو سیمو کې پرتې وي، د کر کیلې او داسې هم د بریښنا د تولید لپاره برابرې شي او په بې ځمکو بزګرو او نورو محتاجانو باندې د یوې کورنۍ د کفاف په اندازه په لږه بیه په قسطونو سره ووېشل شي. د افغانستان لوی او واړه سینونه د هېواد د سمسورتیا او د خلکو د ژوند د سطحې د لوړولو لپاره غټې سرچینې دي. د نفوسو په زیاتوالي سره به له هغو نه استفاده یوه ورځ حتمي شي، خو ضروري ده چې اوس هم له هغو نه د استفادې فکر وشي او لږ تر لږه د بندونو وړې پروژې دلته او هلته عملي شي، ځکه چې لویې پروژې غټه پانګه، منظم او لوړه تخنیکي پوهه غواړي. حکومتونه کولی شي د هغوی لپاره سر له اوسه د امکاناتو په لټه کې وي، یواځې په دغسې پروژو سره وطن ابادېدلی، افغانان شتمن کېدلی او ټولنه له کړکېچ نه ژغورل کېدای شي، خو خلقي حکومت ددغسې پروژو پرځای د شوروي اتحاد چلند

ته ورته چلند غوره کړ، چې په هغه سره یې کوښښ وکړ، ځمکه وال د "فیوډال" په نامه وټکوي لکه چې شوروي اتحاد د ستالین په وخت کې کولاکان د یوې ډلې یا یوې طبقې په توګه محو کړي و.
خلقي حکومت د "فیوډالو" ځپل د فرمان په پلي کېدلو سره پیل کړ، خو څنګه چې ځمکه ډول ډول وه او ملکیت هم د شرعي او هم عرفي سندونو له مخې او نوې ابادې شوې ځمکې بې سنده ملکیت وې، ټول پروګرام پېچلی و. غېر له هغه هم د ځمکو سروې او اندازه کول او بیا له ټاکل شوي نصاب نه اضافي ځمکه بېلول او هغه په نورو وېشل یو ګران کار و، چې د هغه لپاره له مسلکي او حرفوي کدرونو نه کار اخیستل د پروګرام په بریالي کېدلو کې رول لوبولی شو، خو هغه د زیري په ژبه هم "... د ډېرو کمزورو کدرونو په لاس په زور پلی شو او مخالفینو ته یې زیاتې پلمې په لاس ورکړې."[10] دا سره له دې، چې د هغو لپاره د کرنې د وزارت یو شمېر رییسان او نور ګوندي کدرونه په یوې اونۍ کې په یوه کورس کې وروزل شول، خو حقیقت دا دی چې د ځمکې د مصادرې او وېش کار د ګوندي ځوانانو په لاس په زور او نندراره ییز ډول په بېړه ترسره شو او زیاتره د "فیوډالو" په سپکاوي سره پرې پیل وشو. په دغه کار کې د عملیاتي پلان آمرانو ته له حد نه زیات واک ورکړل شوی و. هغوی د صدراعظم د مرستیال له خوا په دغو الفاظو مامور شوی و: "تاسې نه یواځې بزګران د استثمار له منګولو نه ژغورئ، بلکې په افغانستان کې د څو پېړیو یوه ستمګره طبقه په اقتصادي لحاظ نسکوره کوئ، چې د انقلاب په بریالیتوب سره په سیاسي لحاظ نسکوره شوې ده."[11] نور محمد تره کي لا دمخه زیري ته فرمایلي و، چې "...د ځمکې اصلاحات دې زر پیل او پای ته ورسېږي."[12] په دغه حال کې د فضل رحیم مومند نظر ته چا غوږ نه نیوه، چې ویل یې

"دغه ډېر پېچلی کار دی، په نمونه وي ډول به د بېلو ولايتونو په يو شمېر ولسواليو کې اصلاحات وکړو، د هغو نتيجې به وګورو، خپلې غلطۍ به مطالعه کړو او بيا به هم دا ډول په نورو ولسواليو کې عمليات پيل کړو."[13] کدرونو ته په يوه کورس کې د ځمکې د اندازه کولو لارې چارې ښوول شوې وې. دوی ته دا هم ويل شوي وو، چې د مساحت په چارو کې به له محلي مساحانو او داسې هم له رسيو نه کار اخلي. د ځمکې د مصادره کولو عمليات سمدلاسه د کابل ولايت په ولسواليو کې پيل شول. بيا د جدي په مياشت کې په کندهار، فراه او هرات کې پرې پيل وشو. عمليات د بل کال د ثور تر مياشتې پورې روان وو.

په دويمې دورې کې د ځمکې وېش، په شمالي ولايتونو او ننګرهار کې د 1358 کال د ثور په مياشتې کې پيل شو او تر جدي پورې يې دوام وکړ. پروګرام په ټول هېواد کې عملي نه شو. په افغانستان کې په عموي ډول لوی ځمکه وال په مېمنې، مزار، نيمروز، کندوز، هرات او فراه کې وو. په هرات او فراه کې لوی ځمکه وال د زرګونو جريبو ځمکو خاوندان وو، خو د هېواد په ډېرو سيمو کې په تېره په سين لرونکيو اوړدو پراخو درو کې واړه او متوسط ځمکه وال عام او لوی ځمکه وال د ګوتو په شمار وو. په عمومي ډول افغانستان د وړو او متوسطو ځمکه والو هېواد او تر دې حده پورې زراعتي دی، چې په سلو کې له پېنځه اويا نه ډېر افغانان په ځمکه باندې کار کوي، نو د ځمکې په ملکيت کې تغيير راوستل، د ډېرو افغانانو په ژوند کې تغيير راوستل کېږي او له دې امله د ځمکې وېش په هر نامه چې ياد شي، په دغه ملک کې ډېره غټه موضوع کېږي.

عجبه ده، چې په فرمان کې د اوبو تنظيم او حق آبه هېڅ په نظر کې نيول شوې نه وه، په داسې حال کې چې په افغانستان کې د کرنې لپاره

د اوبو تنظيم اساسي موضوع ده. په افغانستان کې ځمکې ډېرې او اوبه لږې دي او د ځمکې ارزښت هم په اوبو پورې تړلی دی. باران په دغه ملک کې لږ اوري او هغه هم غېر يقيني وي. له دې امله د للمې حاصل لږ وي، که څه هم افغانستان دغسې پراخې د ښتې ډېرې لري، چې خاورينې او د کرنې وړ دي. له هغو ځمکو نه، چې په مصنوعي ډول يانې په ويالو او نهرونو سره خړوبېږي، په معمولي ډول د کال دوه فصله اخيستل کېږي. که څه هم له هغو نه په کال کې څو فصله اخيستل کېدلی شي. په دغسې ځمکو کې د انګورو او نورو ميو باغونه هم کېږي. دغسې ځمکې د سيندونو په دواړو خواوو سيمو کې او په سين لرونکيو درو کې پرتې دي. افغانستان په اصل کې په دغو ځمکو ودان دي، چې او به ور ته له هسکو واوريځو غرو نه وررسېږي.

اتم لمبر فرمان هم په اصل کې د غو ځمکو ته متوجه و. ورپسې هغه ځمکې دي، چې په کاريزونو او په چينو سره خړوبېږي. لکه چې دمخه وويل شول، د اوبو په بندونو جوړولو او له سيندونو نه د نهرونو په ايستلو سره افغانستان سمسورېدلی او د افغانانو ژوند په اساسي ډول ښه کېدلی شي، خو دغه کار يوازې حکومت نه کولی شي.

نور محمد تره کي د اوبو موضوع هم ساده ګڼله. زيري ته يې د هغه ددغې وينا په اړه، چې "ځمکه زياته ده، خو اوبه نه لري" ويلي و، چې "... ته ځمکه ورکړه او به دوی ]بزګران[ ور ته په خپله پيدا کوي.) 13("

د ځمکې د وېش په وخت کې به د حکومت په هڅونې سره د خدای عالم په موټرونو او لاريو کې ساحې ته رسېده. ډولونه او سرني به وهل کېدل او نڅاوې به کېدلې او يوه لويه ننداره به جوړېدله. د عملياتي ډلو وړو فرعونانو به د سروې او کدر مسترد حکومتي مامورانو په سر کې

به په مستحقو کسانو باندې د ځمکه وال ځمکې وېشلې او د ملکيت سندونه به يې ورکول، په داسې حال کې چې ځمکه وال به هم حاضر وو. ځمکه والو د فرمان له مخې حق لاره، چې له خپلو ځمکو نه د پرش جريبه د ځان لپاره غوره کړي او نوره يې پرېږدي، خو د غو فرعونانو به زياتره وخت د فرمان رعايت نه کاوه. داسې ډېر شوي، چې د ځمکه والو د کلي شاوخوا ځمکې ټوټه ټوټه شوي او "محلي رهبري به د خان د کور له انګړ ځمکه وېشله، خپلو خپلوانو ته به يې ورکړې وه." (14)

يواځې دا هم نه و، له وېش نه وروسته به په ننداره ييز ډول مارشونه کېدل او د وړو فرعونانو په اشاره به ځمکه والو ته "فيوډالو"، "ستمګرو" او "تاريخ ځپلو" په نومونو سپکې سپورې هم ويل کېدلې. دغسې شېل او لسمېدلي خواريکښان لږ نه وو، چې د پت او عزت ځمکه وال د خلکو په مخ کې په ترخو نومونو ياد نه کړي. د زيري په وينا "...د حصارک غلجايي په ولسوالۍ کې د يوه چا ځمکه وېشل کېده، د ځمکې خاوند په خپله پړی ورسره نيولی و او ويل يې، چې دی خوښ دی، مګر کله چې دده ځمکه ووېشل شوه، مليشه پر ډېره لاړې ور توکړې وه او ويل يې "مرګ پر فيوډال" د ځمکې خاوند ډوب شو او په پای کې ډېر زر مړ شو." (15) په بلخ کې يو ځمکه وال له کابل نه امر ترلاسه کړی و، چې دی حق لري له خپلو ځمکو نه د پرش جريبه د فرمان مطابق د ځان لپاره غوره کړي، خو فرعونانو د وېش په وخت کې هغه ځمکه بل چا ته ور کړې وه. ځمکوال د ولسوال په امر هغې ځمکې ته بوتلل شو او هلته له مېنځه يووړل شو. دغسې حېواني پېښې ډېرې نه وې، خو وې.

هغو ځمکه والو ته، چې عرفي قبالې يې په لاس وې، که څه هم د ډېرو ټوټو ځمکو خاوندان به وو، يواځې لس جريبه ورپرېښودل کېدل او نوره به يې وېشل کېده. ددغسې ځمکه والو شمېر په

ټول ملک کې ډېر و. په افغانستان کې په عرفي قبالو سره د ځمکو رانیول یو پخوانی دود و، هغو ځمکه والو ته چې شاړې ځمکې یې خروبې کړې وې، ځمکه هېڅ نه پرېښودل کېدله، که څه هم د ډېرو ځمکو څښتنان به وو. دغسې ځمکه وال په تېره د هرات د هریرود د سین په دواړو غاړو کې ډېر وو، چې د سل جریبو ځمکو خاوندان هم شوي وو او اوس په یو ځل ترېنه محروم شول. داسې هم هغو کورنیو ته، چې ځمکې به یې د غور نیکونو په نامه په شرعي قبالو پاتې وې، چې په هغې کې به د بېلګې په ډول پنځوس جریبه او له درجه ځمکه د یوه کس په نامه وه، خو هغه به تر دغه وخته پورې د هغه د لمسیانو او کړوسیانو ترمېنځ وېشل شوې وه، اوس د هغو یوې کورنۍ ته حتمي پېنځه جریبه هم نه رسېدله[16]. شاید فکر وشي، چې دغو وړو فرعونانو، چې هرڅه کول، زیارکښو او خپل حکومت ته د خدمت لپاره کول او خپل غرضونه یې پکې دخیل نه وو، خو خبره دغسې نه ده. د غو تر شلکلونو نه یو څه زیاتو بې تجربې او نادارو وړو فرعونانو له هغه زیات واک نه، چې ور ته ور کړل شوی و، ناوړې استفادې کولې. زیری، چې د خپل وزارت په وخت کې د تره کي او امین امرونه بې له ګړاوزړ نه منل اوس وايي، چې "د محل د رهبري سرو خلقیانو د خپلو قومي سوابقو پر اساس شخصي چلند کاوه."[17]

د عملیاتي ډلو فرعونانو د ولسوالانو په مرسته یا د هغو په ګډون د ځمکه والو او نورو شتمنو کورونه هم لټول او د هغو کم حجمه قیمتي اموال به یې خپل کول. د هرات په ولایت کې په دغسې لټونو سره له بېلابېلو کورونو نه د خښتو په بڼه اوه منه طلا اخیستل شوې او شخصي شوې ده. ځینې ځمکه وال به په دې هم تړل کېدل، چې خپلې لوڼې خلقي ځوانانو ته نکاح کړي او که نه د انقلاب ضد چلند به ور سره وشي. دغسې چلند په هرات او فراه کې ډېر شوی دی. د نغدې بډې

ترلاسه کول هم په دغو ورو فرعونانو کې رواج مو ندلی و. د پرو ځمکه الو ر شوتونه ورکول، چې تر نصاب نه اضافي ځمکې یې ونه وېشلی شي. مستحقو بزګرانو هم رشوتونه ورکول، چې په لومړۍ درجه ځمکو کې باغي او تاکي ځمکې ترلاسه کړي. رشوتونه د کابل ولایت په قرغه باغ کې د پر ور کړل شوي او اخیستل شوي وو. یو څو تنه بدې اخیستونکي ګوندیان نیول شوي هم وو، چې په هغو کې د عدلیې وزیر او لوی څارنوال عبدالحکیم جوزجاني وراره هم و.

د زیري په وینا "... موږ د ارضي اصلاحاتو د فرمان له مخې تقریباً دوه سوو او یا زرو کورنیو بې ځمکې او لږ ځمکې بزګرانو ته په وړیا توګه ځمکه ورکړه." دی دا هم وایي، چې "... یو اځې اوه سوه زره کورنۍ مې په یاد کې پاتې دي، چې په دغو کې څلور، څلور نیمو سوو زرو کورنیو هېڅ ځمکه نه لرله او تقریباً دري سوه زره کورنۍ هغه کسان وو، چې یواځې یې یو، دوه، درې یا څلور جریبه لومړۍ یا د هغه معال ځمکه درلودل )لرله(.[18]" که دا ارقام رښتیا وي، د خلقي حکومت په دوره کې تر نیمایي نه زیاتو بې ځمکو او لږ ځمکو بزګرانو ته ځمکه ور کړل شوې نه ده. په دې حساب د ځمکې د وېش پروګرام به په سلو کې د پنځوس په شاوخوا کې ر سېدلی او "فیوډالزم" هم په اساس کې پرځای پاتې شوی، که څه هم دد غه فرمان له عملي کولو نه اصلي مقصد یا لوی مقصد د "فیوډالزم" له منځه وړل و، خو د هغه د عملي کېدلو په بهیر کې د پر ځمکه وال، محلي مخور، خانان وځپل شول او ځینې یې بندي او حتی ووژل شول. حکومت او ګوند له بزګرو نه هم لږ خپل کړل، که څه هم د خپلې ایډیالوجۍ له مخې یې په دغې ګڼې عمل کاوه، چې لکه په اروپا کې په منځنیو پېړیو کې د افغان "فیوډال" او بزګرو ترمېنځ دزر دغومره ژور دی، چې وروستي به د ځمکې په وېش سره د لومړیو پر

ضد جګ او د حکومت ملاتړ شي. دغسې و نه شول. په واقع کې د غه هیله بې ځایه وه. په افغانستان کې د اروپا د منځنیو پېړیو فیوډالزم او د هغه له مخې اجتماعي او سیاسي اړیکې، نه پخوا او نه په دغه وخت کې شتون لاره او نه د بزګرو او ځمکه والو ترمېنځ اړیکې د دښمنۍ تر حده پورې ترخه وو. له دې امله یو خو په ځینو ځایونو، د بېلګې په ډول د فراه ولایت په انار دره کې بې ځمکو بزګرو له ځمکې اخیستو نه ډډه وکړه، په دې دلیل، چې نه غواړي د خپلو تربورانو ځمکې په دغه ډول واخلي. په دغسې خلکو کې به د اخوانیانو د تبلیغ هم اثر وو چې ویل یې د شریعت له مخې چې شخصي ملکیت روا ګڼي، د ځمکو مصادره او وېش حرام دی. بله دا چې لکه چې په خپله زیری هم وایي، چې د ځمکې په دغه ډول وېش او ددغو وړو فرعونانو په زورواک او زیږ چلند سره "خلک د اصلاحاتو څخه د شکایت تر مرحلې تېر او د ضد انقلاب سره د ملګري کېدو مرحلې ته ورسېدل.[19]" خلک به څکه د شکایت له مرحلې نه اوښتي او د ضدیت مرحلې ته رسېدلي وو، چې له دغو وړو فرعونانو نه شکایت ته چا غوږ نه نیوه. د زیري په ژبه "ما دغه شکایتونه په وار وار لوړو مقاماتو ته ور سول، خو د هغه په اړه کوم اقدام نه کېده.[20]" د محل ګوندیانو په دې اړه د زیري امر نه مانه[21]. بل تریخ واقعیت دا و، چې هغو بزګرو له خپلو نویو ځمکو نه استفاده نه شوه کولی، چې کلیو ته نژدې د ځمکو خاوندان شوي وو. په تېره هغه بزګر، چې له یوه بل ولایت نه به وو. دا یوه غټه تراجیدي وه، چې د څلور سوو په شاوخوا کې هغه بې ځمکې بزګران چې له لغمان، ننګرهار او نورو ولایتونو نه په بغلان، هلمند، کندهار او نورو سیمو کې د محلي مستحقو بزګرو پرځای او د فرمان پرخلاف پېنځه جریبه یا شپږ جریبه شوي وو، ددغه سیاست قرباني شول. له دوی څخه یواځې لږو و کولی شول

خپلو اصلي ولایتونو ته ستانه شي او ډېر یې د خلقي حکومت تر نسکورېدلو او له هغه وروسته له منځه یووړل شي. دا هغه بزګران وو، چې حکومت د هغو د سفر په لار کې په کابل کې حتی د پوهنتون استادان هم د هغو د هرکلي لپاره ایستلي وو او په دغه بې مثاله کار سره یې هم استادان او هم بزګران حیران کړي وو.

په هغه وخت کې په کابل کې په ټینګه ویل کېدل، چې د شوروي حکومت د خپلو مشاورو له لارې په حکومت باندې فشار اچولی و، چې اوس ددې وخت دی چې په افغانستان کې "فیوډالزم" له منځه یووړل شي او "فیوډالان" وځپل شي، چې د حکومت پر ضد جنګ نه شي او حکومت په ټول ملک باندې مسلط شي، چې خپل اصلاحي پروګرامونه عملي کړي. ښکاري، چې دا هسې اوازه وه. زیری وایي، چې "یو شی چې ماتل په فکر کې اچوي، هغه په ارضي اصلاحاتو کې د شوروي د مشورو نه شته والی و." دده په فکر د شوروي حکومت، چې په دې اړه "بېطرفي" غوره کړې وه، ددې لپاره به و، چې "موږ دغسې غلطي وکړو" او "تر نورو کارونو سربېره دغه مشکل هم ځان ته پیدا کړو."[22] دی دا هم وایي، چې وروسته د پرچمي رجیم په دوره کې، چې دی د زراعت منشي و، د شوروي حکومت همکاري کوله او سفیر یې احمد جانوویچ هغه ته هم په دې اړه مشورې ورکولې او "موږ خپلې ټولې تیرې غلطۍ اصلاح کړې." خو زیری به ټوکې کوي، چې دغسې وینا کوي، ځکه چې په دغه وخت کې نژدې ټول بزګران د نورو ترڅنګه د رجیم په مقابل کې جګ شوي وو.

په هر حال، د شوروي حکومت به د سیاست له مخې له خلقي حکومت سره د ځمکې د وېش په اړه همکاري نه وي کړي، ددې لپاره چې په هغه کې پاتې را شي او د حکومت کولو چانس کارملیانو ته ور سېړي. د زیري د کتاب له مخې نور محمد تره کي او حفیظ الله امین د ځمکې د فرمان په پلي

کېدلو کې اصلي کسان وو او ده له هغو نه په
هرې موضوع کې هدایت غوښته. دا سمه وه، چې د
خلقي په زورواکي نظام کې واک د سرکسانو په
انحصار کې و، خو د کرنې او اوبو د وزیر په
توګه صالح محمد زیري د فرمان د پلي کېدلو له
زور زیاتي او بېعدالتي له مسؤلیت نه ځان
ژغورلی نشي. دا د لمر په شان واقعیت دی، چې
ګوندیانو او حکومتیانو د ځمکو وېش په ټینګه
غوښته او نارې سورې يې سر کړې وې، چې په دغه
اصلاحي پروګرام سره به "فیوډالزم" او تر
"فیوډالزم" نه دمخه اربکي له مېنځه یووړل شي
او "ځمکه د هغه چا ده چې پرې باندې کار کوي
او موږ به دغسې ټولنه جوړه کړو، چې په هغې کې
به "د فرد له خوا د فرد استثمار نه وي" او
داسې نور... خو کومې هغه تېروتنې، چې زیري د
ځمکو د وېش په اړه په لاندې ډول کړي دي، سمې
دي، خو ده دغه انتقاد د پرچم رژیم په وخت کې
کړی، چې په هغه وخت کې په خلقي حکومت باندې
انتقاد کول دود ګرځېدلی و، نو دی هم په کال
**1983/1362** کې لیکي، چې "عمده ترین اشتباهات
مرحله اول اصلاحات ارضی عبارت اند از اشتباهات
در تطبیق تحولات زراعتی نادیده گرفتن اشکال
زمینداری و استفاده از زمین در مناطق مختلف
کشور محاسبه و سنجش نادرست مسایل استفاده از
آب، عهدم تامین امادگی قبلی دهقانان بانجام
اصلاحات ارضی، در نظر نگرفتن سنن، عنعنات،
رسوم و اعتقادات مردم، بر خورد تحریک آمیز در
برابر دهقانان مرفه الحال و متوسط و نرساندن
کمک های لازم به دهقانان کم زمین، و بی زمین
که در نتیجه اصلاحات ارضی صاحب زمین گردیدند."
بیا د یادولو وړ ده، چې صالح محمد زیری په
خلقي حکومت کې د کرنې او اوبو وزیر د
پولټبیوورو غړی او د ځمکو د وېش پروګرام آمر
و، نو ددغو تېروتنو مسؤلیت په اوله درجه هغه
ته راجع کېږي، خو څنګه چې په زورواکو نظامونو

کې د ملامتۍ ګوته له مېنځه تللیو او په خاص ډول له مېنځه وړل شویو ته نیول کېږي، زیري هم ملامتي په حفیظ الله امین اچوي، چې "اشتباهات مذکور و شرایط بغرنج استیلای امین و باند تبهکار آن [او] بر مواضع قدرت تا اندازه زیاد عمداً بالای حزب تحمیل گردید.(23)"

زیری هغه څوک دی، چې په افغانستان باندې د شوروي له یرغل نه دوه ورځې دمخه، چې د خپل وزارت ځینې ماموران حفیظ الله امین ته معرفي کول، هغه یې په مبالغه ییزو تودو کلمو ستایه، خو له یرغل نه زر وروسته یې چې خلقي حکومت نسکور شوی او امین وژل شوی و، هغه یې سخت وغنده او ببرک کارمل یې چې د شوروي یرغلګر پوځ په واک رسولی و، په غوړو کلمو ستایه. بیا یې د نجیب الله په سروالۍ کې د ګوند په دویم سراسري کنفرانس کې په کارمل باندې نیوکې وکړې، بې له دې چې نوم یې واخلي او د نجیب الله یې ستاینه وکړه.

# څلورم څپرکی

## بندي توب او جزا

په افغانستان کې د امیر عبدالرحمن له واکمنۍ نه دمخه رسمي بندي خانې نه وې، لکه چې د رسمي دفترونو لپاره هم ودانۍ نه وې، واکمنو له پخوا نه د اطراف زورورو کورنیو زامن په کابل کې د یرغمل په توګه ساتل. د امیر عبدالرحمن په وخت کې بندیان په بالاحصار، ارګ او کوټوالۍ کې ساتل کېدل. له ځینو سرایونو او حکومتي ودانیو نه هم د بندي خانو په توګه کار اخیستل کېده. په بالاحصار او ارګ کې په سیاه چاګانو کې هم بندیان اچول کېدل. بیا په دهمزنګ کې لویه بندي خانه جوړه شوه، چې د هغې له وړو او نمجنو کوټو څخه ان د څرخي پله د لوی کانکریټي زندان تر جوړېدلو پورې کار اخیستل کېده. د امیر عبدالرحمن په وخت کې د غومره ډېر افغانان بندي شوي، چې واقعي شمېر یې شاید حکومتي چارواکیو ته هم معلوم نه وو[1].

د امیر عبدالرحمن له دورې نه وروسته د ثور تر کودتا پورې هم له بندي خانو نه پوره کار اخیستل کېده، په تېره د صدراعظم محمد هاشم په اولسو کلونو کې. یوازې د پاچا امان الله په واکمنۍ او د پاچا محمد ظاهر په قانوني لسیزې کې افغانان له حکومتي سیاست سره د مخالفت له امله د محکمې له حکم نه پرته نه بندي کېدل. په نورو وختونو کې سیاسي بندیان تر جنایي بندیانو په شمېر کې ډېر وو، دا ځکه چې زورواکي او بندي خانې سره تړلې وي. په دې

برخه کې خلقي او پرچمي حکومتونه د افغانستان تر هر بل حکومت نه دمخه ولاړل. هغومره، چې په هر يوه دغه رجيم کې ښځې او نارينه بندي شوي، کړول شوي او اعدام شوي دي، په معاصر افغانستان کې د بل هيڅ حکومت په وخت کې په هغه تناسب نه دي شوي او دا په داسې حال کې، چې د دوی چارواکيو د بل هر حکومت له چارواکيو نه ډيرې خلقو ته د خدمت کولو نارې سورې وهلې، خو دوی د نورو حکومتونو له چارواکيو نه څرګند توپير لاره. دوی په خپله ټاکلې ايډيالوجۍ ټينګ ولاړ وو او هغه ور ته د غومره سپېڅلې وه، چې نور خلق يې ترينه قربانول. دوی ځکه داسې کول، چې دغه ايډيالوجي په اصل کې په توپير او د ښمنۍ ولاړه وه او دوی د هغې له مخې شتمن په تېره "فيوډالان" او پانګه ور او مذهبي کسان دښمنان او د هغه پرعکس خواريکښان خپل دوستان ګڼل. د همدغه نظر له مخې و، چې د خلق او پرچم چارواکيو نه يوازې خپل عقيدوي مخالفان ځپل حتی خپل ګوندي مخالفان هم په بندي خانو کې تخته کول. په افغانستان کې هغومره، چې د دوی د رجيمونو په وخت کې له بندي خانو کار اخيستل شوی دی، د بل هيڅ افغان حکومت په وخت کې په هغه اندازه ترينه کار نه دی اخيستل شوی.

د کودتا په لومړيو اونيو کې بېحسابه افغانان بندي شول، د پخواني حکومت د سر کسان هم د لومړيو بنديانو په ډله کې وو. لکه چې دمخه د ک.ج.ب په حواله ويل شوي، د مۍ د مياشتې تر شپږمې پورې د يوې اونۍ په بهير کې له لسو زرو نه زيات افغانان بندي شوي وو. د بلخ ولايت د ولايتي کمېټې منشي عبدالله احد ]عبدالاحد[ يونسي په امر د مۍ د مياشتې په بهير کې نهه سوه کسان د ضد انقلاب په تور بندي شوي وو. د جون د مياشتې په نيمايي کې، چې له کابل نه امر وشو، چې دغه بنديان کابل ته واستوي، د هغو پخوانۍ شمېر نه و پاتې. تر دغه

وخته پورې د اتلسمې پلې فرقې له لارې په مزار کې هره شپه له پنځوسو نه تر شپېتو پورې بندیان له منځه وړل کېدل. چارواکیو ویل، چې دغه کم شوي کسان"... د شوروي اتحاد یورال او سایبریا ته د سخت کار کولو لپاره استول شوي وو." سره له دې هم په دغه وخت کې هره ورځ له دېرشو نه تر اویا پورې افغانان بندي کېدل(2).
په واقع کې د زندان آمران د بندیانو باقي وو او حساب یې ور کولی نه شو. لکه چې دمخه ویل شوي، د کودتا په لومړي وخت کې اول د دفاع وزیر عبدالقادر، چې د عثمان په مستعار نامه د ک.ج.ب ایجنټ و او بیا د ګوندي منشیانو په امر پوځي افسران بندي کېدل، حکومت له پوځ نه وېره لرله او مخالف افسران یې همدا چې پېژندل نیول، که څه هم هغو به د حکومت پر ضد عمل نه وکړی. حکومت په اصل کې کوښښ کاوه، چې پوځ خلقي یانې د مخالفو افسرانو له شتون نه خالي کړي، نو یې نورو ګوندونو ته منسوب افسران په تېره اخوانیان او ماوستان نه زغمل. په دې ډول حکومت د بالقوه او بالفعل مخالفانو ترمېنځ توپیر نه کاوه او دواړه یې نیول. دغه چلند په پوځ کې سخت کړکېچ پیدا کړ، چې په نتیجه کې په پوځي واحدونو کې پاڅونونه وشول.
د اګسا له جوړېدلو نه وروسته نیول نیول ډېر شول. اګسا که څه هم د افغانستان د ګټو ساتلو اداري په نامه له کودتا نه یو څو اونۍ وروسته جوړه شوه، په واقع کې د افغانستان پرځای یې د رسمي ګوند ګټې په نظر کې لرلې، چې هغه په دغه وخت کې د ګوند په انحصاري سروالۍ د حکومت ټینګول وو، نو ځکه هر افغان نر یا ښځه یا ستمي یا غیر ستمي، پښتون یا غیر پښتون، ګوندي یا غیر ګوندي بندي کېده، چې په یوه یا بل ډول به یې له دغه انحصاري حکومت او د هغه له زور زیاتیو سره مخالفت کاوه. په دغه وخت کې ژوند دغومره نامصؤون او وېره تر دې حده پورې خوره

وه، چې پلرونه به په کورونو کې د خپلو اولادونو په مخ کې د حکومت پرخلاف نه غږېدل. په ښوونځیو کې خلقي ښونکي ګومارل شوي وو، چې زده کوونکي وپوښتي، چې تېره شپه چې لویانو په تلویزیون کې وینا اوې کولې، د هغو (زده کوونکیو) مېندو او پلرونو د هغه په اړه څه ډول غبرګون ښوده؟. وېره دغومره ډېره وه، چې چا د روانو پېښو په اړه لیکنې نه کولې. ما په خپله که څه هم له خلکو سره د حکومت په چلند پوهېدل مې خپله مسلکي دنده ګڼله، د اګست په میاشت کې د بالاحصار له پېښې نه وروسته په جورنال لیکلو پیل وکړ او په 1982 کې مې په پرچمي رجیم کې تر بندي کېدلو پورې ورته دوام ورکړ. د څرخي پله په زندان کې مې بیا له بندیانو نه په دې اړه ډېر معلومات ترلاسه کړل، خو له بده مرغه هغه مې لیکلی نه شول. اوس دلته هغه او د خپل ژوندانه معلومات له هغو د معلوماتو سره یوځای وړاندې کوم، چې مې د اسدالله نوابي، روشن احمد شاه، س.ن. حسیني او محمد عثمان هاشمي له اثرونو نه ترلاسه کړي دي. دوی ټول په خلقي دوره کې بندیان وو. سره له دې هم ممکنه نه ده، په ټول ملک کې په خلقي دوره کې د بندي توب او جزاګانو په اړه انځور وړاندې شي.

## حکومتي چارواکي او بندیان

د خلقي حکومت په لومړیو اوولس میاشتو کې یانې په هغه وخت کې، چې تره کی د نظام او اسدالله سروري د اکسا سروالان وو، بېخي ډېر افغانان بندي شوي، کړول شي او له مېنځه وړل شوي دي، خو څنګه چې خلقي نظام انحصاري او سرپټي او زورواک و او یواځې له ځینو بندیانو نه تحقیق په لیکلي ډول کېده او د تحقیق پاڼې هم له یو څو نه پرته عامې شوې نه وې، د بندیانو او هغو ته د جزاګانو په اړه لیکنې هم

دقیقې کېدلی نه شي. په دې اړه لکه چې وویل شول، یو شمېر پخوانیو بندیانو لیکنې کړي دي، خو هغه نه یوازې د شخصي معلوماتو او تجربو پر بنا او محدودې دي، تر زیاتې اندازې احساساتي او نا افاقي دي. سره له دې هم هغه د څېړونکیو لپاره ارزښتناک منابع دي. د امیر عبدالرحمن د وخت د زندانونو په اړه زما لیکنه شاید تر دغې لیکنې، چې اوس یې کوم، ډېره دقیقه وي، ځکه چې په هغه وخت کې د امیر په دربار کې د برتانوي هند حکومت مسلمان ایجنټ په منظم ډول خپل حکومت ته راپورونه ورکول، چې هغه ټول د هند په ملي ارشیف او د لندن برتانوي کتابتون کې د څېړونکیو د استفادې لپاره ایښودل شوي دي، خو له بده مرغه په افغانستان کې دغسې سرچینې هېڅ نه شته، چې د هغو له مخې افغان تاریخ په دقیق ډول او په خاص ډول له خلکو او بندیانو سره د حکومتونو چلند په مستند ډول وکښل شي.
حکومتونه او په دقیق ډول حکومتي چارواکي هغه وخت ښه پېژندل کېدلی شي، چې له خلکو سره په عمومي ډول او له خپلو مخالفانو سره په خاص ډول د عمل په ډګر کې څه ډول چلند کوي، نه دا چې څه وايي. له دې امله په یوې سیاسي ټولنې کې د خلکو غټه دنده دا ده، چې د خپلو چارواکیو ویناوو او کړو ته پوره ځیر وي.
د ثور له کودتا نه وروسته د حکومت فرمان په ټول ملک کې چلېده او حکومت په ولایتونو، ولسوالیو او علاقه دریو کې لکه د کابل په ښار کې نوي چارواکي وټاکل. دوی زیاتره خلقیان او څه یې پرچمیان وو. له پخوانیو چارواکیو نه ډېر یې لا هم په خپلو مقامونو پاتې وو، خو هغوی بیا لېرې ځایونو ته استول کېدل یا یې ځانونه په خپله ګوښه کړل. وروسته معلوم پرچمي چارواکي هم ګوښه کړل شول. په دې ډول په ښارونو او ولایتونو کې د ګوند او حکومت د سروالی مقامونه د خلقیانو شول، مسلکي او

حسابي میرزایان پرځای پاتې شول، ځکه چې خلقیانو یې کارونه نه شو کولی. په خلقیانو کې هم "...د دولت اساسي اداري، امنیتي او سیاسي کارونه د ګوند حاکم ګروپ ته سپارل شوي وو، چې د سرو خلقیانو په نامه یادېدل."(3) خو د دوی په نظر حکومت کول د نامطلوبانو بندي کول، کړول او مرګکي وهل تکول شول. په اطراف په تېره د ولایتونو په مرکزونو کې هم له زندانونو نه پوره کار واخیستل شو. د مرګکي وهلو تکولو لوی مرکز د کابل ښار و، چې د کودتا په وخت کې یې نیم میلیون وګړي او د بندي توب څو مرکزونه لرل، لکه د دهمزنګ زندان، د ولایت توقیف خانه او د څرخي پله لوی کانکریټي زندان، چې په دغه وخت کې له او وبلاکونو څخه یې یواځې اول لمبر بلاک د استفادې وړ و. د حکومت لپاره دغه بندي خانې بس نه وې، نو یې د بندي کولو په همغه اول وخت کې د کورنیو چارو وزارت او ملي دفاع وزارت له کوټو او تهکاویو او وروسته د صدارت له کوټو او نورو دولتي ودانیو نه هم کار اخیستو او د څرخي پله د ټولو بلاکونو په بشپړ کولو باندې لنګر واچوه.

ن.حسیني شاید لومړی کس وي، چې د کودتا په دویمه ورځ یانې د ثور په نهمه ونیول شو او لس ورځې وروسته له درې نورو بندیانو سره د څرخي پله زندان لومړي بلاک ته ولېږل شو(4). د حسیني له لیکنې نه معلومېږي، چې د اسلامي جمعیت غړي وي. له هغه نه وروسته به وي، چې د پخواني حکومت د سرکسان د موسی شفیق په ګډون د ملي دفاع په کوټو کې اچول شوي او بیا په پولیګون کې له منځه وړل شوي دي، چې یادونه یې دمخه شوې ده. له کودتا نه ورسته نور معلوم بندیان د بدخشان پخواني والي تاج محمد وردګ او د هغه مشر ورور روشن احمد شاه، چې په روشندل وردګ یادېده، وو چې د ولایت په توقیف خانه کې واچول شول. توقیف خانې په وړو کوټو کې یو شمېر

جنايي بنديان او داسې هم ځيني سياسي بنديان لکه عبدالمجيد د دولت وزير، عبدالقيوم وردګ د سرحدونو وير، عبدالله عمر د روغتيا وزير او يو ځو ديني پوهان او قاضيان دمخه بندي شوي وو. د جوزا په لومړۍ ورځ دغه دوه ورونه او درې وزيران د څرخي پله لومړي بلاک ته ولېږل شول[5].

## اګسا او اسدالله سروري

اګسا د نوي نظام د ټينګښت او بانديو په تېره امريکې ته د جاسوسۍ په نامه د خپل فعاليت ډګر د غومره پراخ نيولی و، لکه په شوروي اتحاد کې چې ک.ج.ب پراخ نيولی و. د اګسا لومړنی او وروستنی سروال اسدالله سروري و. سروري د اګسا له لارې د افغانانو په بندي کولو، کړولو او له مېنځه وړلو کې د امير عبدالرحمن د وخت له نايب کوتوال مير سلطان ( سره پرتله افشار ) کېدی شي. مير سلطان په امنيتي او جزايي چارو کې د مطلق اختيار خاوند و. د هغه له دغه مطلق اختيار نه په پراخې استفادې سره ناراضي توب تر دې حده پورې عام شو، چې په پای کې حکومتي لوړو چارواکيو امير ته څرګنده کړه، چې د هېواد ناارامي د هغه د بې رحمۍ له امله وه. دا هغه وخت و، چې د مير سلطان مطلقيت له حد نه اوښتی او امير هم همدغسې فکر کاوه. مير سلطان بيا په لغمان کې په دار وځړول شو[6].

اګسا د عصري تخنيکي وسيلو، د ګوندي سرتېرو، بېحده اختيار او د شوروي اتحاد د ماهرانو او په سر کې يې د بوګدانوف په لرلو سره د غومره پياوړې او په خپل سر شوي وه، چې له يو څو کسانو نه پرته بل هر څوک يې بندي کولی شو، بې له دې چې له کوم مقام نه يې اجازه ترلاسه کړې وي. د هغې له لارې سروري حتی د صدراعظم حفيظ الله امين د له مېنځه وړلو لپاره څو ځله تجويزونه نيولي وو، چې نابريالي شول. په دې ډول اګسا ددغسې اختيار له لرلو نه بهره منه

وه، چې چاروا کیو یې په تېره سروري د نظام د مخالفانو په ځپلو کې هر هغه څه کول، چې یې لازم ګڼل، بې له دې چې څوک ترېنه پوښتنه وکړي. د دوی مطلقیت به هغه وخت پوره څرګند شي، چې د بندي افغانانو شمېر او د هغوی د کړولو او وژلو طرز هغسې، چې په رښتیا و تثبیت شي او دوی بې شمېره افغانان په ښارونو او اطراف کې بندي کړي او بې شمېره بندیان یې د مرګ پنجو ته سپارلي دي. د کابل او څرخي پله په زندانونو کې په تېره له پاڅونونو وروسته به یو شمېر بندیان له دې امله هم له مېنځه وړل شوي، چې په زندانونو کې ورته ځای نه و.

اسدالله سروري د غزني سهېل ته د سپندې د کلي فارسي ژبې په منګ ځوان خلقي و، خو په خټه یې ځان مومند ښوده. دی د هوایي قوې میخانیک و، دی د کودتا په اوله ورځ په غزني کې و، خو دی په اصطلاح سخت انقلابي و. تر کودتا دمخه یې په کوندي لویانو باندې فشار راوړ، چې باید انقلاب وشي، یاني حکومت په کودتا سره ونیول شي. له همدې امله به و، چې دی تر کودتا وروسته د اګسا سروال وټاکل شو، چې انقلاب واقعي کړي، که څه هم هغه ددغسې اداري د چلولو لپاره تجربه او وړتیا نه لرله او کسب یې هم د پوځي میخانیک و. هر څه، چې و د یوه تینګ انقلابي په صفت اګسا د شوروي اتحاد سرمشاور، کرنیل لیونید بوګدانوف په مرسته د نظام یو بې جوړې پیاوړی مرکز وګرځاوه. اګسا په نېغ ډول تره کي ته مسؤله وه او سروري په خپله هم د ځینو بندیانو په وهلو او کړولو کې برخه اخیستله او د کورنیو چارو وزارت کې یانې چېرې، چې اګسا هم وه، هره شپه یې نوي بندیان په خپله لیدل. کله به چې دی هلته ته، زیاتره وخت به نشه و، بندیان به یې په خپله وهل. ده په همدغسې حال کې د یوه ملا ږیره هم شکولې ده. د یوه مشاهد په روایت یوه ښځه او مېړه یې په

دې تور هلته ورل شوي وو، چې ګواکې امریکې ته یې جاسوسي کوله. د غه سړی د امریکې په سفارت کې یو عادي مستخدم و او که څه هم سخت ووهل شو، مطلوب اعتراف ترېنه ترلاسه نه شو. په پای کې په یوه حاضر ازبک سرتېري امر وشو، چې ښځه بربنډه کړي، هغه د نورو په مخ کې همدغسې وکړل. سره له دې هم له مېړه نه یې اعتراف ترلاسه نه شو. بیا دواړه له کوټې نه بیرون وایستل شول. خانباز تڼیوال د کابل پوهنتون د ادبیاتو په پوهنځي کې د پښتو ژبې استاد و، لکه چې په پخواني څپرکي کې یې یادونه شوې وه. دی په ځان دنګر خو په فکر کې شخ او ماوست ډوله ځوان و، خو په اګسا کې یې پرې تور لګولی و، چې دی د امریکې جاسوس دی، لکه په پرچمي دوره کې په خاد کې په ما باندې، چې دولس کاله مې په انګلستان او امریکې کې زده کړه او څېړنه کړې وه، دغه تور لګول شوی و چې زه د کمونستي چین پلوی ډلې رهاییي کدر وم. په داسې حال کې، چې تر هغه وخت پورې مې د دغې ډلې مشر ډاکتر فیض نوم نه و اوربېدلی. محمد علم مله بار هم، چې د ادبیاتو په پوهنځي کې یو لایق استاد و، په اګسا کې تر دې حده پورې وهل شوی و، چې په امریکایي انتروپولوجست لویي دوپرې باندې یې د هغه په مخ کې شهادت ورکړو چې هغه یو جاسوس دی. مله بار په قانوني پاچایي کې له دوپري سره د کابل پوهنتون له خوا له هغه سره د څېړنې لپاره بدخشان ته د سفر ملګرتوب کړی و. په هغه وخت کې له باندنیو پوهانو سره د کابل پوهنتون له خوا د استادانو ملګرتوب د تحقیق او څېړنې لپاره عام و، لکه چې محصلان به د علمي سیر په نامه د هېواد ځینو سیمو ته په رسمي ډول تلل او یو ځل زه له خپلو محصلانو سره کندهار او هرات ته تللی وم.

د بندیانو په کړو لو کې د سروري و نده د پلان وزیر سلطان علي کشتمند او د پوهنتون استاد

عثمان هاشمي له ليکنو نه هم څرګنده ده، چې د خلقي حکومت پر ضد د کودتا په تور نيول شوي وو. کشتمند د سنبلې په لومړۍ ورځ د ارګ په کوټې باغچه کې په دې تور بندي شوی و، چې د جنرال عبدالقادر او نورو په ملګرتيا يې کودتا کوله، لکه چې دد غې پېښې يادونه دمخه شوې وه. دی شايد د هغو خاصو بنديانو نه وي، چې هم شفاهي او هم په ليکلي ډول ترېنه پوښتنې شوې وي[7]. د بندي توب په دويمه شپه ترېنه پوښتنې پيل شوې، د پوښتنو کوونکيو ډله د اسدالله امين په سروالۍ له اسدالله سروري، سيد داود تړون، د کورنيو چارو وزارت د ژاندرم او پوليس سروال عزيزي اکبري، د همدغه وزارت د چارواکي او د تره کي د دفتر خاص سکرتر تورن جان محمد نه جوړه وه. اول اسدالله امين کشتمند وپوښته، چې "... چه وقت و چطور کودتا ميکرديد؟" د کشتمند ځواب دا و، چې "چنين اتهامی درباره من کاملاً بی پايه و دروغ است." کشتمند وايي، چې څو نورې شپې هم په دغسې پوښتنو او ځوابونو سره تېرې شوې. په پېنځمه شپه د همدغې ودانۍ دويم پوړ د بندي عبدالقادر کوټې ته بوتلل شو. هلته اسدالله امين له قادر نه وغوښتل، چې خپلې خبرې واوروي. هغه کړه، چې "من و کشتمند پلان داشتيم که يکجا کودتا کنيم." کشتمند وايي، چې ما قادر ته سمدلاسه وويل، چې "قادر تو چرا برخود و من اتهام وارد مينمايی؟" قادر هم سمدلاسه ځواب ورکړ، چې "کشتمند بايد بدانی که اين ظالم ها مرا بسيار زده و شکنجه کرده اند، راه ديگر نداشتم." د کشتمند په وينا يو ډوله پوښتنو په شپو شپو دوام وکړ، ترڅو ده ته هم اسدالله سروري په امر او شته والی سره برق ورکول کېده، په دې ډول چې "سيم های تيلفون [برق] را در شصت هايم بستند و ترون دسته تيلفون را چرخاند." او ده سخت ټکان وخوړ. دده په وينا

بل ځل " جان محمد... بر روی سینه ام نشست، در عین حال دهنم را بسته کردند." او برق یې بیا چالان کړ، خو سره له دې هم مطلوب اعتراف د پوښتنو کوونکیو ترلاسه نه شو. بل ځل، چې په همدغه ډول تر برق لاندې ونیول شو، له ډېر درد نه یې لاس پورته کړ، چې غواړي اعتراف وکړي، خو بیا یې وویل چې "میخواهم که بمیرم و روی شما را دیگر نه بینم. نفرین زمین و اسمان و همه بر شما." بیا نو د سروري په حضور کې "انان چندین سگی ولگلد محکم بر سر، روی و کمرم کوفتند." په بل ځل یې په عین وخت کې په دوو برقي ماشینونو سره د پښو او لاسونو په ګوتو کې برق ورتېر کړ، چې اثر یې "دردهای وحشتنک تکان ها و خورد شدن ها بود" بیا نو کشتمند وایي، چې "سرانجام من مغلوب شدم و اظهار داشتم که خود هر چه میخواهند [بنویسند] و من پای آن امضا میکنم." خو پوښتنو کوونکیو غوښتل، چې ځوابونه هغه په خپل قلم ولیکي. له هغه وروسته و، چې ده په خپل قلم ولیکل، چې "در کودتا من تظاهرات اعتراضیه شاگردان و محصلان، پسران و دختران و مجموع روشنفکران و زحمتکشان را سازماندهی میکردم."

په پورته ډول د کشتمند د لیکنې له مخې له یو لړ پوښتنو وروسته، چې وهل ټکول او برق ورکول ور سره ملګري وو، هغه هغه څه ولیکل، چې ورنه وغوښتل شول، خو دده دغه ځواب د نورو ځوابونو په شان لنډ او په یوې ساده جمله کې ادا شوی. ده په "کودتا" کې هم خپله ونډه وړه ښوولې، په داسې حال کې چې دده په خپل قلم په هغو ځوابونو کې، چې په کالنۍ کې فوټوکاپي شوې خپله ونډه مهمه او لویه ښوولې ده. په دغو ځوابونو کې ده د نظامي او ملکي ملګرو په ګډون خپل د "کودتا" پلان ښه اوږد بیان کړی، البته څنګه چې کشتمند په مرګ سره ترټل شوی و،

اعترافونه یې د اعتبار وړ نه شي کېدی، خو کشتمند باید په خپل کتاب کې دد غې موضوع په مهمو اړخونو باندې پوره رڼا اچولې وای او په دې یې بسیا نه وای کړې، چې "رژیم بخش از سوال ها و پاسخ ها را که بنفع خود تشخیص کرده بود، منتشر ساخت." د کشتمند دغه لیکنه هم رښتیا نه ده. رښتیا دا ده، چې دده د هغه وخت ځینې ځوابونه دده له هغو ځوابونو نه، چې په کتاب کې یې راوړي، ډېر اوږده دي او د "کودتا" په اړه یې اوږده لیکنه کړې. دد غه تفاوت یا دغه دوه ډول توب له امله د هغه د اوسنیو ځوابونو په اړه شک پیداکېږي، په تېره چې دا هم په نظر کې ونیول شي، چې دغه ځوابونه یې 24 کاله وروسته له خپلې حافظې نه بیان کړي، هغه هم په یقیني ډول چې د غه کارګران څه چې په واقع کې ناشونکي دي. داسې ښکاري، چې هغه څه چې کشتمند اوس په خپل کتاب کې ددغې موضوع په اړه راوړي،. ددې لپاره راوړي چې خپل دریځ په حقه وښيي، نه دا چې د واقعیت بیان وکړي. دغه لیکنه دغه شک نور هم پیاوړی کوي، چې دی وایي په اعترافونو کې یې په "کودتا" کې د عبدالقادر، محمد رفیع، شاهپور او میر علي اکبر له نومونو سربېره "دوه درې" نور نومونه هم ذکر کړي، حال دا چې هغه "دوه درې" نومونه، نه بلکې یوولس نومونه دي.

د کشتمند له کتاب نه دا هم جوته ده، چې نور مهم تورنان تر ده نه زیات کړول شوي، چې په هغو کې یو هم محمد عثمان هاشمي د کابل پوهنتون د طب پوهنځي استاد و. هاشمي له خپل بندي کېدلو نه یوویشت کاله وروسته په کال 1999 کې د "فرار از کام مرگ" په نامه کتاب خپور کړی او په هغه کې یې د خلقي دورې په زندانونو کې خپلې شخصي تجربې، لیدنې کتنې او اورېدنې راوړي او خپل تعبیرونه او تفسیرونه یې پرې اضافه کړي دي. کتاب یې په 350 مخونو

کې د ناول په شان کښلی او د پېښو نېټې یې هم نه دي ورکړي. غټه ځانګړتیا یې دا ده، چې دی په خپل دغه ناول ډول کتاب کې یواځې له بندیانو او له هغو سره د چاروواکیو له چلند نه غبړېږي. دا چې هاشمي په کومه نېټه له پوهنتون نه د صدارت ماڼۍ ته وړل شو، معلومه نه ده، خو هلته په هماغه اوله ورځ اسدالله سروري په داسې حال کې چې په کوچ باندې د هغه تر څنګ ناست و، ورته وویل چې "استاد قلم و کاغذ برایت میدهم، جریان را بدون کم و کاست برایم بنویس." او چې ده کړه "کدام جریان را؟" سروری "مشتش را پس برده چنان به بینی و دهنم کوبید که باصطلاح ستاره ها در روز روشن در نظرم مجسم گردید. ضربه آنقدر شدید بود که باوجود شکستن بینی درد آن را در همان لحظه احساس نکردم ولی جریان خون از ان پیراهن و پتلونم را کاملاً الوده ساخت." هاشمي وړاندې وايي، چې "بعد از ان اسدالله سروری مانند رهزنانی که به عجله و قبل از رسیدن کمکی دار و ندار شخصی را به یغما ببرد [ببرند] بجانم افتاد." بیا نو په خپله سروري د هغه شخصي څیزونه یانې د لاس ساعت، درې خود رنګه قلمونه، د سګرټو قطۍ او یو څه مقدار پیسې له هغه نه قبضه کړې. هاشمي نه یواځې فیروزه یي رنګه ګوتمۍ، درېشي او د تن کالي پاتې شول او بیا په یوې ټوټې رسۍ سره یې پښې او په بلې سره یې لاسونه وتړل شول. بیا سروري په خپله هاشمي له کوچ نه لاندې وغورځاوه "...با لگدهایش بجانم افتاد و بانگ میزد: حال برایت نشان میدهم." سروري وروسته "چون خرس های وحشی حمله نموده و با دو چنگالش گلویم را گرفت و با دو دستش، بروی مجرای تنفسی، طوری به فشردن پرداخت که تنفسم تدریجاً مشکل و مشکل تر گردد... وجودم رو بهٔ کرختی میرفت." سروري بیا له یو څو شېبو وروسته، چې خپله سټړتیا یې ایستلې وه، "...روی شکم من بالا شده

و به لگد کردن پرداخت." بیا یې امر ورکړ، چې هاشمي ته دې برق ورکړل شي. برقي آله یوه لاستي لرونکې صندوقچه وه، چې سیمونه به یې د چا د وجود په کوم ځای یا ځایونو تړل کېدل او د لاستي په څرخولو سره به برق ورتېرېده. سیمونه د هاشمي په پښو و تړل شول او برق ورته چالان شو. "شدت درد باندازه ی بود که خود داری از فریاد و فغان را ناممکن میساخت. اما دیری نگذشت که فریاد و فغانم فرو نشست و دیگر صدایی از من بلند نشد." دی دا هم وايي، چې "اولین باری بود که متوجه مرگ شدم، خاموشانه درد میکشیدم و خاموشانه ارزوی مرگ میکردم."له یو څه ځنډ وروسته، چې د صدارت چارواکي رخصت شوي وو، سروري له هاشمي نه پوښتنه وکړه، چې "با ولید حقوقی چه پلانی را طرح کرده بودید؟" له هاشمي نه د سروري دا دویمه پوښتنه وه. دی وايي، چې ما حقوقي له نږدې نه، نه پېژندہ، خو د هغه نوم مې اورېدلی و او چې دا مې په ځواب کې وویل "او یک بار دیگر با مشت و لگد بجانم افتاد و به سر و تنم آنقدر مشت و لگد حواله نمود که ممکن خودش هم از درد پا عذاب کشیده باشد. سلسله شوک های برقی دوبار اغاز یافت و یکبار دیگر رقص شیاطین به دور من بر پا شد."

سروري به په ځان تکره "د انقلاب" ټینګ پلوی او د مخالفانو مرګ کې د ښمن و، چې بندیان یې په خپله وهل. که یو څوک همدغسې هم وي، خو چې د یوې مهمې دولتي مؤسسې سروال وي، لږ تر لږه په خپله دغسې نه کوي، مګر دا چې په طبیعت کې وحشي ډوله انسان وي. د جنرال عزیز احمد عزیزي په نظر سروري په اصل کې همدغسې انسان و. ده "در برابر انهانیکه تصور میرفت تهدید و خطر برای انقلاب را بار بار می آورد بر خورد بیرحمانه و قاطع داشته تا حد نابودی آنها تصمیم میگرفت.(8)" د هاشمي په وینا سروري بل ځل له

میر علي اکبر سره کوټې ته ننوت او علي اکبر سمدلاسه غبرګ کړ، چې "این شخص دوکتور محمد عثمان هاشمي است. با ولید حقوقی پلان کودتا را طرح نموده بود، تا رژیم فعلی را از بین برده و در رژیم جدید ولید حقوقی به حیث رییس جمهور و محمد عثمان هاشمی بحیث معاون اجرای وظیفه نمایند." هاشمي د میر علي اکبر له قول نه دا هم وايي، چې "عثمان هاشمي از من دعوت نموده بود تا به آنها بپیوندم." په دې ډول هاشمي له ولید حقوقي او میر علي اکبر سره د حکومت پر ضد "کودتا" کې ښکېل وښودل شو. ولید حقوقي په پاچایي دوره کې د سترې محکمې مرستیال او یو پېژندل شوی حقوق پوه لکه میر علي اکبر یو پېژندل شوی طبي ډاکټر او د جمهوري روغتون سرطبیب او یو ملي شخص و. پښتو یې هم روانه ویله. دواړه په اګسا کې سخت کړول شوي وو. میر علي اکبر په داسې حال کې، چې په کوټه کې سروري ناڅاپه په ټلیفون کولو بوخت شو، "چنان وا نمود کرد که دیگر تحمل شکنجه و عذاب کشی برایش نمانده است." وروسته هاشمي ته دا هم معلومه شوه، چې "ولید حقوقی را تحت شکنجه های وحشیانه قرار داده بودند."

هاشمي ځان د ملي وحدت نهضت غړی ښيي، خو دی هغه کله د "حلقي" او کله "د حزب" په نامه یادوي. د غه نهضت د ثور له کودتا نه یوه میاشت وروسته د کابل پوهنتون د غو استادانو جوړ کړی و. سید عبدالله کاظم، غلام محمد نیاز، عزیز الله لودین، محمد داود یار، محمد امین فرهنګ او محمد اختر مستمندي. هاشمي خپل ځان او ضامن علي غرجی هم د هغه په مؤسسانو کې حسابوي. مؤلف صدیق فرهنګ ددغې ټولنې موخه "تنویر محصلان در باره سیاست ضد ملی رژیم و توسعه جویی شوروی در افانستان بود."[9] وروسته محمد ګل رومان چې د طب ډاکټر و، د محمد داود یار

په اعتبار دد غې ټولنې غړی شو. دا هغه وخت و، چې هاشمي له مير علي اکبر سره ليدلي او د هغه له "حلقې" سره يې د خپلې "حلقې" د يو موټي والي په اړه خبرې کړې او د غه جريان يې خپلو ملګرو ته څرګند کړی و، بې له دې چې نوم يې اخيستی وي. په د غې غونډې کې فيصله شوې وه، چې "ما حلقه مربوط به مير علی اکبر را از نقاط نظر خود مطلع سازيم و در صورتيکه با ما اختلاف نظری نداشته باشند، فعاليت های خود را مدغم نمائيم." هاشمي بې له دې، چې دغه "نقاط نظر" څرګند کړي، مؤظف شو چې د خپل نهضت اساسنامه به مير علي اکبر ته رسوي."

مير علي اکبر هاشمي ته ويلي و، چې "با حلقه هائيکه فعاليت های ضد دولتی دارند، از نزد يک به تماس ميباشد." علي اکبر دا هم ورته ويلي وو، چې "در اين حلقه ها تعداد زياد صاحبمنصبان اردو و يک عده آمرين ماموريت های پوليس شهر کابل [داخل] ميباشند." هاشمي ورته بيا وعده ورکړې وه، چې په هغه حال کې چې ملګري يې موافقه وکړي "... گروپ صاحبمنصبان مربوط خود را با هم معرفی نمائيم تا باهم در ترتيب پلان کودتا همکاری نمايند." دا چې دغه افسران څوک وو او دا چې هغوی يواځې له ده سره يا له نورو ملګرو سره هم اړيکې لرل، په دې اړه هاشمي څه نه وايي. هاشمي دا هم نه وايي، چې نورو نهضتيانو له کودتا کوونکيو سره ملګرتوب کاوه يا نه؟ د کودتا موضوع خو ددغې ټولنې له اساسنامې سره اړخ نه لګوي، چې هغه په اصل کې "تنوير" کول و. مهمه دا چې په کودتا يانې په قوت سره چې په معمولي ډول له هغه نه مراد نظامي قدرت وي، يو نظام چپه کول هغه هم د پوهنتون استادانو له خوا، چې ټول عمر يې په زده کړې او درس ورکولو تېر کړی وي، له يوه رومانتيکي خيال پرته بله مانا لرلی

نشي، مګر دا چې کومه غټه پیاوړې نظامي ډله یې ملګرې وي.
دد غه حکم رښتین توب د هاشمي له لیکنې نه هم معلومېږي، چې وايي "باوجودیکه من در اعترافاتم از هشت نفری که در ان شب اجتماع نموده بودیم، تذکر دادم ولی اسدالله سروری کوچکترین سوالی در مورد آنها و در مورد جلسات احتمالی دیگر ما از من ننمود." دده په فکر "...اسدالله سروري مطمین شده بود که این حلقه محدود بوده هنوز بسط نیافته است." سره له دې هم له محمد داود یار نه پرته، چې دمخه له وطن نه وتلی و، د ټولنې ټول غړي ونیول شول، که څه هم د حکومت پر ضد یې په کوم عمل لاس پورې کړی نه وو. هاشمي وايي، چې "سوال ها... بطور عموم در اطراف ارتباط با دوکتور میر علی اکبر و دوکتور ولید حقوقی می چرخید." ولید حقوقي د کودتا شخص نه و، خو څنګه چې په تېرو حکومتونو کې د یوه نومیالي محمدزي قانون پوه په صفت یو پېژندل شوی شخص او د دکتاتوری نظام او کمونزم مخالف و، اګسا زغملی نه شو. میر علي اکبر که څه هم د یوه لوی روغتون سرطبیب و، لکه چې دمخه ویل شوي د یو د ډګروال اصحاب الدین سیدي په وینا د هغه په ملګرتوب یې د کودتا لپاره د "صاحبمنصبانو او نورو وطنپالو" په جلبلولو پیل کړی و. میر علي اکبر د سیداګل غریبیار په نظر، چې د څرخي پله زندان کې یې پېژندلی و، دغسې یو حساس ملي افغان و، چې زور واک نظام یې منلی نه شو. دا چې میر علي اکبر او هاشمي ډېر وکړول شول، له دې امله به وچې د دوی موضوع له "تنویر" نه پورته د نظامي عمل کومې مرحلې ته رسېدلې وه. د سیدي او هاشمي لیکنې هم همدغه مفهوم ورکوي. داسې ښکاري، چې هاشمي له کومې نظامي ډلې سره اړیکې ټینګې کړي وو، خو دا معلومه نه ده چې هغه به د ملي نهضت په دستور وې. هر څه چې و، دی د همدغه ارتباط له

امله د بندي توب په لومړۍ مرحله کې، چې په صدارت کې و، د سروري له خوا د مرګ تر حد پورې کړول شوی و.

## بندیان د کورنیو چارو په وزارت کې

عثمان هاشمي په صدارت کې له دولسو ورځو وروسته له میر علي اکبر سره یو ځای د کورنیو چارو وزارت د دویم پوړ په یوې کوټې کې او علي اکبر په بلې کوټې کې واچول شو. هلته له هاشمي نه یوه ملکي هئیت پوښتنې کولې. پوښتنې به چې زیاتره شفاهي او کله تحریري وې، د شپې کېدلې. د تحقیق موضع بیا هم له میر علي اکبر او ولید حقوقي سره د هغه د ارتباط او کودتا په اړه وه. یو ځل سید داود تړون له هاشمي او میر علي اکبر سره د یوه بل په مخ کې پوښتنې وکړې او هماغه پخواني ځوابونه یې واورېدل. د هاشمي قول بیا نو "با برق و چوب بجانم افتادند، از شدت درد به خود می پیچیدم و از فریاد و فغان خود داری نمیتوانستم." خو دلته کړول کېدل تر هغو سپک و، چې په صدارت کې و، که څه هم دی د څلورمې شپې قصه په دې ډول کوي، چې "دردی که امشب از استعمال تلیفون (صندوقچه برق دادن) احساس میکردم شدید تر از دردی بود که از تیلفون اسدالله سروري احساس میکردم." دی دا هم وايي، چې "امشب صدای فریاد و فغان از اتاقهای دیگر بیش تر بگوش میرسید." په پای کې د تحقیق په شپږمه شپه د کورنیو چارو وزیر محمد اسلم وطنجار، اسدالله سروري او اسدالله امین د هاشمي کوټې ته ننوتل او وطنجار ورته وویل، چې "تو خود را به کشتن دادی. محکمه انقلابی حکم اعدامت را صادر نموده است." دا څنګه محکمه وه، چې د تورن په نشتوالي کې په هغه د اعدام حکم کوي؟ دا څنګه محکمه او چارواکي وو، چې تورن ته د اعدام حکم په شفاهي ډول اوروي، بې

له دې چې لامل یا لامو نه یې ورته ووا یي؟ له "انقلابي محکمې" نه به شاید د دوی مطلب دا و، چې هر هغه افغان، چې د خلقي حکومت مخالفت کوي، باید د هغې له لارې وځپل او حتی اعدام شي. د هاشمي د اعدام حکم شاید ددې لپاره و، چې هغه په زندان کې د اعدامېدو په وېرې سره شپې او ورځې په اندېښنه کې تېرې کړي. هماغه و، چې په سبا یې له پېنځو نورو سره، چې هغو کې یې ملګري، سید عبدالله کاظم او عزیز الله لودین هم وو. په یوه بس کې د عسکرو په ملګر توب سره د څرخي پله زندان په لومړي بلاک کې واچول او هاشمي یې اعدام نه کړ. د څرخي پله زندان ته د دوی سپارل په هغه ډول و، چې وروسته په پرچمي دوره کې موږ څلور استادان حبیب الرحمن هاله، محمد عثمان روستار او شکرالله کهګدای له صدارت نه د څرخي پله زندان دویم بلاک ته وسپارل شو، په داسې حال کې چې زیږې مو رسېدلې او رنګونه مو زېړ وو، خو موږ په جسمي لحاظ کړول شوي نه وو.

له بندي نه د پوښتنو کولو بله نمونه په ولسي جرګې کې د نورستان یو پخوانی وکیل محمد اسماعیل دی، چې د ثور له کودتا نه پېنځه میاشتې وروسته )سنبله 1357( له خپلو دوو وروڼو جنرال محمد صفر وکیل غرزي دکابل پخواني ښاروال محمد کبیر نورستاني او یو څو نورو خپلوانو سره ونیول شو او بیا اعدام شو. تر هغه دمه یو بل ورور یې د سپین زر شرکت پخواني سروال عبدالملک نورستاني بندي شوی وو[20]. له وکیل محمد اسماعیل نه د کورنیو چارو په وزارت کې د اګسا مرستیال عزیز اکبري او نورو په شفاهي ډول ډېرې پوښتنې کړې وې. ډېره مهمه پوښتنه دا ده، چې د خپل "پلان هدف" او دا چې د هغه په اړه یې له چا سره ارتباط نیولی و، بیان کړې. د وکیل ځواب منفي و، خو د یوې بلې کوټې بندي دارا خان نورستاني د هغو په مخ

کې وویل، چې وکیل په کابل کې خپل قومیان وهڅول، چې نورستان ته لاړ شي او د نورستان خلک د حکومت په مقابل کې د پاڅون لپاره اماده کړي. وکیل په ځواب کې وویل، چې دا یو بې بنسټه تور دی. بیا نو د وکیل په وینا "شخصی که مقابل من نشسته بود بپاخاست و سلی محکمی حواله ام کرد و دشنام داد." دی وایي، چې ما حوصله وکړه او ورته مې وویل، چې "دشنام دادن کار مرد نیست... خواهش میکنم دشنام ندهید." سره له دې هم هغه بیا دی وکنځه. نور نو د وکیل په وینا "من نفهمیدم که چه کردم؟ همراه دو دست چنان بر سرش کوبیدم که نقش زمین گردید... محافظین با قنداق تفنگ، مشت و لگد بر سرم ریختند. چشم گشودم شخصی برویم اب سرد می پاشید. پرسیدم، کجا هستم؟ گفت زندان دهمزنگ. سرم از چند جا سوراخ و چشمهایم ورم کرده بود. دیده نمیتوانستم، خوراک نیست و آگر باشد خورده نمیتوانم. بالاخره یکما سپری شد کم کم بحال آمدم. دیگر محبوسین برایم غذا و آب تهیه میکردند." څو اونۍ وروسته دی هم د څرخي پله زندان ته وسپارل شو.

د سلیم عقل په حکم که دغو نورستانیانو خپل ټبر د حکومت پر ضد د پاڅون لپاره هڅولای، لکه چې دغه تور پرې لګول شوی و، دوی باید له خپلو کورنیو سره نورستان ته تللي وای، خو دوی په کابل کې وو. حقیقت دا دی، چې د نورستانیانو له هماغه اول سر نه له خلقي حکومت سره نه لګېدله. یو دا چې دوی په مسلمانۍ ټینګ ولاړ وو، په داسې حال کې چې خلقي چارواکي د اسلام مخالف ګڼل کېدل. دوی د امیر عبدالرحمن په وخت کې اسلام منلی وو، یا پرې منل شوی و. بله دا چې له نورستانیانو نه ډېر خلک د نورستان له فتح نه تر دغه وخته پورې په کابل کې په ملکي او نظامي لوړو مقامونو ګومارل شوي وو، دوی د واکمنې کورنۍ ټینګ پلویان وو، لکه پخوا چې

قزلباشان د سدوزي کورنۍ او وردګ د امیر شېر علي د کورنۍ خاص پلویان وو. درېیمه دا چې خلقي چاروا کیو له نورستانیانو سره ز یږ چلند کاوه. لکه چې دمخه و یل شوي د کونړ د پېچ درې نورستانیان د هېواد له هغو او لو خلکو نه وو، چې د حکومت پر ضد پاڅېدلي وو. د وکیل محمد اسماعیل نورستاني او د کورنۍ نورو غړیو او نورو نورستانیانو نیول به ددې لپاره وو، چې نورستانیان ووېرېږي او په ملي سطح کې له پېژندل شویو لویانو نه محروم شي.

## مذهبي ډلې او اګسا

اګسا له مذهبي ډلو نه بې شماره کسان په تېره ملا یان، مولویان، پیران او داسې نور نیولي او له منځه وړي دي، حتی ځینې عادي افغانان هم د دیني وظیفو د اجرا په حال کې نیول شوي او له منځه وړل شوي دي. په هغه وخت کې زیره او د مذهبي وظیفو اجرا د بندي کېدلو سبب کېده، لکه اوس چې بې ږیرو او درېشي کړو افغانانو ته په ښه سترګه نه کتل کېږي.

په هر حال، هغه روحانیان او مذهبي پیران، چې د ثور له کودتا نه وروسته پاکستان ته واوښتل، ژوندي پاتې شول لکه د ګیلاني کورنۍ مشران او د تګاو میا ګلجان او داسې نور... هغوی چې دننه په وطن کې پاتې شول، ژوندي له خطر سره مخ کړو لکه مجددیان. په یوه روایت د ګیلاني کورنۍ مشر د شلمې پېړۍ په سر کې له بغداد نه افغانستان ته راغی او امیر حبیب الله ضیا یې ورته په سره رود کې مواجب مقرر کړل. دی چې د نقیب صاحب یانې د قوم مشر په نامه یادېده، د قادریه صوفي طریقې پیرو و، ورو ورو یې په خاص ډول په پښتنو کې نفوذ وکړ او په ننګرهار او پکتیا کې یې ډېر پلویان وموندل، خو دوی د مجددیانو پرخلاف له ملي سیاست سره علاقمن نه وو. د ثور د کودتا په وخت

کې سید حسن ګیلاني ددغې طریقې مشر و[11]. د شورویانو له یرغل نه وروسته دی او ورپرونه یې د ملي محاذ د تنظیم له لارې په ملي سیاست او جهاد کې پوره دخیل او فعال شول، چې دا یې د بحث ځای نه دی. دلته د غومره ویل په کار دي، چې دوی پراخ نظره، عصري او معتدل مذهبي مشران وو، چې په پېښور کې ډېر ملي او تعلیم کړي افغانان هم ورسره ملګري شول.

مجددیان په افغانستان کې تر ګیلانیانو نه اوږد تاریخ لري، په یوه روایت د مجددیانو مؤسس شیخ احمد سرهندی و، چې په کال **1564** کې پیدا شوی او د هندوستان په سرهند کې مړ شوی و. دی د مجدد الف ثاني په لقب یادېده، په دې مانا چې د مسلمانانو په عقیده له یوې اوږدې مودې یا زر کال نه وروسته دغسې یو مصلح هسک کېږي، چې اسلام اصلي اصلونو ته په رسولو سره نوی او پیاوړی کوي. )عیسویان یهودان یا د هغو ځینې فرقې هم په دې عقیده دي، چې له یوې اوږدې مودې نه وروسته له دو نه به یو مذهبي مصلح هسک شي او نور بهٔ وژغوري.( دد غه سرهندي یو لیرې ځای ناستی قیوم جان مجددي له هندوستان نه په نولسمې پېړۍ کې افغانستان ته مهاجر شو او د کابل ښار په شوربازار کې یې واړول او یوه مدرسه یې هلته پرانیسته. کورنۍ یې له هغه وروسته د شوربازار حضرت په نامه یاده شوه او په خلکو په تېره د ښار په کسبګرو او په غلزي پښتنو اوپه خاص ډول په سلیمان خېلو کې یې نفوذ وکړ. دغې کورنۍ په هرات، لوګر او غزنی کې هم څانګې وکړې[12]. په کابل کې دغه کورنۍ وروسته له شور بازار نه د قلعه جواد کلي کې هستوګنه شوه او هغه یې د خپلې طریقې مرکز وګرځاوه. څنګه چې مجددیان د خپلې نقشبندي صوفي طریقې په حکم، چې د نفوذناکې مذهبي ډلې په بڼه یې ساتنپالي کوله، په دولتي واکمنو او چارواکیو باندې فشار راوړ، چې د

شریعت په رعایت کې ټینګ وي، نو دوی د افغانستان په سیاسي ژوند باندې ډېر اثر کړی دی. تر ډېره حده پورې د دوی د مخالفت له امله و، چې د افغانستان لوی مصلح پاچا امان الله له افغانستان نه د تل لپاره په وتلو اړ شو او اصلاحي پروګرامونه یې په ټپه ودرېدل[13]. له هغه وخت نه د ثور تر کودتا پورې په داسې حال کې، چې مجددیانو په حکومت کې هم غټه ونډه لرله، دوی د ملتپالو او اصلاح او نویتوب غوښتونکیو افغانانو په نظر د پرمختګ او ملتپالنې مخالف ګڼل کېدل. صدراعظم محمد داود هم په همدغه فکر و. دی د یحیی خېلو د واکمنې کورنۍ لومړنی مهم غړی و، چې برالا یې همدغسې ویل. دغه فکر په خلقیانو کې هم قوي و. د همدغه فکر له مخې به و، چې خلقي چارواکیو د اګسا له لارې "شب جمعه 29 دلو 1357 به خانقاه مجددی به قلعه جواد حمله نموده و حضرت صاحب ضیاء المشایخ ابراهیم مجددي سجاده نشین طریقه نقشبندی را با اهل و عیال و اطفال و مریدان حاضر در خانقاه به طرز وحشتناک گرفتار نموده روانه زندان پلچرخی نمودند که تا امروز از زنده و مرده شان خبری نیست.[14]" د مؤلف فرهنګ په وینا د محمد ابراهیم مجددي ماشومان د کورنۍ له ښځو سره بندي شول او "در این حادثه جمعاً هفده نفر از خانواده حضرت شوربازار مفقود و بگمان اغلب اعدام گردیده که علاوه بر محمد ابراهیم مجددی چار پسر، و داماد و خواهر زادگان او هم جزان بودند.[15]" په همدغه وخت کې د کوهستان، هرات، غزني، ننګرهار او کندهار مجددیان هم ونیول شول، چې په غالب احتمال وروسته له منځه یوړل شول. د دوی ډېر نومیالي د هرات پخوانی سناتور عبدالباقي مجددي او د ننګرهار فضل احمد مجددي وو. دا چې ټول ټال څومره مجددیان له منځه وړل شوي دي، په یقین سره معلومېدلی نه شي. اټکلو نه سره

توپیر لري. ټول شمېر یې شاید د اتیا تنو په شاوخوا کې وي. دا چې دوی په څه تور ونیول شول، دا هم معلومه نه ده. دا هم معلومه نه ده، چې له دوی نه څه پوښتنې او په څه ډول وشوې؟ دوی د حکومت پر ضد کوم عمل هم نه وو کړی، که څه هم د هغه ټینګ مخالف وو. دغسې مرګکي ضربه په مجددیانو باندې په افغانستان کې بل هېڅ وخت حواله شوې نه وه. له دوی سره د نقشبندي طریقه هم په افغانستان کې وځپل شوه، لکه چې د کابل محمدزیان وځپل شول. نقشبندیان د لومړي ځل لپاره په کال 1888 کې په مزار کې، چې والي سردار محمد اسحاق یې د امیر عبدالرحمن په مقابل کې یاغي ګری ته هڅولی وو، له مېنځه وړل شوی و(16).

## پوځي واحدونه او بندیان

لکه چې دمخه ویل شوي، خلقي حکومت کوښښ کاوه چې پوځ خلقي کړي، په دې مانا چې له مخالفو افسرانو نه یې پاک او خلقیان یې افسران کړي. ددغه مقصد لپاره یې په پوځ کې ګوندي منشیانو او سیاسي آمرانو ته بېحده واک ورکړی و. تره کي به ویل، چې د ګوندي منشیانو امر دده د امر په شان د منلو وړ دی. دا چې له دغه واک نه په ټولو پوځي قطعو کې کار اخیستل وی وي، په یقین سره معلومه نه ده. په دې اړه د ننګرهار او د خوست د فرقې په اړه معلومات ترلاسه شوي دي. له دغه واک نه د خوست د فرقې په نهه پنځوسم کنډک کې، چې د ډیورنډ کرښې ته نږدې د غرومبي په مېرې کې او د ننګرهار فرقې په یو اتیاوم غونډ کې، چې په چپرهار نومي دښتې کې ځای پرځای و، پوره کار اخیستل شوی دی، چې د هغو په اړه مې د څرخي پله زندان کې له بندي افسرانو نه معلومات ترلاسه کړي وو. د غرومبي په کنډک کې د 1357کال له جدي نه د بل کال تر سنبلې پورې یانې د نهو میاشتو په اوږدو کې د خوست له

فرقې نه یو سل او یا تنه نظامي افسران د خیر محمد په امر، چې د فرقې سیاسي آمر و، له منځه وړل شوي دي. په دوی کې یو شمېر ملکي کسان هم شامل وو. د خوست د فرقې قوماندان دغه خیر محمد د 1357کال تر جدي پورې تر کنټرول لاندې نیولی و، خو دی په دغې میاشتې کې بل چېرې تبدیل شو او خیر محمد ځان ازاد ولید او په وژلو یې پیل وکړ. خیر محمد، چې فراه نه و یو مفعول بد اخلاق ګوندي و.

په ننګرهار کې د پوځي فرقې یو اتیاوم غنډ، چې د شاهمرد خان شګو ته ورڅېرمه په چپرهار نومې دښتې کې ځای پر ځای و، هم د غړومبي د مېږې په شان د مخالفو افسرانو د وژلو ځای ټاکل شوی و. مخالف افسران هلته وروسته له هغه په ډېر شمېر له منځه یووړل شول، چې حکومت په فرقه کې د هغو د پاڅون له نقشې نه خبر شو او هغوی یې پخوا له دې، چې په عمل یې لاس پورې کړی وي، ونیول خو د فرقې قوماندان بهرام الدین وژل شوی و. د یوه بندي خلقي شېرزاد له قول نه روایت دی، چې "نابېره په لسګونو د فرقې افسران او د انضباط د ټولي عسکر یې بندي خانې ته رادننه کړل. له هغې جملې نه پېنځه څلوېښت کسان له منځه یووړل شول. په دغو بندیانو کې د سور جرنیل زوی هم و." شېرزاد دا هم وایي، چې "د هغه د وژلو لپاره لوی درستیز یعقوب له کابله راغی او د سور جرنیل زوی یې، چې د توطیې اصلي محرک و، بې پوښتنې په توپنچه وویشتی او مړ یې کې."[17]

په ننګرهار کې د وژلو لپاره درې ځایونه ټاکل شوي وو: د چپرهار دښته، شاه پلنګ تالار او کمکی خیبر. د چپرهار دښته کې بې شمېره وژنې شوې دي. د وژلو طرز هم وحشتناک و، دغومره وحشتناک چې د باور وړ نه ښکاري. تورنان به د ننګرهار د فرقې له هر نظامي واحد نه هلته وړل کېدل، لکه په خوست کې چې د

غړومبي د ښتې ته وړل کېدل. له تور نانو نه به اول چېړ ته په فرقه کې شفاهي پوښتني کېدلې او ډول ډول جزا ګانې به ورکول کېدلې. بیا به تورن بندي په داسې حال کې، چې پښې او لاسونه به یې تړل شوي وو، د چېر هار دښتې ته امبولانس یا هغه ته ورته په کوم بل ډول وسیلې کې وړل کېدل، چې څوک د هغو د وژلو فکر ونه کړي. بندي به هلته د یوه کمره په ژی درول کېده، چې لاندې به یې دمخه په غاښه وررو سره کنده کې ندل شوې وه. د بندي دواړو خواوو ته به دوه کسه چړکی په لاس ولاړ وو. بندي ته به ویل کېده، چې: "خدای یا نور محمد تره کی؟" که بندي ویل، چې خدای ج، چړکی به یې په نس ورخښېدله او پکې به تاوېده راتاوېده، بیا به بندي کندې ته غوزارېده او په خپلو وینو کې به رغړېده او په داسې حال کې، چې نیم ژواندی به هم و، خاورې به پرې اړول کېدلې. که بندي به د پوښتنې په ځواب کې نور محمد تره کی ویل، ژغورل کېده به او بیا به تر روزنې لاندې نیول کېده. ویل شوي، چې هغو چې د نور محمد تره کي نوم اخیستی وو، په شمېر کې ډېر وو. کریم فکور، چې ملکي ګوندي او د ننګرهار پوهنتون د طب د پوهنځي سروال و، د غو بندیانو په وژلو کې لوی لاس درلوده. فکور د پرچمي رجیم له پیل نه د 1366کال تر اسد پورې په څرخي پله زندان کې بندي و.

## د ترین کوټ بندیان

د ارزګان ولایت مرکز ترین کوټ ښار د بندیانو په اړه د حکومتي چارواکیو چلند یو څه معلوم دی، خو د نورو ولایتونو د بندیانو په اړه دغسې معلومات نشته، چې بیان یې دلته وشي. د ارزګان په اړه د غه لیکنه له محمد حسن سهاک سره په ټیلیفوني مرکې سره او د اسدالله نوابي د کتابګوټي د "سرګذشت زندان" له مخې برابره شوې ده. سهاک د خلقي حکومت په وخت کې همدلته د

مرکزي احصائيې مدير او نوابي چې په خپله د ارزګان ښوونکی و، د ترین کوټ بندي و.
ارزګان د پرېمانه اوبو، ښو زراعتي ځمکو، ښو مېوو او ښې اب او هوا په لرلو سره يو ډېر سمسور ولايت دی. په هغه وخت کې، چې دايکندي او شهرستان هم ورپورې تړلي وو، يو لوی او مهم ولايت و. خلک يې په سلو کې تر شپېتو زيات پښتانه او نور يې هزاره وو. دغه پښتانه، چې زياتره يې نورزي، اڅکزي، پوپل زي، بارکزي، الکوزي، غلجي او نور وو، د وزيرو او مسيدو په شان زړه ور، ټينګ او ازاد طبع دي. د 1357کال په اخره کې د دوی او حکومت ترمېنځ اړيکې تر دې حده پورې ترخې شوې، چې حکومت بيا تر پايه پورې په ټول ارزګان حکومت ونه شو کړی. يواځې د ترين کوټ ښار ورته پاتې و، چې په جګړه پروت دی. په دغه حال کې، چې ارزګانيان بندي کېدل، د ترين کوټ په زندان کې ورسره بې‌خي زيږ چلند کېده.
د ارزګان د اول خلقي والي نظام الدين شريک په وخت کې له خلکو سره ډېر زور زياتی کېده، په تېره د تېرې او دهراود له خلکو سره. په همدغه وخت کې، چې د ملک حسن هزاره له کور نه وسلې ووېستل شوې، هغه له يو څو نورو سره له مېنځه يووړل شو. د ارزګان هزاره بيا د خلقي حکومت تر پايه پورې ارام وو.
دويم والي بيت الله غرنی، چې پوځي پيلوټ او د پکتيا و، له خلکو سره ښه چلند کاوه، خو د دريم والي قربان خېل په وخت کې له خلکو سره بيا زيږ چلند کېده، ان تر دې چې ځيني په بې‌لو نومونو اعدام شول. په ارزګان کې اول د خوني او چارچينو پښتانه د حکومت په مقابل کې جګ شوي وو. په همدغه وخت کې به و، چې د دهراود پښتانه چې زياتره يې نورزي دي، پاڅېدل او حکومت صاحبجان صحرايي له يوې کماندويي ډلې سره د هغو د ايلولو لپاره واستوه، خو هغه

ددې پرځای چې له خلکو سره د روغې جوړې لار ونيسي، د زور لار ونيوله. که څه هم دی په خپله د دهرواود د نورزی و. ده په ارزګان کې هغسې بې رحمي وکړه، لکه د برېښنا او اوبو وزير منصور هاشمي، چې له خپلو بدخشانيو سره وکړه. دی هم د صاحبجان غوندې په لوړو اختياراتو سره بدخشان ته استول شوی و. په همدغه وخت کې به و، چې حکيم ګوندي د يوې وسله والې ډلې په سروالۍ سره د کوروتو د پلټلو لپاره د سيند اغاړه ترين کوټ ته لاړ او هلته يې په يوه ماجت کې په خلکو غږ وکړ، چې "څوک غواړي جنت ته ولاړ شي؟" دغو صاف زړو ناريې کړې، چې "موږ غواړو جنت ته ولاړ شو." بيا نو د ګوندي په امر ګولۍ پرې واورولې شوې او ټول يې ووژل شول. پښتانه بيا تر دې حده پورې وپارېدل، چې هغه وخت چې والي قربان خېل د ولايت د څانګو له سروالانو سره د نېش ولسوالۍ ته لاړ، خلکو ناڅاپه پرې ودانګل او ټول يې له مېنځه يووړل. د بل والي تر راتګ پورې د پوهنې مدير شمله دار چې د څو اونيو په موده کې د والي کار کاوه، په خلکو ډېره بې رحمي وکړه. د ترين کوټ هټۍ والو خپلې هټۍ د اعتصاب په توګه وتړلې، خو خلقيانو هغه په زور پرانېستلې او ټول شيزونه يې چور او د کندهار په ښار کې خرڅ کړل. له هغه وروسته و، چې له ترين کوټ پرته نور ټول ارزګان د حکومت تر پايه پورې خپلواک و. د نېش له تراجيدۍ نه وروسته، چې الله داد طوفان د ارزګان والي شو، په ټول ارزګان کې يواځې ترين کوټ حکومت ته پاتې و.

د ارزګان ناکراري په اصل کې ددغو "سرو خلقيانو" د هغه چلند نتيجه وه، چې له هغو خلکو سره يې کاوه، چې دوی ورته "فيوډال"، "ارتجاعيون"، "د امپرياليزم زامن" او "امپرياليزم نوکران" ويل او د ښمن يې ګڼل. اسدالله نوابي د هغوی دغه چلند په خپل کتابګوټي کې

بيان کړی، په نامه د "سرگذشت زندان، په افغانستان کې د سره استعمار د مظالمو څرک"[18]. نوابي د ارزگان د ښوونځي ښوونکی او په ترين کوټ کې بندي و.

اسدالله نوابي وايي، چې په لار کې روان و، چې خلقیانو ونيوه او په جيپ کې يې واچوه، چې په هغه کې يې اويا کلن حاجي عبدالقدوس دمخه تخته کړی و. څنګه چې د ترين کوټ په محبس کې "زولانه او ولچک خلاص شوي وو" دوی دواړه يې په يوه زنځير سره په دې ډول وتړل، چې "زنځير يو سر يې زما په غاړه کې او بل سر يې د حاجي عبدالقدوس په غاړه کې واچوی او قلف يې کړ." هرڅه چې د دوی په جبونو کې وو، هغه ترېنه واخيستل شول. نيونکو بيا د محبس په آمر باندې غږ کړ، چې "دغه د امپيريلزم نوکران... زندان ته ننباسئ." خو د محبس آمر، چې د نوابي د کورنۍ مخلص و، له ده سره په پټه مرسته کوله. لومړی غټه مرسته يې دا وه، چې کور ته يې ځواب واستوه او له کور نه بستره، روی جايي او نور ور ته راوړل شول. آمر دوه خبرې هم ور ته وکړې، يو دا چې "هر کله چې له ما سره د محبس ساتنمنان ملګري وي، نو د کرامت بشري خبرې په خوله مه اخلئ." بل يې دا ورته وويل، چې "په دې محبس کې ستاسې غوندې څلور سوه تنه بې ګناه دغسې شکنجه دي، لکه تاسې او هره شپه شل شل تنه بې موجبه په شهادت رسوئ يا له ډېرو وهلو ټکولو په حق رسېږي." د بنديانو مړي په هغو کندو کې اچول کېږي، چې په بولدوزرونو سره يې دمخه کېندلي وې. نوابي وايي، چې د شپې د نهو بجو په شاوخوا کې "يو سړی يې زمونږ د اطاق دروازې ته نژدې راوستی، عسکر ور ته وويل دلته ويده سه. هغه ور ته وويل، چې: هوا ډېره سړه ده ما اطاق ته دننه ورولــه. عسکر )ور( باندې خشمېد او په ډېر قهر يې ور ته وويل: دلته

پریوزه که نه اوس به دې کشتارګاه ته بوځم." د محبس بامونه اخېږ شوي نه وو، سوري یې هم لرل او بندیانو ته تلتک یا شال هم نه ورکول کېده. ځینو ته، چې له کورونو نه بسترې استول کېدلې، له تلتک نه پرته چې بندي ته ورکول کېده، نور یې تحویلخانې ته وړل کېدل. له دې امله د ترین کوټې په محبس کې بندیانو له سړو نه او داسې هم له ولږې او تندې نه سر ټکاوه، لکه چې د بندي عبدالقیوم شاغاسي له دغې وینا نه ښکاره ده، چې "تر ابلې شپې پورې خو یې په لوی محبس کې په یوه کوټه کې اچولی وم، سترګې یې راته تړلې وې، د شپې او ورځې فرق مې نه سوای کولای، له ډېره یخه مې ټول وجود درد کوي، تراوسه پورې مې څه غذا هم نه ده خوړلې."
له بندیانو سره د ساتمنانو چلند زېږ وو، بندي حاجي محمد صدیق دیناخیل بېرون د دیوال ترخنګه ناست و، په پښو کې یې زولنې وې او مخ یې هم پټ و. نوابي دی د اوداسه کولو په وخت کې ولید. هغه وغوښتل، چې څادر له خپل مخ نه لیرې کړي، خو "عسکر چې یې سرته ولاړ و، د توپک په قنداغ یې د اوږو په مېنځ کې ووهه ]او[ په خشم یې ورته وویل، چې: پټ کړه مخ دې که نه اوس به دې مردار کړم." بیا یې دی هم د نوابي په کوټه کې تخته کړ. هلته یې بیا خپله قصه په دې ډول نوابي او نورو ته بیان کړه. "ماښام په کور کې له خپل فامیل سره ناست وم، یو نفر معلم چې زما همسایه دی او په ځمکه باندې څه لانجه ورسره لرم، د دوو مسلحو عسکرو سره راغی. دروازه یې راوټکوله، زه چې ورته راووتم، نه پوښتنه نه ګروېږنه، لغتې او سوکان یې راته ونیول. په موټر کې یې واچولم، محبس ته یې راوستم. په یوه څادر کې مې څلور شپې تېرې کړي دي او په همدغه دوران ] کې[ یکي یوه ډوډۍ یوه عسکر د پنځوس افغانۍ په مقابل راته راوړه، هغه مې خوړلې ده. بیا د شې څکه رابانديې حرامه

ده." د بندي حاجي عبدالعظیم په وینا، له
کورونو نه چې بندیانو ته پخه ډوډۍ راوړل
کېدله، نیمه به یې عسکرو خپلوله.
د نوابي د زندان کوټه ښه لویه او دفتر ته
نږدې وه، له دې امله مهم بندیان هلته استول
کېدل... یو ځل درې کسه )ملا جان، ملک حمد
اورزګانی او میرزا عبدالرحمن( یې پکې دننه
کړل. وروستي وویل، چې "له لوړې مروۍ، نن
څلورمه ده چې په ژبه مو شی نه دی ایښی." دوی
په بد حال کې و. "د مخ غوښې یې په امبور ځینې
شلولې وې، چې لمنې یې پورته کړې او وجود یې
راښکاره کړ، له نوکه تر سره تک شین یو ځای هم
روغ نه و. کمیسونه او پرتګونه یې د وجود په
زخمونو باندې نښتي وو. لاسونه تک شنه، سترګې
پړسېدلې." اخر په کومه ګناه؟ دوی وویل، چې
"په هېڅ شي خبر نه یو، د شپې تقریباً لس بجې
وې چې له کورونو نه یې راوایستلو، په ولسوالۍ
کې یې یو ځای کړو. یو ملحد ولسوال دی، چې فضل
ربي نومېږي او د ترین دی. موږ ته یې وویل،
چې: د امپریالزم زامنو! تاسې ولې تخریب کوئ.
میرزا عبدالرحمن خپلو خبرو ته په دې ډول دوام
ورکړ: "یوه سړي تر لاسو او بل تر پښو چپه
ونیولو او بل سړي شا را لوڅه کړه، لښتې یې
را ته ونیولې. دوه شپې یې هغه قیامت راباندې
جوړ کړی و، چې د ځمکې اسمان لوری یې راڅخه
ورک کي." ده دا هم وویل، چې ولسوال په همدغه
وخت کې په غرور سره وویل، چې "خپل خدای؏ ته
ووایه، چې تاسې ته له موږ نه نجات درکړي." په
درېیمه ورځ یې امبور راواخیست او په ډېره بې
رحمۍ یې دغه حال راباندې جوړ کړ، چې وینې
یې." نوابي وایي، چې په بله ورځ یوه عسکر
ورته وویل، چې "ستاسې هغه درې رفیقان خو یې
برایي د کلاشنکوف په ضرباتو آبل جهان ته
ولېږل."

نوابي د يوه پېژندګلوي رحمت الله له خولې د محمد اکبر خان قيصه په دې ډول کوي، چې "يوه شپه هم ظالمانو ارام نه يم پرې ايښی. هره شپه يې زه تر لښتو، لغتو، سوکانو لاندې وم. آخر يوه شپه د ملحد او خدای ناترسه والي په سرکردګۍ کې، چې يو بې ناموسه مدير تعليم او تربيه ]کليوال وردګ[ هم ورسره و، يوه هيئت ته يې پېش کړم. څو تنه زندانيان يې نور هم راوستلي وو. اور يې بل کړی وو، سيخان يې پکې ايښي وو... والي... په ډېر قهر ماته وکتل. ويل: دا د امپيريلزم اصلي بچی دی؟... عسکر زما پايڅه راپورته کړه او ده ]د پوهنې مدير[ ظالم مې په دا پسته غوښه کې سيخ چخ کې. نور نه يم پوه سوی. له خولې مې يوه چيغه ووته او بې سده شوم." رحمت الله د يوه بل بندي قيصه کوي، چې والي د هغه په مخ کې ورته وويل، چې "ښه ته نو حال نه ورکوې؟" بندي ورته کړ، چې "حال وای نو ما به درکړی وای، اوس په بېګناه خلقو لاس نه سم نيولای." بيا د پوهنې مدير د والي په امر "له اوره يې څو سکروټې راجلا کړې او عسکرو ته يې څه وويل. هغو پرتوګ څيرنې وکيښ او په اور يې کېناوه، خو سړی نه باندې کښيندستی. دوی لغتې او چپلا خې ورته ونيولې. په څلور پنځو کسو يې په زوره په اور کې نوی، خو په اخ او ډب کې اور هم سره تيت و پرک شو. ]د پوهنې[ مدر سور سيخ باندې راواخيست او په کوناټو يې داغونه ورکړل. سړی لويې لويې نارې وهلې او بې سده سو." رحمت الله وويل، چې معلم غلام محمد او حاجي عبدالقادر يې "زما په مخ کې په اور باندې بالا کېنوه او د کوناټو او ورنو د غوښو بوی په ټول دفتر کې خپور سو." دی دا هم وايي، چې "هره ورځ دغه حال و."

نوابي او ملګرو يې له ګاونډۍ کوټې نه د بنديانو وش او وی هم اورېده. "له نيمې شپې

وروسته مې غوږو داسې اوازونه واورېدل، های مې سوم، های کلمې مې پرې سوې، های څوک مسلمان سته، چې یو غړپ اوبه راکي. دا هغه وخت و، چې میرزا عبدالرحمن د دوی په کوټه کې و او هغه نیمه شپه د نورو په مشوره د بندي بسم الله په اوږو یوه سوري ته جګ شو او په هغه بندي باندې، چې معلم ګل محمد نومېده، غږ کړ چې "کله یې وهلې اوبه مه څکه، ځکه چې درته ښې نه دي." نو څنګه چې هغه ډېر په عذاب و، وویل چې "په لحاظ د خدای لږ اوبه راکی. زه ]زه یې[ داسې نه یم وهلی، چې ژوندی پاتې سم. زما کولمې شلېدلې دي، زما په لړمانه کې یې د پایپ... په ذریعه ایشېدلې اوبه داخلې کړي دي. ژبه مې خوړینه ده، حلق مې خوړین دی." نوابي وایي، چې یو ګیلاس اوبه مو په زحمت او ویرې ورور سولې، خو په هغه وخت کې د معلم ګل محمد ساه ختلې وه.

د ترین کوټ زندان له بندیانو نه ډک او ډېر ناپاک و. "نو د انساني وینو او غلاظت له وجې نه داسې تعفن و، چې انسان ساه نسوای اخیستای." د نوابي له کتابګوټي نه ښکاري، چې په هېڅ بندي باندې کوم خاص او مشخص تور نه و لګول شوی. "چاته به یې د امریکا زامن ویل، چاته د انګلیس او څوک به یې د مرتجعینو او فیوډالو او امپیریلزم د زامنو په نومونو یادول. زندانیان به ورته حېران وو، چې دا اوس دوی څه وایي، ځکه چې هغه ]هغوی[ ساده مسلمانان وو. نه د مرتجع په معنی پوهېدل او نه د فیوډال او امپیریلزم." له همدې امله به و، چې د محبس خورد ضابط چې له کوم بندي سره "یو ښه بوټ، واسکټ، کرتی، ساعت، قلم یا بل داسې شی ولیده، نو هغه به یې هم ځېنې واخیست. بیا به یې ورته وویل، چې ته فیودال یې، ځان ته به تر دې هم ښه واخلې، دا یې زما."

## د څرخي پله محبس بنديان

لکه چې دمخه ويل شوي، نه په خلقي او نه په پرچمي دوره کې د ټولو بنديانو شمېر معلومېدلی شي، حتی د ځينو زندانونو بندي وانانو د خپلو بنديانو حساب هم ورکولی نه شو. د مزار د محبس قومندان د 350 بنديانو باقي و، لکه چې سيد عبدالله هم د څرخي پله زندانيانو باقي وو. ددې مانا دا ده، چې د دوی بنديان د کوم چارواکي په شفاهي دستور له مېنځه وړل شوي، بې له دې چې د هغو د بندي توب لاملونه او يا حتی د هغو هويت ثبت شوی وي.

په عين حال کې د خلقي حکومت په وخت کې په کابل کې اوازې وې، چې لاس او پښې تړلي بنديان د مقر او قلات ترمېنځ غرو کې د هزاره جات په خوا کې له الوتکو نه لاندې غورزول شوي دي، لکه چې د هندوکش له پاسه او داسې هم د امو په سين کې بنديان د منصور هاشمي په دستور غورزول شوي دي. د وروستي په هکله په هغه وخت کې زما يوه بدخشاني محصل دغسې ويلي و. په دغسې حال کې ممکنه نه وه، چې په خلقي دوره کې د له مېنځه وړل شويو بنديانو شمېر معلوم شي، خو د بنديانو غټ مرکز کابل، په تېره د څرخي پله زندان و.

لکه چې دمخه ويل شوي دي، د خلقي حکومت په وخت کې په کابل کې د دهمزنګ، د کابل ولايت د کورنيو چارو وزارت، د صدارت او څرخي پله له زندانونو نه کار اخيستل کېده. د ښار له پېنځلسو ناحيو نه هم د زندان په توګه کار اخيستل کېده. په ارګ، صدارت او کورنيو چارو وزارت کې به له بنديانو نه پوښتنې کېدلې، حتی دغسې کسان هم کړول شوي دي لکه د کابل پوهنتون پخوانی سروال، د صدراعظم مرستيال او د پلان وزير صمد حامد، چې په رښتين توب سره يې حکومتي کارونه کړي او د هغو له امله د يوه

ملي شخصیت په توګه پېژندل شوی شخص و. نامعلوم شمېر بندیان په کړول کېدو او وهلو سره مړه شوي دي. د څرخي پله زندان په عمومي ډول د بندیانو د ساتنې لپاره خاص شوی و.

د څرخي پله محبس تر ټولو زندانونو لوی او کانکریټي دی، د محمد اسحاق جبران د معلوماتو له مخې دغه زندان په 125 جریبه (25 هکتاره) ساحه کې د څرخي پله ختیځې خوا د ښته د ولسمشر محمد داود په نوښت او د هغه تر څارنې لاندې د هندي متخصصانو او مهندسانو په نقشه او مهندسۍ ودان شوی دی. په خلقي دوره کې یواځې دوه بلاکه (لومړی او دویم) د استفادې وړ وو، هغه هم پوره نه. په پرچمي دوره کې یې اوه واړه بلاکونه په کار ولوېدل. هر بلاک په جګ دیوال سره چارپېر او د بېل زندان په شان دی. له ټولو بلاکونو نه بیا یو ډېر جګ دیوال راتاو شوی، په دې ډول چې ټولو بلاکونو ته یې د یوې ټینګې برجه ورې کلا بڼه ورکړې ده. هر بلاک څو پوړه لري، د ځینو کوټې یې برابرې او د ځینو یې ښې لویې دي، چې په یوه اړخ کې وړې کوټې قطار پرتې دي. ویل کېږي، چې د غه وړې کوټې په اصل کې د بندیانو او نورې یې د کارخانو لپاره په نظر کې نیول شوې وې، خو په خلقي او پرچمي وخت کې په هرې لویې کوټې کې تر دوو سوو پورې بندیان هم اچول کېدل. دریم بلاک دغومره لوی سالونونه لري، چې په هر یوه کې یې په سلګونو بندیان ځایېدلی شي. هره وړه کوټه یو متر او اتیا سانتي متره پلنه او دوه متره اوږده ده او هره یوه کوټه یواځې د یوه بندي لپاره په نظر کې نیولې شوې وه، خو په پرچمي رژیم کې د بندیانو شمېر دومره ډېر شوی و، چې په هرې یوې کې تر شپږو بندیانو پورې هم اچول کېده. زه په خپله هم په یوې کې تر ډېر وخته پورې وم. په دې ډول د څرخي پله زندان نهایي ظرفیت تر پېنځوسو زرو نه هم ډېر کېدای شي. د همدغه

ظرفیت له امله به هم و، چې خلقي او پرچمي چارواکیو ددې پروا نه کوله، چې که بندیان هر څومره ډېر هم وي، دوی یې د کلونو لپاره بندي ساتلی شي، خو بندیان دلته له غېر صحي او نمجنو کوټو او خسکو نه په امان دي. په هغه سربېره بندیان په لویو کوټو کې ګرځېدلی هم شي او څنګه چې د کوټو چتونه ښه لوړ او حجم یې هم ډېر دی، بندیان یکې د ضیيق توب او د هوا د کموالي احساس نه کوي، لکه د ښار په زندانونو کې یې چې کوي، خو په خلقي دوره کې تشنابونه فعال نه وو او د هر بلاک په پراخ انګړ کې له لرګیو نه جوړو مبرزونه درول شوي وو او څنګه چې بندیان ډېر او په کوټو کې قید وو، د طبیعي حاجت رفع غټه درد ناک او حتی سپکونکې ستونځه وه. بندیان په شپه او ورځ کې د رفع حاجت لپاره دوه ځله بېرون وتل او مجبور وو، چې د غو ناولو او بوی ناکو مبرزو ته د ننوتلو لپاره قطار ودرېږي او خپل وار ته انتظار وباسي. بندیان دننه په کوټو کې مجبور وو د طبیعي حاجت رفع لپاره له پلاستیکي خلتو نه کار واخلي او هغه بیا انګړ ته د وتلو په وخت کې په مبرزونو کې واچوي. غېر له هغه هم د طبیعي حاجت رفع باندې قید او د محافظانو سلوک بندیان سخت زورول. د یوه بندي په وینا "یکطرف تعداد نفر زیاد بود زود زود برای شان نوبت نمیرسید. از جانب دیگر زود خلاص نمیشدند... ان عجب صحنه بود از یک طرف محافظین عجله میکردند که زود خلاص شوند و از طرف دیگر زود خلاص شدن ممکن نبود. یک هیاهوی و کش و گیری برپا میشد. زندانیان بیچاره بی جهت شلاق میخوردند و دشنام می شنیدند. دیدن چنین صحنه ها خیلی دلخراش و تاسف انگیز بود."[19]

لومړی بلاک، چې تر دویم بلاک نه ووړ و، د مهمو بندیانو لپاره خاص شوی و. د لومړي پوړ ختیځه خوا یې د کوټه قلفي بندیانو لپاره وه.

د پخوانیو حکومتونو وزیران، لوړ رتبه نظامي افسران، والیان، د پوهنتون استادان او دیني عالمان په همدغه بلاک کې اچول شوي وو. د سر په کسانو کې صدراعظم نور احمد اعتمادي، د صدراعظم مرستیال او د پلان وزیر صمد حامد، د دولت وزیر عبدالمجید، د عامه روغتیا وزیر عبدالله عمر، د اطلاعاتو او کولتور وزیر عبدالرحیم نوین، د پوهنې وزیر عبدالقیوم وردګ، د کرنې وزیر عزیز الله واصفي، د طلاعاتو او کلتور وزیر نامتو جورنلست او مؤلف صباح الدین کشککي، د فواید عامې وزیر محمد کبیر، د دولت وزیر غلام علي ائین، د ولسي جرګې مرستیال عبدالاحد کرزی، د پروان والي عبدالغفور وصیل وردګ، د لوګر والي حضرت میر، د ستم د ډلې مشر طاهر بدخشی، عبدالغفور روان فرهادي، شاه جهان احمدزی، عبدالقیوم کوچی، قاضي عبدالهادي هدایت او نور... له هغو استادانو نه، چې دمخه یاد شوي دي، نور نومیالي استادان، سید الف شاه غضنفر، ضامن علي غرجی، غلام محمد نیاز، عبدالکریم یورش او محمد نادر عمر هم په همدغه بلاک کې قید شوي وو. میر علي اکبر هاشمي، ولید حقوقي او د پوهنتون استادان، چې دمخه یې یادونه شوې، د تاج محمد وردک او روشندل وردګ په ګډون هم ددغه بلاک بندیان وو.

ددغه بلاک په بندیانو کې ځینې یې د پاخه عمر خاوندان هم و، لکه پېنځه اتیا کلن سردار احمد علي د دربار وزیر، چې همدلته مړ شو، دو اتیا کلن سردار احمد علي شاه او پېنځه اویا کلن غلام محمد شېرزاد د مخابراتو وزیر. په نظامي افسرانو کې لوی درستیز غلام فارق هم و. په دې ډول خلقي چارواکیو ددغسې افغانانو په بندي کولو سره افغانستان او هم خپل حکومت له مسلکي او مجربو ملکي او نظامي کدرونو نه محروم کړ.

په دغې خاصې هیلې، چې دوی به وطن د هغو له مرستې نه پرته هغه هم د مارکسستي فکرونو له

مخې اداره کړي. په دې کې هم دوی سخت تېر وتل. وروسته د پرچمیانو د کودتا په تور کې شاهپور احمدزی، جنرال عبدالقادر، سلطان علي کشتمند او محمد رفیع هم د لومړي بلاک په لویدیځ اړخ کې واچول شول. د پرچمیانو بندي کېدل یوه لړۍ شوه، چې په دواړو بلاکونو کې اچول کېدل او ټول شمېر یې شاید سلګونو ته رسېدلی وي. دډغومره ډېرو پرچمیانو بندي کېدلو نه مطلب شاید دا و، چې د پرچم ډلګۍ د یوه تنظیم په توګه له مېنځه تللی او د سیاست کولو توان ونه لري.
په هر حال، د څرخي پله زندان کې دداغسې ډلو پلویان وو، چې ډېر یې د نړۍ لید او هم د چلند له پلوه سره جوړ نه راتلل. د حسیني په وینا "با امدن پرچمی ها صنف سوم بوجود آمد. قشر متوسط با پرچمی ها هیچ سازش نداشتند، ولی محمدزایی ها، و بیش تر وزرا جنرال ها، و والیان با پرچمیان خوب بودند." دی دا هم وایي، چې د اخوانیانو او پخوانیو حکومتونو د چارواکیو اړیکې سره ترخې وې[20]. دا به ځکه دغسې و، چې په بندي خانه کې په عمومي ډول یو څوک هغسې سلوک کوي، چې په واقع کې یې غواړي او هماغسې وي. "زندان جایی است که نقاب کاذب دولتی از چهره ها می افتد و هر کس آنچنان میشود که خودش میباشد."[21] په بله ژبه، دوه مخي توب چې زموږ په دولتي چارواکیو کې د هرې بلې ډلې له خلکو نه ډېر وي، په زندان کې نه وي یا ډېر ضعیف وي.
د لومړي بلاک په بندیانو کې له یوې بلې ډډې نه هم توپیر څرګند او حتی د رخې وړ و. حسیني په یوه څه مبالغې سره وایي، چې په هغه وخت کې چې "چشم زندانیان دنبال یکدانه میوه تازه کور مید شد... برای سرداران، جنرالان و خان زاده گان هر پانزده روز صندوق ها و خرجین ها پر از صدها قسم میوه های خشک و تر میرسید."[22] په خلقي دوره کې په هر دوو اونیو کې او په پرچمي

دوره کې په څلورو اونیو کې به بندیانو ته د دوی له کورنیو نه کالي او د خوړو شیان راوړل کېدل. د پایوازۍ په دغو ورځو کې به د پایوازانو ګڼه ګوڼه بیخي ډېره وه، خو په پرچمي دوره کې زما د تجربو او لیدنو کتنو له مخې هغو بندیانو ته، چې خواړه رسېدل، له هغو سره به یې شریکول، چې پایواز به یې نه لاره. په هغه ورځ به یو لوی دسترخوان و غوړول شو او نږدې هر چا به د خپلو خوراکي څیزونو نه یو څه راوړل او یوه میله به جوړه شوه. په تېره د بې پایوازو بندیانو لپاره. دا چې د افغانانو کورنۍ اړیکې، د مېلمه پالنې او سخاوت حس ښه قوي دی، د زندان په ډېر سخت حال کې هم پوره څرګند او د ویاړ وړ و.

په اول بلاک کې ښځې او ماشومان هم اچول شوي وو. له ښځو او ماشومانو سره د یوې کورنۍ ټول غړي بندي کېدل د لومړي ځل لپاره د محمد هاشم په صدراعظمي کې عملي شوې وه. په هغه وخت کې د ساپیو له جنګ نه وروسته، چې ډېر ساپي لویان لکه سلیم او شهسوار بندي او پرار شوي وو، د بندیانو نومیالی کورنۍ د میر زمان کونړي[23] او ملک قیس خوږیاڼي وې. ددغو کورنیو ټول غړي اول د دهمزنګ په زندان کې د کلونو لپاره وساتل شول او بیا هرات او مېمنې ته پرار شول، خو په خلقي حکومت کې د مهمو کسانو د کورنیو ټول غړي په فاصلو کې په لومړي بلاک کې واچول شول، لکه د واکمنې محمدزي کورنۍ، د حضرتانو کورنۍ، د تګاو میا ګل جان کورنۍ او د وکیل محمد اعظم شینواري کورنۍ. وروسته، چې د خلق د سرکسان سره مرګکي دښمن شول د نور محمد تره کي. د اسلم وطنجار، د اسدالله سروري کورنۍ او په پای کې د حفیظ الله امین د کورنۍ غړي هم په لومړي بلاک کې بندي شول. له کوټه قلفي بندیانو نه پرته نور د ورځې اوه پلا د بلاک انګړ ته د ګرځېدلو لپاره ایستل کېدل. ماشومان

انګړ ته په تللو کې ازاد وو، نو خلقي چارواکیو که څه هم خپل خلقي نظام یې د خلکو په خدمت کې ګانه، د یوه کس لپاره د هغه ټوله کورنۍ بندي کوله. البته دا د مهمو کسانو د کورنیو حال و. په دې ډول دوی د ډله ییز جزا فکر، چې د قانوني پاچایي په لسیزې کې او د محمد داود په ولسمشرۍ کې ترک شوی و، بیرته ژوندی کړ.

دویم بلاک تر لومړي بلاک نه ډېر لوی و، په یوه روایت په دغه بلاک کې اټکل اته زره بندتیان اچول شوي وو. په دوی کې د پرچمیانو او اخوانیانو شمېر تر نورو ډېر وو. دوی که څه هم په بېلو پوړو نو کې اچول شوی وو، هرې ډلې ستونځې پیدا کولې. د اخوانیانو په اړه به وروسته وغږېږم. پرچمیان که څه هم حکومت ته مغضوب وو، په خلکو کې هغسې منفور نه وو، لکه د شوروي له یرغل نه وروسته چې شول، خو خلقي چارواکیو ته راپور ورکړ شوی و، چې هغوی "بین محبوسین فعالیت های مخفی مینمایند... بناءً مشران ان را که تقریباً سی چل نفر میشد، به بلاک اول اوردند و در یک دهلیز بحالت کوته قلفی نگهداشتند که در ان جمله سلیمان لایق، نظام الدین تهذیب، دگرمن خلیل... قابل یاد آوری است."[24] بندیانو ته نه یوازې د طبیعي حاجت په رفع کې، بلکې د ډوډۍ په وېش کې هم تکلیف ورکول کېده. "دیگ های کلان کلان را در سه چار جای دهلیز ها استاده میکردند. همه آنها با بشقاب های مسی استاده میبودند و بالنوبه قدم بقدم سوی دیگ های سمت شان نزدیک میشدند تا هر کردام به دیگ های شان میرسید. اشپزها به عجله ملاقه یا کبگیرهای شان را در دیگهای مربوط میزد و در بشقاب های هر کدام شان خالی میکردند. کسانیکه طعام میگرفتند پس بسلسله همان لین خود با طاق های شان میرسیدند. گو یا تقسیم نان شان هم یک دو ساعت کش مکش بکار

داشت.)[25]"

د بندیانو شمېر تل په تغییر کې وو، احمد شاه وردګ چې د 1357کال د جوزا په لومړی ورځ لومړي بلاک ته راوستل شو، د بندیانو شمېر درې_څلور سوه ښيي، خو دا یواځې اټکل و. د هاشمي په وینا "هر شب به تعداد زیاد محبوسین جدید به زندان اورده میشدند.)[26]" د سیداګل غریبیار په وینا "هره شپه به د دولسو او یوې بجې په شاوخوا کې بسونه لومړي بلاک ته راتلل" او بندیان به یې په پولیګون کې د اعدام لپاره وړل)[26الف](. اصله خبره دا ده، چې په وطن کې به پاخونونه کېدلو په زندان کې به بندیان ډېرېدل. سره له دې، چې بندیان به کله له کابل نه نېغ پولیګون ته د اعدام لپاره وړل کېدل. د احمد شاه په وینا: "با زیاد شدن وقایع در کشور تعداد محبوسین روز بروز زیاد تر شده رفت. هر شب ده دوازده موتر نفر می اوردند، درینجا تخلیه میکردند تاحدیکه هر گز جای باقی نماند. اکثریت آن صاحبمنصبان عسکری بودند.)[27]" څنګه چې د خلقي حکومت په وخت کې اول یواځې لومړی او دویم بلاک او ورو سته څلورم بلاک فعال وو، په یوه وخت کې د ډېرو بندیانو ساتل ګران وو. د حسیني په وینا "...کشتارهای دسته جمعی از 7 ثور سال 1357 تا مدت یک سال بشدت ادامه داشت.)[28]" ځینې بندیان به وژل کېدل، ددې لپاره چې نورو ته ځای پیدا شي. د احمد شاه په وینا " تا اخر سال مذکور بلاک های محبس پلچرخی تا حدی سرازیر گردید که قطعاً گنجایش مزید را نداشت." دا سره له دې، چې "گرفتار شده گان وقایع چنداول، بالاحصار، وغیره را بزندان نیاوردند و راساً بدیار عدم سوق میدادند، آنهم بدون تحقیق و محاکمه.)[29]" حسیني د څرخي پله زندان بندیان پېنځلس زره ښيي)[30](. د خلقي حکومت تر پایه پورې په څرخي

پله زندان کې بندیان په دغه شمېر پاتې نه وو. له دولس زره نه زیات یې له مېنځه وړل شوي دي. حسیني وایي، چې د پرچمي رجیم په پیل کې د عمومي بښنې په وخت کې 2600 تنه بندیان پاتې وو[31]. دغه شمېر په لېږ توپیر سره زما له رقم سره سر خوري.

زما د لیکنې له مخې د خلقي حکومت په پای کې 2700 تنه بندیان پاتې وو. حفیظ الله امین د خپل سروالۍ په وخت کې 850 تنه بندیان ازاد کړي وو او پاتې یې د ګوند د شپاړسمې کالیزې د جنورۍ په اوله ورځ ازادول، په داسې حال کې چې تر هغه دمخه یې دولس زره بندیانو یو لست خپور کړی و، چې د تره کي په وخت کې چې اسدالله سروري د اګسا سروال و، له مېنځه وړل شوي وو[32].

## د څرخي پله زندان او قومندان سید عبدالله

روښن احمد شاه، چې د 1357 کال د جوزا په لومړۍ ورځ لوړي بلاک ته راوستل شو، د بندیانو په اړه لیکي، چې "احوال شان بسیار بد معلوم نمیشد. قیودی چندان نداشتند، از طرف روز در صحن (بلاک) می برامدند. از طرف شب در اطاق های شان قرار داشتند. محافظین هم پولیس بودند، وضع نامناسبی نمیکردند."[33] په خپله د محبس قومندان قطره چې پولیسي افسر و، له بندیانو سره ښه چلند کاوه. د ثابت ډوډۍ به وریجې یا ښوروا وه او د شپې له خوا به زرد کې له ډوډۍ سره ورکول کېدلې، خو د ډوډۍ مغز به دغومره خام و، چې د خوړلو به نه و. وضع تر دوو میاشتو پورې همدغسې وه، خو له هغه وروسته چې سید عبدالله د قطره پر ځای د څرخي پله زندان قومندان شو، د بندیانو ژوند تریخ شو. توربخن سید عبدالله )کندهاری( چې 35 کلن به و، د ځلورمې ز غرورې قوې لومړی بریدمن او ګوندي سر پرې کړی

و. ده هم په سر کې له بندیانو سره ښه چلند کاوه، خو "...همینکه کمی بلند شد و از استادانش درس گرفت، روز بروز اژدها گشته زندانیان بیچاره را بی جهت ب آب و لت میکرد." [34] داسې ښکاري، چې د کورنیو چارو د وزارت چارواکیو په تېره سید داود تړون سید عبدالله ته پوره اختیار ورکړی و.

سید عبدالله په زندان کې واکمني چلوله، څنګه چې د بندیانو او محبس په اړه قانون نه و، څنګه چې حکومت ځانله انقلابي وایه، څنګه چې سید عبدالله په یوه ځل له ټیټې رتبې نه دغسې لوړ مقام ته ورسول شو، چې حتی بندیان یې اعدام ته هم ورکولی شول او څنګه چې هغه د پخوانیو حکومتونو لوړ پوړي چارواکي او د پوهنتون استادان شپه او ورځ تر خپل لاس لاندې ولیدل، خپل ځان ورته ډېر غټ او مهم وبرېښېد. توپنګچه په لاس له وسله والو محافظانو سره به د بندیانو کوټو ته ننوت. له بندیانو نه به یې احترام غوښته، په تېره له هغو نه چې له مخې به یې تېرېدل او که چا ورته سلام نه اچوه، وهل به یې. سپین ږیری یاسین مایل هروي یې په دې ووهه، چې د هغه په وینا "بموقعیکه از راه گذشتم، طرف اطاق کار سید عبدالله نظرم افتاد. وی را بد آمد. ناگاه با لاریم حمله نمود و بی جهت زیر لت و کوب گرفت." [34الف] داسې یې هم پېښنځه او یا کلن محمد کبیر د فوایدې عامې وزیر بې عزت کړ. سید عبدالله بندیانو ته د خپل قوت ننداره هم جوړوله. بندیان، چې به د بلاک په انګړ کې ګرځېدل، هغه به په خپل جیپ موټر کې د هغو له مېنځ نه تېرېده، خو سید عبدالله د واکمنې کورنۍ د ښځو په برابر کې پاتې راغی. هغه خپل دفتر شاید د کوم شخصي غرض له امله د ښځو برخې ته، چې په دریم پوړ کې و، نزدې کړ. په دې پلمه، چې په نورو اعتبار کولی نه شي. ښځې مجبورې وې، چې په داسې حال کې چې ناریینه او

ماشومان یې د بلاک په نورو برخو کې اچول شوي وو، د هغه دفتر ته ورشي. بڼا هم دی په خپل مقصد ونه رسېد، هرڅه چې و. دغو ښځو "تا اخیر حیثیت و شرافت خود را مردانه وار نگهداشتند." [24ب] بیا نو سید عبدالله حتی په انګړ کې د ګرځېدلو په وخت کې هم د هغو ماشومان نه پرېښودل، چې له خپلو مېندو سره وګوري. دوی له خپلو پلرو نو سره اچول شوي وو. داسې هم سید عبدالله "... حلقه محاصره شان را تنګتر ساخته هفته ها و ماه ها او شان را کوته قلفی نګهداشته... اولاد های شان را هم بی موجب لت و کوب مینمود." [34ج] خو ډېره موده نه وه تېره شوې، چې محمدزي ښځې او ماشومان او تنکي ځوانان، چې د شپېتو په شاوخوا کې به وو، ازاد شول او ناریـنه یې له نورو بـندیانو سره ملګري وو.

سید عبدالله په خپل امر بې له کوم ظاهري دلیل نه په بندیانو باندې بندیز لګاوه. د بندیز په وخت کې که څه هم هوا به ښه توده وه، کوټې به قلفې او کړکۍ به تړلې وې او بندیان به په انګړ کې قدم وهلو ته هم نه پرېښودل کېدل. څو ورځې وروسته به بیا هر څه عادي شول. سره له دې هم سید عبدالله به "همینکه نیشه میشد و یا مخبر خود صفتش چیزی اطلاع میداد و یا خود در محضر زندانیان گذر میکرد و سلامی های گرم را نمی یافت، ناسزا میگفت" ټولې کوټې به یې قلف کړې. د روشن احمد شاه په نظر "ساعت تیری شان همین بود، از ازار ما لذت میبرد و آن را اولین مضمون تفریحی خود میدانست." [35] سید عبدالله یو ځل له بندیانو نه قران مجید، تسبیح، جای نمازو نه او داسې هم قلم، کاغذ، کتاب او داسې نور ټول کړل. د شطرنج تختې یې هم ټولې کړې، ددې لپاره چې بندیان له عبادت نه لاس واخلي او د ساعت تېرۍ وسیله ونه لري، خو د بېرونیو پېښو له امله یې د عبادت څیزونه

بېرته ورکړل، خو بیا هم بندیان یې نه پرېښودل چې په ګډه لمونځ وکړي. د پرچم د رجیم په دوره کې بیا بندیان پرېښودل شوي وو، چې لمونځ په جمع ادا کړي، که څه هم امام به له لمانځه نه وروسته کې په جهر ویل، چې "فانصرنا على القوم الكافرين."
سید عبدالله د کوټو لټولو په وخت کې د بندیانو وړې بترۍ لرونکې راډیوګانې ټولې کړې وې، خو څنګه چې بندیان د لوړې سویې خاوندان او له وطني او باندنیو خبرونو سره علاقمن او د رجیم د سقوط په فکر او هیلې وو، ځینو یې سره له دې هم راډیو ګانې حتی د پولیسانو له لارې هم پیدا کړې وې. په دې ډول دوی د وطن له پېښو او داسې هم د هغو په اړه د باندنیو راډیوګانو له تبصرو نه هم خبرېدل او له نورو بندیانو سره یې شریکول. ددغه حال په خبرېدلو سره سید عبدالله "به سید داود ترون قومندان عمومی راپور داده بود که یک شبکه رادیویی را در محبس کشف کرده، اطلاعات میگیرد و بدیگر زندانیان پخش مینمایند. اغلباً آن به بی. بی. سی یا کدام منبع دیگر خارجی ارتباط میگیرد."(36) ترون ورته د سخت تحقیق هدایت ورکړی و.
سید عبدالله اول عبدالله عمر تر پوښتنې لاندې ونیوه، خو له هغه سره یې سخته و نه نیوله او چې له روشن احمد شاه نه یې مطلوب معلومات ترلاسه نه کړل، چې راډیو یې له کوم ځای نه ترلاسه کړې؟ اول یې په پښو کې او بیا په غوږونو کې برق ورکړ او په پای کې یې رخصت کړ. احمد شاه بیا ورته کړه، چې "... بی جهت مرا زجر دادید من چل سال در این مملکت خدمت کرده ام به سن و سال شما بچه ها دارم." عبدالله په ځواب کې وویل، چې "... خدمت را به ظاهر شاه کرده اید." " من گفتم نوکر شخصی ظاهر شاه نبودم." "او گفت برائید انگلیس، بسیار گپ مزن." د "انګلیس" د کلمې په اورېدو سره احمد

شاه ټينګ غبرګون وښود او سيد عبدالله په لغته ووهه او په څمکه يې وغورځاوه. په دغه حال کې احمد شاه وايي، چې "... بی اراده دشنام از زبانم برامد." هغه بيا "... بالای ضابطان و حاضر باشان خود امر کرد بزنيد!" بيا "پنج و شش نفر حاضر باشان ذريعه قنداقهای تفنګ و چند نظر ضابطان هم توسط لګد مرا ميزدند. خودش با بوت های ميخ دارش شخصاً ضربات شديد ميرسانيد. يک لګدش بين چشم و ګوش راستم رسيد، بيهوش شدم."[37] احمد شاه، چې په هوښ راغی، ورته معلومه شوه چې سيد عبدالله "... اکثريت ان زندانيان را که راديو داشتند نيز خواسته يکی پی ديګر زجر و شکنجه ها دادند... در ان جمله وزيران مخابرات، فوايد عامه و معاون کابينه جمهوريت و چند تن شخصيت های ممتاز ديګر شامل بودند."[38]

هاشمي د پوهنتون پخوانی استاد او د اطلاعاتو او کولتور وزير، عبدالرحيم نوين په اړه ليکلي، چې "وقتی برای اولين بار در زندان با وی مواجهه شدم، باورم نميشد اين همان دکتور نوين و همان استاد فعال و خندان ما باشد. زرد و زار و لب بسته و خاموش به وضو و طهارت ميپرداخت و دست در کمر ګرفته دوباره راه سلولش را در پيش ميګرفت. او را انقدر لت و کوب و شکنجه داده بودند که نه توان ګردش زياد را داشت و نه ارزوی ان را."[39] هغه يې تورن کړی و، چې "... قبلاً به شما از امريکا يک چک دالری آمده و آن را ګرفته ائيد. بيچاره را سخت برق داده و شکنجه کرده بود تا ايذکه او را از اطاق شان بيهوش کشيده به بستره اش انداختند."[40] عزيز الله لودين د اقتصاد د پوهنځي استاد په داسې حال کې، چې د بلاک په انګړ کې په اودس کولو بوخت و، ناڅاپه په څپېړه ووهل شو "سيد عبدالله ناګاه با و حمله

نموده و به نفر مربوط [ضابطان] امر داد بزنید. بیچاره را بروی زمین انداختند و از دو سه طرف شدیداً لگدمان میکردند." وروسته سید عبدالله ته معلومه شوه، چې هغه يې په دغه ناسم راپور سره وهلی و، چې لودین ګواکې ویلي و "تره کی یک شخص دروغگو و جاهل است."(41) سید عبدالله بیا ترینه بښنه وغوښتله. داسې هم سید عبدالله "ولید حقوقی بیچاره را بگناهیکه چرا در وقت اقتدار ستره محکمه او دعوی بنفع سیدان قندهار فیصله نشده، ناگهان زیر قنداق های تفنگ و لگد انداخته... عبدالاحد خان کرزی را هم باین بهانه که خان هستند، ظلم کرده ائید به محضر دیگر زندانیان نو وارد بی جهت بی آب کرده بود."(42)

د سید عبدالله اصلي دنده، چې د بندیانو ساتنه وه، نه شو کولای دغسې نومیالیو افغانانو ته په خپل سر جزا ورکړي، خو دا چې لویانو ورته واک او اجازه کړې وي. خلقي حکومت خو د کودتا له پیل نه د هغو افغانانو په ځپلو پیل کړی و، چې "واکمنې طبقې" ته يې منسوب ګڼل. چارواکیو يې هم د خپلې ایډیالوجۍ او هم حکومتي ګوندي لویانو په پلوی له "فیوډالانو" سره د دښمنۍ چلند کاوه، چې د ترین کوټ چارواکي يې یوه نمونه ده، چې دمخه يې بیان شوی د. د سید عبدالله ویناوې او کړه هم د همدغې روحیې له مخې وې. یو ځل يې د بلاک په انګړ کې بندیانو ته ویلي و، چې "شما میخ کوبان رژیم های گذشته هستید. خون ملت را مکیده ائید، سخت مسؤلیت دارید. اگر شما میخ های رژیم گذشته را محکم نمیکردید، اینقدر دوام نیمکرد. وقت تر از میان میرفت بناً از شما سخت باز خواست خواهد شد."(43) له دغې وینا نه څرګنده ده، چې جزاګانې په اصل کې ایډیالوجیکي او سیاسي وې. ددغسې سیاست د عملي کولو یوه نښه دا وه، چې سید عبدالله د بلاک په انګړ کې بندیانو ته یوه

ورځ ښرګند کړه، چې "ما از شما انتقام برادران چلی خود را میګیریم، زیرا رفقای ما در چلی ناکام شدند و تلفات زیاد دیدند." (44)
احمد شاه د خلقیانو له قوله وايي، چې "مشاورین روسی به خلقی ها هدایت میداد هیچ یک شخص مخالف انقلاب را نباید سلامت ګذاشت، زیرا ما در چلی این اشتباه را کردیم، عناصر ضد انقلاب را ازاد ګذاشتم. آنها یک قدرت ګشته نظام جدید مارکستی را پس از ریشه کشید." (45)
له ښار نه حکومتي هئیاتونه هم د ښرخي پله محبس ته تلل او د بندیانو په کوټو کې به ګرځېدل، خو د هغو په ورتګ سره هم د بندیانو حال په ښرګنده ډول ښه شوی نه دی. د خوست پخوانی وکیل شیر احمد لا د سید محمد ګلابزوی له ورتګ نه وروسته له مېنځه وړل شوی دی. ګلابزوی، چې خوستی یې په یوې کوټې کې ولید، ورسره تود روغبړ وکړ، خو ددوه شپې وروسته له هغه له کوټې نه وایستل شو او بیا چا ونه لید. د خوستي په وینا ګلابزوی د "هغه قومي دښمن او مدعي و" او د پوښتنو په وخت کې یې دغومره ډېر "وهل خوړلي و، چې د ملا د زخمونو نه یې تر اخره وینې تللې." (46) ګلابزوی، چې په پرچمي رجیم کې د کورنیو چارو وزیر و، په کال 1985 کې د ښرخي پله زندان پنځم لمبر بلاک هغه لوی سالون ته ورغی، چې له 180 کسه بندیانو نه یې یو هم زه وم. د بندیانو په لیدلو سره یې، چې د غولي په سر لکه رمه پراته وو، خپلو ورسره ملګرو ته ښرګنده کړه، چې "د بندیانو مغزونه خو وچ شوي، اوس به یې ګېډې هم وچې شي." دده دغه وینا رښتیا وه. کومه هغه ډوډۍ، چې دده وزارت له خوا دغو بندیانو ته ورکول کېده، بېخي خواره وه. په داسې حال کې، چې د هغو بلاکونو بندیانو ته چې د خاد له خوا ورکول کېده، تر هغې ډېره ښه وه.

په خلقي دوره کې له ځينو شتمنو بنديانو نه پيسې هم په چل سره ترلاسه کېدلې. د اريوب سينما خاوند نور ګل ځاځی، زوی او ورور يې تر سختې څارنې لاندې نيول شوي وو. له هغو نه هېڅ پوښتنه هم نه ده شوې. سيد عبدالله د هغو د آزادولو په نامه شپږ لکه افغانۍ ترېنه وغوښتلې. پيسې په لسو ورځو کې د هغو د کورنيو له لارې ورسول شوې، سره له دې هم هغوی اعدام شول[47]. سيد عبدالله بنديان د مرګ پنجو ته هم سپارلی شول. " او چې د شپې به بسونه د وړلو او وژلو لپاره راغلل، نو ده به ورسره هغه بنديان چې دده خلقي او ګونډي ملګرو ورښوولي وو، په خپل امر يو ځای د مرګ لپاره پوليګون ته لېږل."[48] نو ځکه قومندان سيد عبدالله د ځينو نورو قومندانانو په شان د بنديانو باقي و. دی د 650 تنو بنديانو باقي و[49].

د بنديانو اصلي ناکراري به د شپې وه، چې بنديان به د اعدام لپاره پوليګون ته وړل کېدل، خو له کوټو نه د هغو ټولول اسان نه و. په دې چې "نه قومنداني و نه مقامات بالاتر از ان هيچ کدام بصورت دقيق نميدانستند چه کسانی را اعدام نموده اند، چه کسانی محبوس اند و در کدام بلاک زندان جابجا گرديده اند."[50] دغه ستونځه له له دې امله وه، چې يو خو بندي کېدل لکه يوه جاري پروسه وه، بله دا چې دا د مسلکي ميرزايانو کار نه، بلکې د خلقي چارواکو په تېره د اګسا چارواکو کار و او دوی په دفتري کارونو نه پوهېدل، نو ځکه په دې اړه کارونه ګډوډ وو. "روی همين بی نظمی بود که وقتی تصميم به اعدام يک تعداد اشخاص ميگرفتند، لست اسمای اشخاص را در جيب گذاشته به سلول زندان سر ميزدند و به قرائت ميپرداختند."[51] په دې ډول د اعدام له موضوع نه به د دواړو بلاکونو بنديان خبرېدل، که څه هم لست وال به د بنديانو د اعدام په اړه څه نه ويل. هغو به لا

بندیانو ته ویل، چې له بند نه خلاصېږي او کالي مو راټول کړئ، خو هر بندي پوهېده چې غوا توره شېدې یې سپینې، نو د نوم اخیستلو په وخت کې به " دهن و گلو خشک و نفس ها به شمار می افتاد. با شنیدن هر اسمی هر کدام شان فکر میکرد که اسم بعدی از آن خودش باشد." بندیان به غلي او سترګې به یې د صاحبمنصب په لور کړې وې. نوم لوستل، چې به خلاص شو، په پاتې بندیانو کې به ساه ورغړېده. "اهسته اهسته خون در رگ ها بجریان می افتاد. اثار زندگی در چهره ها نمایان میگشت."[52] ځینې وایي، چې "روندگان به پولیگون 20 نفری، 30 نفری، 40 نفری و دوبار 120 نفری بود."[53] دا چې بندیان به ډله ډله وړل کېدل او وژل کېدل، په دې کې شک نه شته، خو په دې کې غټ شک دی، چې هغه به په دغه دقیق شمېر وي، لکه چې دی یې وایي، خو دا به رښتیا وي، چې "هیچکس گمان آن را نداشت که فردا بتواند دیگران را ببیند و از این رو هر شبی که می آمد تمام زندانیان باهم خدا حافظی میکردند."[54] دغه څه به په خاص ډول په اخواني بندیانو باندې صدق کوي. هاشمي، چې په خپله تر اعدام لاندې و، د بندیانو احساس په دې ډول انځوروي: "هیچ محبوسی احساس مصونیت از مرگ را نداشت، موقف آنکه حکم اعدامش صادر نشده بود با آن که چنین حکمی در موردش صادر شده بود تفاوتی نداشت. هر محبوس مرگش را از نزد یک میدید. روز را در واهمه اتفاقات شب و شب را بانتظار ورود جلادان و پایان زندگی اش بسر میرسانید."[55]

د اعدام غټه پېښه د 1358 کال د جوزا په اتمه شپه وه، چې د بلې ورځې تر سهاره پورې اوږده شوه. دا د هغو اخوانیانو د وژل کېدلو په اړه وه، چې د محمد داود په ولسمشرۍ کې د پرچمي چارواکیو په دسیسې سره نیول شوي، په

دهمزنګ کې بندي شوي او په خلقي دوره کې د څرخي پله زندان دويم بلاک ته لېږدول شوي وو. په دوی کې د اسلامي جمعيت مؤسس او د شرعياتو د پوهنځي سروال غلام محمد نيازی، عبدالرب رسول سياف، يو شمېر نظامي افسران او د پوهنځيو محصلان هم وو او نيازی لکه چې په جمهوري دوره کې اعدام شوی او سياف بېرته دهمزنګ ته استول شوی وو. د جمعيت نور مشران لکه برهان الدين رباني، ګلبدين حکمتيار او نور په هغه وخت کې پېښور ته اوښتي وو.

له دهمزنګ نه نور بنديان هم د څرخي پله زندان دويم بلاک ته وړل شوي وو، چې په هغو کې د محمد هاشم ميوندوال له ډلې نه ډګر جنرال عبدالرزاق، تورن جنرال نيک محمد سهاک، ډګروال شاه علي مومند، ډګروال مهر علي زلال، ډګروال نور احمد کامه وال، ډګروال وارث شينواری، حاجي باز زرمتی، حاجي فقير محمد، عبدالحنان ځاځی وو. د اقبال وزيري د ليکنې له مخې، چې دی هم هلته بندي و، د اخوانيانو او دغو بنديانو نه سربېره د جنرال مير احد شاه، مولانا فيضاني، د ستميانو او خلقيانو پلويان هم هلته بندي وو. په دويم بلاک کې د اخوانيانو د وژل کېدلو په هکله روايتونه ډېر، خو سره متفاوت دي. د حسيني روايت تر نورو ښه څرګند او واقعيت ته هم نږدې معلومېږي.

اخواني بنديان د دويم بلاک په کوم پوړ کې اچول شوي وو او په هغه باندې د "خطرناک" نوم ايښودل شوی و. دوی چې د پياوړي روح او ټينګې ارادې خاوندان وو، په خپلو کې سره يو موټی وو او د چارواکيو د هر ناوړه چلند په وړاندې به يې په ګډه غبرګون ښوده، لکه ديوالونه په لغتو يا قاشقو سره وهل، چيغې نارې کول. دوی په دغو عملونو سره د بلاک چارواکي وارخطآ کړي وو. بيا نو دوی ټولو ته يوه ورځ وويل شول، چې دوی به يوه اوني وروسته اګسا ته د پوښتنو لپاره

بوتـلل شي. څنګه چې په ولسمشرۍ کې له دوی نه تحقیق شوی او د بند په مودو محکوم شوي وو، دوی پوهېدل چې د چارواکیو اصلي مقصد بل څه دی. دوی ټول د 120 تنو په شاوخوا کې وو. د حسیني په وینا، چې دی له هغو سره خواخوږي ښکاره کوي او یو ورور یې هم پکې و "بعد ازین ابلاغ... آنها هر روز غسل میکردند، شب و روز در طهارت و پاکیزه گی بسر میبردند. لباس پاکیزه میپوشیدند و سر و بدن خود را خوشبو میکرد ند و همه شان چشمان خود را سرمه میزد ند تا سنت ابراهیمی را بجا اورده باشند." دی دا هم وایي، چې د هغو محافظانو لوړه کوله، چې "آنها با ملایک ارتباط داشتند و فرا رسیدن همان شب را بهتر از ما خبر داشتند."(56)

په هر حال، له د غو اخوانیانو نه او یا تـنه نیـمه شپه په دوو سروېسونو کې له دویم بلاک نه لـومړي بلاک ته ورو ستل شول. پروګرام دا و، چې هلـته به د محافظانو په ملګر توب پېنځه_پېنځه تـنه په وار وار د خدای په امانۍ په پلـمه یوې کوټې ته ننباسي، خو هلـته به یې سترګې پټې او لاسونه وتړل شي او له بل وره نه به بـیرون کړل شي، خو هلـته لومړنۍ ډلې بـندیانو له سید عبدالله سره خپـړې ولګولې او په حېرانوونکي مهارت او چټکۍ سره بـیرون ووتل او په جهر سره د تکبیر په ویـلو سره یې ملګري د عمل لـپاره وبـلل او په دې ډول د دواړو خواوو ترمېنځ نښتې پیل شوې، خو څنګه چې انډول پوره بې انډوله او بـندیان بې وسلې او محصور وو، په پای کې ټول ووژل شول او پېښه د سهار په خلور بجو پای ته ورسېدله(57).

په دویم بلاک کې پنځوس تنه اخوانیان لا هم وو، چارواکیو تجویز نیولی وو، چې د جوزا په دیارلسمه یې په یوه نوي تاکتیک سره له مېنځه یوسي. سید اکبر نوی بـندي لا دمخه د پېنځو زرو افغانیو په بدل کې د یوه محافظ له لارې یوه

چړکی ترلاسه کړي او د پښې په جرابې کې ځای پر ځای کړې وه. چارواکیو دد غې ور ځې په مازیګر په داسې حال کې، چې د دویم بلاک له ودانۍ نه د دېوال تر بیرون پورې د څلورمې زغرورې قوې وسله وال سرتېري په دواړو خواوو کې قطار ولاړ وو، د بندیانو په اېستلو پیل وکړ، خو بندیان او په خاص ډول سید اکبر د دوی په نیت پوه وو. دی، چې سید عبدالله ته، چې د قطار په مخ کې ولاړ و، نژدې شو خپل دستمال یې لاندې و غورزاوه او د جګولو لپاره یې ځان ورټیټ کړ او چړکی یې له جرابې نه واېستله او په بې ساري ګړندیتوب سره یې په سید عبدالله حمله وکړه او پېنځه ځله یې په چړکی ووا هه. سید عبدالله ټپي شو، خو مړ نه شو. نظامیانو په هغه وخت کې په سید اکبر باندې له دغې وېرې نه ډزې ونه کړې، چې خپل ملګری به یې هم ووژل شي، یوه سرتېري بیا ځان سید اکبر ته نژدې کړ او مرګکي ډز یې پرې وکړ. حسیني د نورو بندیانو په هکله دغومره وایي، چې "برادران را زودا زود سوار کردند و همه باهم رفتند." (58)

د خلقي حکومت وژن تون پولیګون و، پولیګون چې د څو ضلعي مانا ور کوي، د څرخي پله د سیمې یوه برخه ده چې په اصل کې د سرتېرو او زده کوونکیو د نظامي تمرین لپاره وه. پولیګون په دغه دلیل د وژن تون په توګه غوره شوی و، چې خلک د اعدام په ډزو باندې د تمرینونو او انداختونو ګومان وکړي. څلورمې زغرورې قوې ته نژدې همدغه پولیګون به وي، چې خلقیانو ور ته د "تاریخ کنده" ویله. دلته به له څرخي پله یا کابل نه د بېلو بېلو روایتونو له مخې هره شپه بندیان په څو موټرونو کې راوړل کېدل. موټرونه به نظام قراول ته نژدې، چېر ته درول کېدل او له هغه ځای نه به اته تنه جلادان په دوو جیپونو کې ورسره ملګري کېدل. بیا به ټول موټرونه دده سبز په لور د شلو دقیقو په

شاوخوا کې د "تاریخ کندې" ته رسېدل. د "تاریخ کنده" کې به دمخه کندې کندل شوې وې، جلادانو به بیا بندیان په کلا شنکوفونو سره وژل او په بولدوزرو یا نورو وسیلو سره به خاورې پرې اچول کېدلې. کله چې به سخت باران شو، د مړو غړي به رابر سېره کېدل. جلادان به زیاتره وخت نشه وو او چې بارکونو ته به رسېدل، د وژلو قیصې به یې کولې. د "تاریخ کندې" ډزې به په عسکري قشلو کې اورېدل کېدلې، د چندولو په قیام کې ډېر انسانان ژوندي تر خاورو لاندې شوي او ټانکونه پرې ګرځول شوي دي.

## د څرخي پله زندان له قومندان سید عبدالله نه وروسته

فکر نه کېږي، چې د قومندان سید عبدالله په ټپي کېدلو سره به کوم بندي خپه شوی وي. د هغه پرعکس ممکن په زړه کې خوښ شوي وي، خو د هغو پنځوسو تنو بندیانو په ټول وژنې سره به بندیان خپه شوي وي، چې په تېر رجیم کې محاکمه او محکوم شوي وو او په محبس کې یې د خپل بندي توب موده تېروله، خو بندیان به هیله من شوي وي، چې په دغې تراجیدکې پېښې سره به د دوی په اړه د حکومت په سیاست او د زندان د چارواکیو په سلوک کې تغیر راوړل شي، همدغسې هم وشول. نوي قومندان محمد رسول له بندیانو سره نرم چلند ونیوه، خو نرم چلند له دې امله غوره نه شو چې دبندیانو د طبیعي او اساسي حقونو درناوی وشي. هغه ددې لپاره غوره شو، چې د بندیانو په اړه د حکومت سیاست او د سید عبدالله سلوک پوره غلط ثابت شو او وېره پیدا شوه، چې په دوام سره به یې شاید لا خطرناکې پېښې رامېنځ ته شي، نو که د واک خاوندان هر څه کېږي چې وي، د خلکو د اساسي او طبیعي حقونو او د هغو د حیثیت درناوی وکړي او په هر حال د خپلوسیاستونو او کړو پایلې په نظر کې ونیسي،

ددغسې تراجيکو پېښو مخه به نيول شوې او د انسان له شان سره بهٔ د برابر ژوند لپاره ډګر هوار شوی و، خو بې تجربې او سمدلاسه واک ته رسېدلي کسان تر هغو چې د خپلو کړو ناوړې پايلې يې ليدلې نه وي، دغسې نه کوي. له دې امله د واکمنو ترڅنګ د پخو مشاورو شتون حتمي دی.

د نوي قومندان محمد رسول له ټاکل کېدلو وروسته غټ بدلون د بلاکونو په دهلېزونو کې د تلويزيونونو ايښودل و، چې د بنديانو لپاره هم د ساعت تېرۍ او هم د خبرونو اورېدلو مهمه وسيله وه. چارواکيو دا هيله هم لرله، چې رسمي تلويزيوني خپرونې به په بنديانو باندې ښه اثر وکړي، خو بنديان پوهېدل چې په تلويزيون کې چې د حکومت په پلوۍ غونډې او لاريونونه ښودل کېږي، هلته د حکومت پرضد پاڅونونه شوي[59]. په هغه سربېره بنديان پرې ښودل شول، چې دننه په کوټو او بيرون په انګړ کې ازاد وګرځي. دا يو ډېر غټ بدلون و، چې سيد اکبر په خپلې قربانۍ سره بنديان ترېنه بهره من کړل. په دې ډول بنديان له ډېرو هغو سختو بنديزونو ازاد شول، چې د سيد عبدالله د قومندانۍ پر مهال پرې لګول شوي وو، خو د څرخي پله په زندان کې لا مهم بدلونونه د اسدالله سروري له ورکېدو نه وروسته د حفيظ الله امين په واکمنۍ کې راوستل شول.

امين د سنبلې په 25مه د تره کي پرځای د ګوندي او حکومتي مقامونو سروال شو. د امين د "قانونيت، مصونيت او عدالت" د شعار د اعلام له مخې څرخي پله ته "هيات ها هر روز می امدند، به احوال يک تعداد افراد عسکری و صاحبمنصبان خورد رتبه... رسيدگی مينمود و در چند روز يک تعداد محدود آن را رها دادند."[60] دغه "محدود تعداد" لکه چې دمخه هم ويل شوي، 850 تنه وو او ټاکل شوې ده، چې پاتې ټول بنديان به د جدي

په لسمه )جنوري اول، 1980( خوشې شي، خو په دغه وخت کې د شوروي يرغليز پوځ امين او د هغه حکومت له منځه وړی و.
د امين په راتګ سره شاېسته )اندړ( د محمد رسول پر ځای د محبس قومندان ټاکل شوی و. ده هم "يک سلسله نو اوری ها را در زندان پلچرخی در دست گرفت."[61] په عمومي ډول "در زمان حکومت حفيظ الله امين اوضاع زندان از ارامش نسبی برخوردار بود."[62] په هر بلاک کې کتابتونونه پرانېستل شول، خو د هغو محتويات رسمي خپرونې وې. په لومړي بلاک کې يوه پايه راډيو هم ودرول شوه. د امين د وخت يو نوی کار دا شو، چې د کورنيو چارو د وزارت په ديوالونو باندې د هغو بنديانو د نومونو لستونه وځړول شول، چې تر هغه دمخه د تره کي او اسدالله سروري په وخت کې له منځه وړل شوي وو. نوي حکومت دا هم څرګنده کړه، چې له دې وروسته به له سندونو پرته څوک بندي نه شي، خو لکه چې زر په ولېدل شي، دغې څرګندونې درناوی ونه شو.
نوي حکومت د تره کي له بنديو کولو نه وروسته د هغه مېرمن مرجان، ورونه، وراېرونه او داسې هم د اسدالله سروري، اسلم وطنجار کورنۍ هغه هم له ماشومانو سره په لومړي بلاک کې بندي کړل. د اکتوبر په لسمه د نور محمد تره کي مړينه په رسمي، مګر عادي ډول اعلام شوه. د کورنۍ غړيو يې په اول بلاک کې غوغا جوړه کړه او په نورو بنديانو يې غږ وکړ، چې "او مردم برخيزيد که رهبر تان را کشتند." دغه اواز بنديانو ته عجب معلوم شو، چې "در نيمه زينه ها پوليس ها... به سر وقت شان رسيده چوب زنان آنها را داخل سلول ها رهنمايی و دروازه را عقب شان قفل نمودند."[62الف] د ريشخورو په فرقه کې، چې د تره کي پلويان او زرغونيان جګ شوي وو، په هوايي بمباري سره وځپل شول او ډېر تره کي پلوه خلقيان د افسرانو په ګډون، د څرخي پله زندان

کې او داسې هم د جلال آباد ښار دننه محبس کې واچول شول(63). په دې ډول خلقیان هم د لومړي ځل لپاره په ډله ییز ډول په خلقي حکومت کې بندي شول. عجبه دا ده، چې د احمد شاه په وینا "بدنبال آن یک تعداد نفر را بسر کردگی غلام محمد فرهاد گرفتار نمودند و آنها را عامل واقعه مذکور دانستند.(63)" فرهاد، چې د افغان ملت ګوند مؤسس، د ولسي جرګې وکیل، د کابل ښار لومړنی ګوند ښاروال او د میوند جادې ای ستونک او تر ټولو مهم یو مشر شخص و، هم د سیاست قرباني شو. ددغه او نورو پېښو په نظر کې نیولو سره هغوی، چې حفیظ الله امین "پښتونست" او "فاشست" ګڼي، د فاشزم په مانا نه پوهېږي، یا څنګه چې هغه په ختّه خروټی پښتون و، هسې پروپاګند ورپسې کوي.
د حفیظ الله امین پلویان ادعا کوي، چې د "قانونیت، مصؤنیت او عدالت" په دوره کې اعدامونه، نه وو، خو د څرخي پله بندیانو )محمد عثمان هاشمي، ن.حسیني، روشن احمد شده او سیداګل غریبیار( په خپلو کتابګوټو کې راوړي، چې په دغې لنډې دورې کې هم بندیان اعدام شوي دي، چې څرګند مثالونه یې د لویې ښارنوالی مرستیال عبدالهادي هدایت، د ستمي ډلې مشر طاهر بدخشی، د زرغون ډلګی مشر عبدالکریم زرغون، ډګر جنرال عیسی نورستانی، عبدالله رستاخیز، جنرال صفر جان نورستانی او عبدالکریم یورش وو. دوی د صدراعظم نور احمد اعتمادي نوم نه اخلي، خو هغه هم په غالب احتمال په همدغه وخت کې له منځه وړل شوی و. احمد شاه دا هم وایي، چې د دوی او نورو له اعدام نه دمخه "... عزیز نام رییس کام چند روز مسلسل به محبس آمد، همه زندانیان را از نظر گذشتاند و بعضی نفری را نامنویس گرفت." بندیان په دې فکر شول، چې عزیز چې د اګسا پر ځای د کام مرستیال شوی و، د بندیانو نومو نه

ددې لپاره ولیکل، چې خوشې به یې کړي، "ولی حقیقت ان بود که عزیز مذکور نفری قابل قربانی را بین زندانیان انتخاب و چهره میکرد." (64)

وروسته د جنرال عبدالقادر، محمد رفیع او سلطان علي کشتمند د اعدام حکمونهد بند په اوږدو مودو بدل شو، خو ډېره موده نه وه تېره شوې چې لوی درستیز جنرال شاهپور احمدزي او د جمهوري روغتون رییس میر علي اکبر له لومړي بلاک نه وایستل شول او بیا و نه لیدل شول. احمد شاه لیکلي، چې دوی "نزد همه زندانیان محبوبیت خاصی حاصل داشته بودند. بناءً فقدان شان چنان داغ المناک را در قلوب ما گذاشتند که تا زنده باشیم، فراموش نخواهد شد." (65) غریبیار د میر علي اکبر په هکله وایي، چې "ډاکټر میر علي اکبر اصلاً شیعه و، په پښتو ډېر ښه پوهېده، د ملي احساس خاوند او د ایران د دولت سخت مخالف .... و. لنډ قد یې درلود، د لوړو اخلاقو او پاخه جرئت خاوند و." (66)

په خلقي دوره کې له ټولو بندیانو نه تحقیق، هغه هم لیکلی تحقیق نه کېده. د اګسا د مرستیال عزیز په وینا "... پوښتنې په هغو کیسونو کې کېدلې، چې تورنان به اماده وو اقرار وکړي، نور تورنان وژل کېدل. د خمیني پلویان او د اخواني تنظیم غړي به سمدلاسه له منځه وړل کېدل." (67) په خلقي او وروسته په پرچمي دوره کې اعدامونه ایډیالوجیکي او سیاسي وو. هغوی به بندي کېدل او اعدامېدل، چې چاروا کیو به هغوی د خپلې ایډیالوجۍ، د خپل حکومت او د خپل "انقلاب" دښمنان ګڼل، یا به یې له حکومت سره په قول او عمل کې مخالفت کاوه، خو په خلقي دوره کې له بندیانو نه د تحقیق لپاره کومه خاصه خپلواکه محکمه جوړه شوې نه وه، نو په خلقي دوره کې بندي کېدل، کړول کېدل او اعدامېدل د اګسا له لارې کېده. داچې د اعدام حکم په مشخص ډول چا ور کاوه، په یقین

سره معلومه نه وه. د امنيتي څانګو چارواکيو او په سر کې اسدالله سروري په اعدام کې لوی لاس لاره، نو ويل کېدای شي چې د بندي کولو، کړولو او اعدامولو مسؤلان د ګوند او حکومت سروالان، د امنيتي څانګو چارواکي او جلادان وو. معلومه نه ده، چې له دوی نه به کوم چا د اعدامونو مخالفت کړی وي؟ لکه چې هېڅ چا مخالفت نه وي کړی. د اعدام په سر خو هېڅ چا وظيفه هم نه ده پرې ايښې.

دوی له نورو سره موافق وو، چې د نظام دښمنان دې د انقلاب ضد په تور وځپل شي. دوی په واقع کې د غه ځپل د خپل نظام د ټينګښت لپاره حتمي ګڼل. د پولټبورو غړي او د کرنې او اوبو وزير صالح محمد زيری لاوايي، چې دده ملګرو د انقلاب د مخالفانو بندي کول، کړول او وژل ستايل: "موږ ټولو په تېره هغو لارښوونکو چې امنيتي چارې يې په غاړه وې، همدا ويل چې په ځينو ځايونو کې ګاونډيان او داخلي ارتجاع ګډوډي رامېنځ ته کوي، چې بايد وځپل شي. موږ ټول په دې عقيده وو، چې د فرانسې او اکتوبر ستر انقلابونه د همداسې مقاومتونه سره مخامخ شوي وو. له دې کبله زموږ واکدارانو دغه مقاومت سخت ځپي او موږ يې دد غه کار ستاينه کوله او دغه مو قاطعيت باله[98]." په دې ډول دوی که څه هم په ظاهر کې تحول غوښته، په واقع کې يې مکاني او زماني تغييرونه، نه منل او په هغه سربېره افغانانو ته يې د خدمت په نامه افغانان له مېنځه وړل.

# پینځم څپرکی

## د خلکو پاڅونونه

### لومړنۍ خبرې

هغومره پاڅونونه، چې په افغانستان کې په خلقي دوره کې د سره بېرغ له هسکېدلو نه وروسته په څه کم یوه کال کې شوي دي، بل وخت په د غومره موده کې نه دي شوي. خلقي حکومت، چې د باندنیو فکرونو او طریقو پر بنسټ چلول کېده، ددغسې ګوند په انحصار کې و چې غړي یې په حکومتي چارو کې بې تجربې او د اجتماعي دودونو او جوړېښتونو مخالف وو. سره له دې هم حکومت د هغو له لارې خپل پارونکي پروګرامونه زیارکښو خلکو ته د خدمت په نامه پلي کول، خو څنګه چې دوی دولتي قدرت په کود تا سره نیولی و، وېرېدل چې مخالفین به په کود تا سره هغه ترېنه ترلاسه کړي، نو دوی خپل مخالفین ځپل. په دغه حال کې مخالفینو ته بله لار نه وه پاتې، خو دا چې د دوی پر ضد عمل وکړي. په نتیجه کې په دغې مودې کې افغانستان په زیاته اندازه د پاڅون، وژنې، ځپلو، بندي توب او کړولو ډګر شو. سره له دې هم چارواکیو له حفیظ الله امین نه پرته، هغه هم په اخر وخت کې، له دغو پېښو نه د عبرت درس وانخیست. دوی په خپل ګوند، په خپل حکومت، په خپل پوځ او هم د شوروي اتحاد په ملاتړ ډاډه وو. له همدې امله نور ګوندونه په تېره چپي او اسلامي ګوندونه ورسره دښمن او زیاتره افغانان ورسره مخالف شول او کړکېچ د غومره پراخ شو، چې په په رسمي ګوند یې هم لار

ومونده او په ډله يې وويشله، خو واکمنه ډله يې لا هم په هېواد حاکمه وه، ترڅو په پای کې شوروي اتحاد په خپل نظامي پوځ وځپله.
لکه چې دمخه ویل شوي، د سره برېغ له پورته کېدلو نه وروسته د هېواد په ډېرو سيمو کې واړه لوی پاڅونونه ډېر وشول، خو د ټولو په اړه معلومات نشته. د ټولو په هکله ليکنې نه دي شوي او حکومت هم په ممکن ګړنديتوب سره هغه وځپل. تراوسه دغسې څېړونکي هم ليدل شوي نه دي، چې دد غو پاڅونونو په هکله له خلکو سره مرکې وکړي او په هکله يې معلومات او واقعيتونه راټول کړي، خو د يو شمېر پاڅونونو په اړه ليکنې شوي، چې د هغو پر بنسټ د نېټې په رعايت سره د غه ليکنه برابره شوې ده. د غه ليکنې د هرات، بالاحصار، اسمار، دره صوف، پلخمري او د چندول پاڅونونو په هکله دي. دا به د پاڅونونو پوره بيان نه وي، خو د هغو لومړی منسجم بيان به وي، چې د پاڅونونو د عمومي تصوير يو لنډ تصوير ورته ويل کېدای شي.
دغه ليکنه ددې لپاره شوې، چې لوستونکي ددغو پاڅونونو په واقعيتونو پوه وي او درک کړي، چې هغه د کومو رسمي سياستونو او د هغو د څه ډول عملي کولو او د هغو په برابر کې د خلکو د څه ډول غبرګونونو او ځوابونو پايلې وي. څنګه چې په جنګونو کې انسانان وژل کېږي، د جنګونو بيان به په خلکو کې لږ تر لږه د جنګ ضد روحيه پياوړې کړي.

## د هرات لوی پاڅون

هرات څنګه چې په يوې ښېرازې سيمې کې پروت او هري رود او نورو ډېرو وړو رودونو نه برخه من دی. له لرغوني زماني نه راپدېخوا د انسانانو ټاټوبی دی. لرغونی نوم يې "اريا" يا "هري" و. دغه نوم په اصل کې د هري رود له نوم نه اخيستل شوی، چې لرغونی نوم يې هري

وا ) Harivo ( يا اريوس ) Arius ( و او په اسلامي دوره کې هرات شو. لهراسپ يې بنياد ايښی، گشتاسپ پراخ کړی، بهمن ښه کړی او لوی سکندر بشپړ کړی دی. د محلي روايت له مخې د ښار زړی د شميران په نامه يو ځای و، چې وروسته يې ځای د هزار جريب ښار ونيوه، خو هزار جريب زر ترک شو او شميران بېرته ښار غوره شو او لوی شو.
په هرات کې په تاريخ کې سلطنتونه جوړ شوي او بيا بانډنيو ړنگ کړي او ښار يې ويجاړ کړی د، خو ښار هر ځل د خلکو په همت او د نهرونو او د سيمې د ښېرازتوب له امله بېرته ودان شوی او لا ښه شوی دی. د ښار له پېنځو لويو ورو نو څخه پېنځه سړکونه غځېدلي او د ښار په منځ کې په چارسو )چارسوق( کې سره يوځای شوي دي[1].
د ثور له کودتا نه دمخه د هراتيانو په ژوند کې څرگند ښه والی راغلی و. له يوې خوا ايران د خواريکښو هراتيو لپاره د کار او پيسو منبع شوی و، ان تر دې چې هرات د زراعتي کارگرو له لږوالي سره مخ شوی و. له بلې خوا يو شمېر هراتيان د سړکونو او شخصي ټرانسپورټي وسيلو په ښه والي سره د هرات_ايران او هرات_کابل ترمېنځ سوداگری بوخت شوي وو. پانگه هم په کار ولوېدلې وه، عصري ودانۍ ډېرې شوې او کرنه هم ښه شوې وه. ډېرو کورونو کې عصري مالونه، ټرانسټري راډيوگانې او ټيپونه هم رواج شوي وو. له پخوانه په هرات کې د سواد، شعر او شاعرۍ او فرهنگ سويه هم لوړه وه. هرات په کال 1349/1970 کې يوولس ولسوالۍ او يوه علاقه داري او تر اوو لکو نه زيات نفوس لاره. د هرات د ښار نفوس دره اويا زره تنه وو.
په هرات کې خلک د ځمکې د ويش په پروگرام سره هغومره نه وو تور بدلي، چې د چارواکيو په هغه زيږ چلند سره تور بدلي وو، چې په تېره د لويانو د زده کړې په کورسونو کې يې ورسره کول. ضابط درويش خان د خلکو د توربدلو لوی

عامل و. دی په دغه خام فکر و، چې افغانستان "فیوډالو" خراب کړی او چې دوی ورک شي، عدالت به خوندي او وطن به سمسور شي. ده د ثور له کودتا نه وروسته د مهري لېسې یوه ښځینه زده کوونکې، چې د یوه شتمن لور وه، په رڼا ورځ ووژله او د هغې له جسد نه يې د الماسو ګوته په سختۍ سره واېستله او خپله کړه. وروسته، چې دی د پښتون زرغون په ولسوالۍ کې د یوې پوستې قوماندان وټاکل شو، له یو څو ملګرو سره د یو څو خانانو مېلمه شو. مېلمستیا په خوښۍ سره پای ته ورسېده او له هغه وروسته دروېش خان خپل پېنځه کوربانه په خبرو خبرو لېرې بوتلل او هلته ملګرو يې د هغه په آمر له مېنځه یووړل. د پښتون زرغون ولسوالۍ د هرات ښار د سهېل ختځې په اتیا کیلومترۍ کې پرته ده.

په هرات کې د لیک او لوست زده کړې کورسونو ته د ښځینه او نارینه لویانو کشول سختې پارونې وکړې. په کورسونو کې د ښځو ګډون ته هغه څرګنده وه. د کورسونو ښوونکي نارینه ځوانان وو، ځینو يې ښځې کورسونو ته د ننوتلو په مهال لټولې. د کورس یوې مېرمنې، چې نوې واده شوې وه، خپل خسر ته طعنه ورکړه، چې یا خپل ننګ پرځای کړه یا په ما سمه مرده ګاوي وکړه[2]. د حوت په نهمه ورځ د سواد زده کړې کوم هیئت چې د ولسوالۍ په سلیمي کلي کې د بره و، د خلکو له خوا ووهل شو او له کلي نه واېستل شو. په بله ورځ یو ساتنمن له خپلو دوو ملګرو سره هم په همدغه ډول له کلي نه واېستل شو. دوی هلته تللي وو، چې د کورس د شړل شویو ښوونکیو حیثیت پرځای کړي. له هغه وروسته د سلیمي کلي او نورو کلیو خلکو د جمعې ورځ )د حوت 11( د جهاد ورځ وټاکله، چ د یلان دښتې په لوی جومات کې به اعلام شي. د جمعې په ورځ همدغسې و شول او د جهاد شین بېرغ هسک شو. ډېر زر د هغو د ځپلو او کرارو لپاره د هرات له

يول سمې فرقې نه يو كندك سرتېري د سليمي كلي ته لاړل، دواړه خواوې سره ونښتلې او يو شمېر ملكي كسان ټپي او ووژل شول. سره له دې هم ناارامي د درې ورځو لپاره روانه وه او د لوى جومات خطيب نثار احمد له مېنځه يوووړل شو[3].
دا د هرات د لوى پاڅون لومړى ګام شو.
د هرات ډېر مخور او روحانيان هم په زندان کې واچول شول. يوه ليکوال دوى "زر دولس سوه" ښودلي، چې وروسته د پاڅون په وخت کې ازاد شول. دى دا هم وايي، چې "کمونستانو به د هرات پوځي چاونۍ ته هره ورځ د هرات سيمې سپين روبي، علماء او روحاني خلک راوستل... څو ورځې پس به په خپله پوه شوم، چې وژل شوي دي.[4]" د هرات اولسمه فرقه، چې ناارامه شوې وه، شپږ زره سرتېري لرل. د ناکرارۍ لوى لامل يې دا و، چې هلته لکه په نورو پوځي قطعو کې د ټيټو رتبو ګوندي افسران په لوړو مقامونو ګومارل شوي وو. د هرات فرقې په سر کې د سيد مکرم په نامه يو تورن خلقي افسر کېنول شوى و، چې "ټول غټ افسران به ورته په سلامي ودرېدل." ډګروال مير علم ساپى وايي، چې حتى د کابل د حربي پوهنتون د اخري ټولګي ځينې خلقي ګونديان په خوا له دې، چې فارغ شوي وي، هم په مقامونو ګومارل شوي وو. "ددغو افسرانو پلرونو او اقرباوو به په کلي او ولس کې برېتو نه تاوول او خلکو ته به يې ګواښونه کول." بله دا چې د ثور له کودتا نه وروسته ډېر شوروي مشاوران په پوځ کې ننوتل. "يواځې د هرات فرقې ته پېنځه اويا تنه روسان راغلل.[5]" ددغو روسانو پوځي سويه هم ښکته وه او سربېره پر دې، چې "ملحد وو" په ګېډه ماړه نه وو. "موږ او دوى به په يوه وخت کې ډوډۍ خوړلو ته لاړو. موږ به لا دوه مړۍ نه وې کړې، چې دوى به هرڅه خړپ وو." د همدغو مشاورانو په مشوره د لوړو افسرانو واک کم شوى

و، په دې چې دوی د هغو په فکر له دولت سره د زړه کار نه کاوه او لوړ مقامونه د ډاډ وړ افسرانو ته ورکول کېدل. ډګروال ساپی هم د دوی په مشوره د یوې اونۍ لپاره په فرقه کې بندي شوی و. په نتیجه کې د غیر ګوندي افسرانو او شوروي مشاورانو ترمېنځ حساسیت تر دې درجې پورې رسېدلی وو، چې د ساپي په وینا "موږ ټولو افغاني پوځیانو له دوی نه کرکه کوله."(6) په دې سربېره ګوندیانو په فرقه کې لمونځ کوونکي افسران هم بندي کول "او که به یې د ګرفتارۍ وس نه کېدو، د هغه ځار نه به یې کوله، تر څو د هغه د ګرفتارۍ... طرح جوړه کړي." ګوندیانو به هغوی د اخوانیانو په نامه یادول. څنګه چې په فرقه کې ګوندي افسران تر نورو لږ وو، دوی په وېره کې شول. بیا یې یو شمېر مخالف افسران د پېژند د مدیر په ګډون په یوه او بل نامه کابل ته لېږل، چې بیا ونه لیدل شول. ساپی وایي، چې "په دې وخت کې موږ خلکو پټ تحریک هم شروع کړی و، ترڅو دوی څه غوښتل موږ پرې ړومبي شو."(7)

د هرات د پاڅون په اړه لیکنو کې د فرقې رول په څنګیز ډول شوی، په داسې حال کې چې د ډګروال محمد علم ساپي د هغې رول د مخکې ښودلی. په دې ډول، چې په هغه کې یو شمېر افلسرانو د "ملي اسلامي انقلاب" په نامه اول په پټه او بیا په څرګند ډول برخه اخیستې او په اخر کې یې په شریکي ډول فعالیت کړی. ددغو افسرانو په اړه به د پاڅون په پای کې وګړ پېرم او د پاڅون بیان به د ساپي په وینا پیل کړم، چې وایي: "موږ دوی ]د هرات ښار خلکو[ ته بولۍ ورکړه. دوی د بولۍ مطابق حرکت شروع کړ. په بولۍ کې د غو خلکو ته دا هم ویل شوي وو، چې د ښار امنیت خراب او ګډوډ پیدا کړی. د غو خلکو همدغسې وکړل."(8)

پاڅون لکه چې دمخه وویل شول، د پښتون زرغون ولسوالي د سلیمي له کلي نه د کب په یوولسمه

پيل شو. له هغه وروسته د غوريان ولسوالۍ ناکراره شوه. اول يو څو کسو د ځمکو د وېش سندونه د ولسوال په مخ کې د اعتراض په ډول څيرې کړل، د ولسوال په امر هلته بيا يو څو تنه ووژل شول. له هغه وروسته ډېر خلک د کب په اتلسمه د ولسوالۍ په مرکز توی شول او محاصره يې کړ او ګوندي منشي نسيم يې له مېنځه يووړ، خو ولسوال له يو دوه ملګرو سره د شپې په تياره کې په دې بريالی شو، چې د هرات ښار ته ځان ورسوي او لوړ چارواکي په پېښې خبر کړي. خلک په پوځ او هوايي بمبارۍ سره خواره شول او ارامي په ظاهر کې خوندي شوه، خو د غه وخت د هرات ښار ته نږدې د زنده جان د ولسوالۍ او ګذرې ولسوالۍ خلک هم جګ شوي او د ځمکې د وېش يو څو ګونديان يې له مېنځه وړي وو. ګذره د ښار شمال او زنده جان د ښار جنوب په څلوېښت کيلومترۍ کې واقع دي. دواړه ولسوالۍ په يو څه انساني تلفاتو سره د حکومت لاس ته ورغلې او پاڅون کوونکي په شا او خواره شول[9]، خو د پاڅون په هوډ ټينګ ولاړ وو.

د کب په 24مه د پنجشنبې په ورځ د هرات ښار خلک د حکومت پر ضد جګ شول. دا وروسته له هغه و، چې بهاءالدين خطيب د هرات په لوی جوماتو کې د کب په اتلسمه يانې د غوريان ولسوالۍ د پاڅون په ورځ د هرات د عالمانو له خوا جهاد اعلام کړی و. ورپسې حاجي ايوب د جهاد د ضرورت په اړه د صبغت الله مجددي او نورو په لاسليک دغسې پېغام پاڼې په خلکو وېشلې، چې خلک يې لوی پاڅون ته بلل. "مومنان پاکباز هرات و مجاهدان فدايی را حق برسم نياکان پاک بيک قيام عمومی و هنگامی بپردازيد."[10] د جهاد اعلام، چې په واقع کې د جنګ اعلان دی، په اصل کې د دولت سروال له صلاحيتونو او امتيازونو څخه دی، خو دلته هغه د هرات عالمانو خپل کړ او خلکو هم پرې عمل وکړ. په دې ډول په افغانستان کې اول

په خلقي او وروسته په پراخه توګه په پرچمي دوره کې د جهاد اعلام واک د ټولنې له سروال نه ديني عالمانو ته انتقال وکړ، چې هغه د نارامۍ او بې ثباتۍ يو عامل شو. په دغو پېښو سره "در همه اطراف و نواحی شهر و ولسوالی های هرات يک امادگی کامل روانی برای قيام عمومی گرفته شده بود." له بلې خوا حکومتي چارواکيو هم "خود را اماده رويارويی به اين قيام همگانی تاخته در هر قسمتی از شهر و ولسوالی ها سنگرها را برای اين امر تهيه ديده بود و توسط دو طياره کشاف وادی هرات را بگونه مداوم ديده بانی ميکرد."(11)

د کب په 22مه د ګذرې ولسوالۍ خلک د ګل محمد تيزاني په مخکې بيا په حرکت راغلي وو. ګل محمد چې په "ګلکي" يادېده او د خپلې مجاهدې او زړورتيا له امله "مجاهد بزرګوار" نوموړی شوی و، په اصل کې د "بدمعاشانو د يوې ډلې" سروال و، چې له هغه نه په هرات کې "د هر سړي وېره کېده." ده به ويل، چې "زه نور في سبيل الله جهاد شروع کوم، ګوندې خدای ج را ته تېر ګناهونه معاف کړي." د زمري په شان به يې په ملحدانو ورټوپ کړ." دی دا هم وايي، چې ګل محمد "په اخر کې يو داسې غازي او مجاهد جوړ شو، چې نن سبا د هغه مثال اډو پيدا کېږي نه."(12)

د ګذرې کابو دوه زره خلکو د روضې باغ څنګ له کې تېره کړه او په سبا يې ددې پرځای، چې د ولسوالۍ په مرکز ورتوی شي، د ښار په لور روان شول. د علاقه دار د کانونو په برخه کې له ګل محمد تيزاني او ملګرو سره يې له ګذرې او انجبل نه نور خلک هم ورسره ګډ شول. په دې ډول د پنجشنبې په ورځ د کب په 24مه " از چار سمت هرات کفن پوشان رزمجو و دلفريبگان راه شهادت در مسيری در حرکت بودند تا در مرکز شهر نفوذ کنند."(13) دغه ګڼ خلک، چې له پل مالان څخه

واوښتل، د پل کار په برخه کې له ټانکونو نه په پرله پسې ډول ګولۍ پرې واورېدلې. سره له دې هم په داسې حال کې چې شنه بېرغونه يې په لاس او د تکبير نارې وهلې، مخ په وړاندې تلل او "ګلکی" يې دمخه په يوه ګړندي موټر کې روان و، چې نوی يې له حکومتيانو نه نيولی و. په ښار کې دننه دکانداران هم يا په خالي لاس يا له بېل او کلنګ او د وسپنې له ډنډو سره ورګډ شول. که څه هم له ټانکونو نه پرې ډزې کېدلې او يو څو تنه يې ووژل شول. په همدغه حال کې د کندهار وره ته ورسېدل، چې هغه بيا د "انقلاب وره" باندې ياده شوه. په دغه وخت کې له يوې الوتکې نه بمونه هم پرې وغورځېدل، چې "چندين خانه را ويران و اهالی ان را به شهادت رسانيد." د عراق وره کې هم حال همدغسې و. د لارې په اوږدو کې د باباجي، سرحبيره، مولوی صاحجب زيارت او وردګو او عربو له محلو نه هم خلک له دوی سره ګډ شول. دلته د و ستوک انترک روسي استازی له دفتر نه وايستل شو او ووژل شو او په وچلي يې ولیکل شو: "اينجا بخارا نيست." له هرې خوا نه بېحسابه خلکو د نوي ښار د چارسو او د محبس په لور مخه وکړه، که څه هم په لار کې د ايماق د برق له کارخانې، د بهزاد هوټل او نورو ځايونو نه پرې ډزې کېدلې. دوی په دغسې تيزګې جذبې سره مخ په وړاندې روان وو، چې "نه بنام سنی و شيعه، نه بنام مکتبی و غير مکتبی، نی بنام جمعيتی و حزبی، نی بنام عالم و متجدد هيچ نوع اختلافی ايشان را از جهاد يکپارچه و برحق شان باز نميدارد."[14] د ځلور لارې په باغ کې يې د راډيو مرکز له کار نه وغورځاوه، خو محبس ته د تګ په لار کې يوه ټانک نه، چې شين بېرغ پرې باندې ځړول شوی و، خلک په ګوليو ووېشتل شول او دوی ونه شو کولی چې محبس ونيسي. د همدغې ورځې په ماښام زوروور باران وشو او کراچۍ والو دلته هم لکه په نورو

ځایونو کې "بدون وقفه اجساد پاک شهدا را می بردند و دفن میکردند."(15)
ښاریان او د شاوخوا کلیو خلک د شپې په راتلو سره خپلو کورونو ته او نور د ښار جوماتونو ته ننوتل یا د ښاریانو مېلمانه شول. د هرات لوی جومات کې اټکل یو نیم زر کسان ځای پر ځای شول. وروستیو په دغه ډول "در داخل مسجد جامع و با موضع گرفتن در منارهای سر بفلک کشیده مسجد جامع ناخود اگاه خود ها را در محاصره دشمن مجهز با تانک و توپ اسیر کردند، در حالیکه قبلاً دشمن محیل در مناره های مسجد جامع سنگر گرفته بود." بیا نو د تیارې په خورېدلو سره ګوندیان او حکومتیان "با تانک ها و تمام تجهیزات به شهر روی اورده زخمی های خود را به شفاخانه برده... با تجهیزات مطمین بر مسجد جامع حمله کرده... مجاهدین پاکباز را از انجا ګرفتار کرده... بحیث گروگان گرفته بودند. عده ای از ایشان را به زلمی کوت انتقال دادند."(15) سره له دې په بله ورځ )جمعه، د حوت 25مه( خلک له هرې خوا په تېره د ښار له لویدیځ نه په ښار ننوتل او په تنکۍ غرمه کې د کندهار وره ته ور سېدل. د مؤلف یوسفي په وینا "در حقیقت روز جمعه روز فتح و پیروزی جانبازان حماسه افرین در تمام نواحی و مواضع شهر بود." خو د امنیې قومندانې محاصره وه، لوی محبس د حکومتیانو په لاس و او پوځې فرقه لا ځای پر ځای وه. په داسې حال کې، چې حکومتې قوتونه یو ځای بل ځای مات شوي او په شا تللي وو، جنګې الوتکې )میګ 21، میګ 23 او توپ لرونکي هلیکوپترونه( دپاسه ښکاره شول او "بمبهای خانمانسوزی، در نواحی کاربار، اسیاب کلوخی، بکر آباد، بادمرغان، نحور درواز، محله نو، کلاب، پل رگینه، باغدشت، گازرگاه شریف، تخت صفر، زیارت مولانا عبدالرحمن جامی، برامان

و شهر نو... پرتاب می گردید.)[16]"

د کب په 26مه د هرات اولسمي فرقې په څرګند ډول د پاڅون کوونکيو خوا ونيوله او د هرات ښار حکومتيانو له کنټرول نه وايستل شو. د پاڅون تر وخته پورې د هرات فرقې په ماهي فروشانو کې تطبيعات کول، شايد ددې لپاره چې حکومت خلکو ته خپل قوت وښيي. د فرقې درنې وسلې لکه هاوانونه، اوبو سونه او نور درا نده توپو نه به هلته وړل کېدل او د هغو نندارې ته به "د هرات ټول پوځي او ملکي اراکين راتلل.)[17]" خو په فرقه کې لکه چې دمخه ويل شوي، مخالف افسران تر ګوندي افسرانو نه ډېر او موقع ته سترګې په لار وو. لکه چې دمخه ويل شوي، دوی ښاريان د پاڅون لپاره هڅولي وو. د پاڅون په پيل سره تطبيقات ودرول شول او وسلې چاونۍ ته راوړل شوې. "په دغه وخت کې روسانو دغو وسله والو ته بولۍ ورکړه، چې د هرات ښار او شاوخوا کلي په توپونو وولي. دوی په انداخت شروع وکړه." ساپی وايي، چې دوی "ټول زموږ ملګري او شاګردان وو.... دوی له موږ سره په پلان کې شريک وو. دوی صرف د بولۍ منتظر وو." نو دوی نښې نه ويشتلې او "روسان پوه شول، چې افغاني افسران خپل ورونه عزيزان نه وژني، نو په خپله يې نښانونه ونيول." بيا کله چې افغان افسران په خپلو ځايونو کې کېناستل، ساپی وايي چې "ما دوی ته د روسانو او کمونستانو په طرف د اوربل کومانده ورکړه او شېبه پس ټول کمونستان او روسان)[18]" له مېنځه يووړل شول. همدغه پېښه به وي، چې ليکوالو ددغې پېښې صحنه د زلمي کوټ د ډوډۍ او کنفرانس سالون ښودل، چې هلته اټکل شپېته حکومتي افسران او روسي مشاوران د جګتورن نور محمد توپچي افسر او جګړن عبدالعزيز د توپچي کنډک قومندان د ماشين ګڼو په پرله پسې ډزو سره له مېنځه وړل

شوي دي[19].

په هر حال، د ټولو ليکنو له مخې جګتورن نور محمد لومړی د هاوان په انداختونو او بيا د توپونو په وېشتلو سره بې ساري فعاليتونه وکړل او غټ نوم يې وګټه، خو وروسته ګونديانو ته په لاس ورغی او هغوی په ډېرې بې رحمۍ سره وواژه. د ګونديانو ددغې وينا په ځواب کې، چې "تا غوښتل قوماندان شې" هغه ويلي و، چې "نه ما غوښتل جمهور رييس شم او چې د شپانه زوی د غې رتبې ته رسېږي، زه تر چا کم يم؟"[19 الف]

په هر حال، وروسته د ولايت مرکز او د فراموز خان باغ کې د فرقې مرکز ووېشتل شو او والي نظيف الله نهضت او د فرقې قوماندان سيد مکرم شاه له روسي مشاور سره په ګډه د انضباط په کاليو کې هوايي ميدان ته او بيا شينډنډ ته لاړل او ښار د پاڅون کوونکيو په لاس ولوېد. يواځې هغه حکومتيان او ګونديان ژوندي پاتې شول، چې "خود را بقوماندانی امنيه ولايت، ليسه زراعت، شفاخانه ملکی و تعمير سينما رسانيدند."[20] په دغه وخت کې جګړن شمشېر خان دغسې زړروتيا او وړتيا وښودله، چې ټولو ليکوالو ستايلې. ډګروال ساپی لا وايي، چې "موږ ټول دده عقل او تدبير ته تسليم وو."[21] د محبس چارواکيو بې له مقاومت نه د محبس ورونه خلاص پرېښودل او "زر دولس سوه" بنديان ترېنه ووتل. په خلکو کې د خوښۍ څپه خوره شوه، که څه هم په زرګونو خپلوان او وطنوال يې له منځه تللي وو. دا د شنبې ورځ د کب 26مه او د مارچ 16مه وه. دغې پېښې په اړه په هرات، کابل او مسکو کې ټېنګ غبرګون وښودل شو، چې زر به يې بيان کړم.

د حکومت په وړاندې د ملکيانو او نظاميانو دغه پېړوستون او بې ساری بری خلک نور هم په هوډ ټېنګ کړل. پېړوستون هغه وخت نور هم ټېنګ شو،

چې د فرقې ټوله سپکه او یو څه درنه وسله په خلکو وویشل شوه. وسلې په څلورو مرکزونو کې په خلکو په پوره نظم سره وویشل شوې او د وسلو ډیپوګانې تشې شوې. وسلې حتی د فراه او بادغیس هغه مخورو ته هم ورکړل شوې، چې رابلل شوي وو. د هرات ښځو ته هم د "اتلسو زرو میلو" په شاوخوا کې ټي. ټي توپنچې ورکړل شوې[22]. د یادولو وړ ده، چې د اسلامي تنظیمونو مجاهدینو، چې په کال 1992 کې د نجیب الله د حکومت له نسکورېدلو نه وروسته کابل ونیوه، وسلې او نور دولتي مالونه یې غصب کړل او د وسلو په سر یې سوداګري او جنګونه هم وکړل، خو په هرات کې دغو پوځي افسرانو وسلې په خلکو وویشلې. معلومه ده، چې دوی خپل ملي او اسلامي حرکت ته رښتین وو، چې هغه یې دمخه جوړ کړی او په شخصي کورونو کې یې پټې غونډې کولې. د جګړن شمشېر خان کور هم د دوی د غونډو یو مرکز و. داسې ښکاري، چې د ګوندیانو زور زیاتی او د پښتون زرغون وژنې هم عادي خلک او هم دغه افسران ډېر پارولي وو. پر هغه سربېره د شمشېر خان په قول "اوس خو ټوله مسئله د دین او خاورې ده" او ګوندیان او حکومتیان "... اکثره زموږ د اصولو لا څه کوې، بلکې د دین او عامو خلکو د عقیدې او رسم و رواج لحاظ هم نه کوې.[23]"

د غو مخالفو افسرانو دمخه مشر نه لاره، چې د هغه پر سروالي له پېښو او حکومت سره مقابله وکړي. ددې لپاره "د قیام په درېیمه ورځ د ملګرو له خوا په بست بابا کې یوه لویه پوځي جرګه جوړه شوه." تر دې وخته درېیو افسرانو نوم ایستلی وو او د مشرۍ لپاره په نظر کې وو. ډګروال میر علم ساپی د 33م غونډ قوماندان جګتورن نور محمد د ارکان رییس او جګړن بسم الله د توپچي قوماندان په پای کې د رایو په اتفاق پرېکړه وشوه، چې میر علم ساپي یې چې تر ټولو

مشر و"د آینده جهاد مشر او کوماندان وي."[24]
لکه چې دمخه ویل شوي، جګتورن نور محمد او
جګړن بسم الله په دغه پاځون کې غټه برخه لرله. د
مقاومت نوی نظامي قوماندانان دغه افسران غوره
شول: میر علم ساپی د فرقې قوماندان، جګړن داود
اپریدی د مخابرې بولندوی، جګتورن سردار
پکتیاوال د 33م غوند، جګړن شمشېر خان د دافع
ټانګ، جګړن وارث د 28م غوند، تورن عبدالخلیل
د دافع هوا او تورن نظر محمد پکتیاوال د
توپچي، خوله مقاومت نه اخوا د دوی سیاسي او
اصلي موخه معلومه نه ده. دا معلومه ده، چې د
دوی په بري سره د کب له 26مې نه تر 29 پورې د
پښتون زرغون، کرخ، غوریان، زنده جان، کهسان،
کشک، مګران، ادرسکن او او به ولسوالۍ ګانې او
د چشت علاقه داري یو په بل پسې د حکومت له
کنټرول نه ووېستل شوې. له چارواکیو نه ځوک
وتښتېدل او ځوک ونیول شول او له مېنځه یووړل
شول[25]. په دې ډول له ټول هرات نه د حکومت لاس
لنډ شو او خلقي حکومت د لومړي ځل لپاره له
یوه خطرناک ګواښ سره مخ شو.

دغه ګواښ ځکه خطرناک و، چې هرات د سرحدي
سیمې په توګه له کابل نه لیرې او ایران ته
نږدې و. بله دا چې کابل نه شو کولای غټه نظامي
قوه هلته واستوي. د پوځ د سیاسي آمر اقبال
وزیري په نظر "...دا وېره موجوده وه، چې که د
هرات فرقې د اړو دوړ ځپلو لپاره له کابله
ځخه قطعات واستول شي، په کابل کې کومه توطیه
ونه شي." د وزیري په وینا تره کي او امین په
دې فکر شول، چې له "... شوروي اتحاد په پټه
یو کنډک د مرستې په توګه وغواړي." عجبه یې لا
دا ده، چې د دوی په فکر دغه کنډک دې د شوروي
اتحاد د "آسیایي هېوادو له سرتېرو نه جوړ وي
او د وظئفې له اجرا کولو نه "یو دوه ورځې"
وروسته بېرته لاړ شي"[26]. ځومره خام او ځومره

ساده فکر!.
عجبه ده، چې خلقي حکومت د خپلو یاغي خلکو د ځپلو لپاره له یوه زبر ځواک ګاونډي هېواد نه پوځي مرسته وغواړي، هغه هم په خپلو شرایطو سره. د معاصر افغانستان په تاریخ کې دا لومړی ځل و، چې یوه برحال حکومت ددغسې مرستې غوښتنه کړې. دا هم یقیني نه وه، چې شوروي اتحاد به دغسې فرمایشي پوځي مرسته وکړي او که یې کړې وای ممکنه نه وه، چې په د غومره لنډې مودې کې یې خپل پوځ بېرته غوښتلی وای، په تېره هغه وخت چې په غالب احتمال ډېر سرتېري به یې وژل شوي وای. په داسې حال کې بیا طبیعي وه، چې شوروي اتحاد به له خلقي حکومت نه ډېر امتیازونه تلاسه کړي وای، چې د افغانستان په خپلواکۍ به ناوړی اثر کړی وای. لکه چې زر به ولیدل شي شوروي اتحاد له دغسې مرستې کولو نه ډډه وکړه، خو د داخلي ګډې وډې وضع د ارزونې لپاره یې شوروي نظامي هیئتونه افغانستان ته واستول او په دې ډول د افغانستان په چارو کې تر پخوا زیات دخیل شو.
د هرات ښار له سقوط نه دوه ورځې وروسته )مارچ 18( تره کي د شوروي اتحاد صدراعظم کاسګین سره له کابل نه په ټلیفون کې وغږېد. دا یوه ډېره مهمه تلیفوني غږېدا وه، په دې ډول چې تره کي لکه د یوه عارض په شان د خپل حکومت بدحال کاسګین ته وړاندې کوي او ورنه غواړي، چې "... په مېړو او وسلو سره ورسره عملي او تخنیکي مرسته وکړي" او که نه "... یاغیان به کندهار او بیا کابل ته مخه وکړي." دی دا هم ورته وایي، چې موږ کافي پوځ نه لرو او "ممکنه نه ده، چې له نورو ښارونو څخه هرات ته سرتېري واستوو، ځکه چې په د غه کار سره به زموږ وضع په نورو ښارونو کې ضعیفه شي." خو کوسګین ورته وایي، چې په دغه کار سره به "... په دوو ساعتونو کې ټوله نړۍ خبره شي

او هر یو به نارې سورې کړي، چې شوروي اتحاد په افغانستان کې لاسوهنه پیل کړې ده." سره له دې هم تره کی ورته وایي، چې "موږ تاجکان، ازبکان غواړو چې راواستول شي." دوی به په افغان یونیفورم کې وي او هېڅوک به یې ونه پېژني، چې دوی بهرنیان دي، خو کوسیګین ورته وایي، چې "... ته مسئله ساده خیال کوې، په داسې حال کې چې دا یوه پېچلې سیاسي او بئن المللي پرابلم دی." سره له دې هم کوسیګین دې نه خواشینی کوي او ور ته وا یي، چې په دې اړه به موږ سره مشوره و کړو او بیا به ځ خپل ځواب درکړو[27].
د مارچ په شلمه امین د اقبال وزیري په ملګرتیا د کابل په عسکري کلب کې د شوروي اتحاد له دفاع وزیر او ستینوف سره په ټلیفون کې وغږېد. د خبرو موضوع بیا هم د هرات وه، خو او ستینوف وویل، چې ښه به دا وي چې تره کی د خبرو لپاره مسکو ته راشي او هغه و، چې "مازیګر وختي نور محمد تره کي په ځانګړې الوتکه کې مسکو ته سفر وکړ، چې لوی درستیز محمد یعقوب ورسره ملګری و[28]." تر هغو پورې د شوروي اتحاد لویانو فیصله کړې وه، چې نه غواړي افغانستان ته په دغه وخت کې خپل سرتېري واستوي، ځکه چې په دغه کار سره به له امریکا سره د سالټ_2 خبرې په ټپه ودرېږي، د بریژنیف او د امریکې ولسمشر جمي کارتر لیدل به ونه شي او له اروپایي هېوادونو سره به د شوروي اتحاد اړیکې خړې پړې شي او په عمومي ډول د ډېټانټ یا د کړکېچ د دفع فضا چې په ډېر زحمت سره راوستل شوې ده، په یو ځل هوا وکړي. خو په عین حال کې دوی ټولو د باندنیو چارو وزیر اندري ګرومیکو له دغه نظر سره موافقه ښرګنده کړې وه، چې "افغانستان باید موږ هېڅکله له لاسه ورنکړو." نو دوی سره فیصله وکړه، چې له یوې خوا به

کابل ته وسلې او نظامي مهمات او سل زره ټنه اوړه ورکړل شي او د شبرغان د غاز بیه په زر مکعب متر باندې له پېنځلسو روبلو نه 25 ته لوړه شي او له بلې خوا به د ایران او پاکستان حکومتونو ته اخطار ورکړل شي، چې د افغانستان په چارو کې له لاسوهنې نه ډډه وکړي.
په کابل کې حکومت دمخه څرګنده کړې وه، چې څلور زره ایرانیان په افغان جامه کې هرات ته ننوتلي او هلته یې ګډوډۍ ته پکې وهلی دی. د شوروي اتحاد حکومت هم په همدغه نظر و. ګرومیکو لا ویل، چې د ارامي ګډوډونکي "د ایران او پاکستان له ملکونو نه استول شوي دي، ددې لپاره، چې په افغانستان کې یې ځانونه پټ کړي وي، په افغان جامه کې ښکاره شول او دغه بغاوت یې وهڅوه." هغه دا هم وویل، چې "دغه ټولې پېښې نه یواځې په افغانستان کې، بلکې په ګاونډیو حکومتونو کې د چین په ګډون د امریکې په دستور ترسره کېږي." لا مهمه دا ده، چې کوسیګین په تره کي او امین هم شکمن و. خپلو ملګرو ته یې کړه، چې "تاسې ممکن هرڅه ووایئ امین او تره کی یو شان له موږ نه رښتیني وضع پټوي. موږ اوس هم په دې نه پوهېږو، چې په افغانستان کې په رښتیا څه پېښېږي؟" د دوی دغه شک له دې ډډې نه هم و، چې تره کی په داسې حال کې، چې د کندهار او کابل له احتمالي سقوط نه هم اندېښنه ښکاره کړې وه، امین د هغه پرخلاف ګرومیکو ته ډاډ ورکړی و، چې د افغانستان وضع ښه ده او له باندې نه خطر نشته[29].
سره له دې هم نه شوروي لویانو او نه د خلقي حکومت سرانو د دوستۍ هغه تړون یاد کړ، چې د دوی ترمنځ دمخه شوی او پکې ویل شوي و، چې په هغه حال کې به په مشوره له یو بل سره نظامي مرسته کوي، چې له باندې نه پرې تجاوز شوی وي. دوی ته هم معلومه وه، چې دغسې تجاوز په هرات باندې نه دی شوی، که څه هم دغسې پروپاګند یې

کاوه. ایران ممکن د هرات په نارامۍ کې تحریکات کړي وي.

د مارچ په شلمه د شوروي اتحاد څلور لویان )کوسیګین، ګرومیکو، اوستینوف او پانوماریف( له تره کي سره په ګډه ولیدل. له بریژنیف سره ترکي بېل ولیدل. د معمول په شان د خبرو مزی له کوسیګین سره و. هغه سمدلاسه تره کي ته ډاډ ور کړ، چې د افغانستان له دموکراتیک جمهوریت سره د شوروي اتحاد دوستي مشروطه او د لنډې مودې لپاره نه ده، بلکې "د عصرونو لپاره سنجول شوې ده." تره کي ته یې دا هم وویل، چې "موږ به په ټولو ممکنو وسیلو سره مرستې در چالان کړو. وسلې، مهمات به در واستوو، خلک به درولېږو چې د هېواد ملکي او پوځي چارو په اجرا کې به درته ګټور وي. ماهران به درواستوو، چې د ډېرو عصري ډولونو وسلو او نظامي ماشین په استعمال کې ستاسې نظامي کدرونه وروزي." د پوځي مرستې په اړه یې خپل پخوانی نظر په دغو الفاظو کې بیا ورڅرګند کړ: "په افغانستان کې زموږ د قوتونو پر ځای کېدل به سمدلاسه بین المللي ټولنه وخوځوي او څو اړخیزې ناوړې نتیجې به تولیدې کړي. دا به په واقع کې نه یواځې له بین المللي ټولنې سره جنګ وي، بلکې د یوه چا له خپلو خلکو سره به هم جنګ وي. زموږ ګډ دښمنان بس دغسې شېبې ته سترګې په لار دي، چې شوروي قوتونه په افغانستان کې ولیدل شي. دا به دوی ته پلمه په لاس ور کړي، چې د تاسې مخالف قوتونه ځای پر ځای کړي." کوسیګین دا هم وویل، چې "که زموږ پوځونه ننوتل، وضع به ستاسې په ملک کې نه دا چې ښه نه شي، بلکې لا به خرابه شي. څوک له دېنه انکار نه شي کولای، چې زموږ سرتېري به نه یواځې له بادنیو تېري کوونکیو سره وجنګېږي، ستاسې د یوې برخې له خلکو سره به هم وجنګېږي او خلک دغسې څه نه بښي. په دې سربېره همدا چې

زمونږ سرتېري له پولې نه واوښتل، چين او نور تېري کوونکي په تبرئه شي." کوسيګين تره کي ته ډاډ هم ورکړ، چې حکومت به يې د افغانستان په ګاونډيو هېوادونو کې د افغانستان په اړه له خپل نفوذ نه کار واخلي، خو " افغانستان بايد له ايران، پاکستان او هندوستان سره د ښو اړيکو د ښه کولو په لور د هغو پلمو د له مېنځه وړلو لپاره کار وکړي، چې دوی يې ممکن په افغانستان کې د لاسوهنې لپاره لري." تره کي بيا کوسيګين ته له خپلې وفادارۍ نه هغسې ډاډ ورکړ، چې لکه يو مريد خپل پير ته د زړه له اخلاص نه ورکوي "مونږ به له هېڅ چا سره هغومره نږدې نه شو لکه چې تاسو سره يو. مونږ له لېنن نه زده کړه کړې او لا هم ترېنه زده کوو." کوسيګين بيا ورته دا زېری ورکړ، چې مونږ به له زغرورو وسيلو سربېره څلور هليکوپتره او نور مهمات هم وړيا درکړو، لکه چې دوه ورځې دمخه مو دوه **MI-8** هليکوپترونه او نور مهمات دراستولي دي. تره کي د باندني تېري په مقابل کې "ضمانت" هم غوښته او ويې پوښته، چې "که له باندې نه په مونږ تېری وشو، تاسې به څنګه عمل وکړئ؟" د کوسيګين ځواب دا و، چې "مونږ کوښښ کوو چې دغسې څه پېښ نه شي." [30] تره کي بيا له بريژنيف سره د لنډ وخت لپاره وليدل. د بريژنيف په وينا تره کي "مسکو ته په يو څه پار بدلی حال راغی، خو د خبرو په وخت کې ورو ورو وغوړېد او په پای کې يې په ارامۍ او هوښيارۍ سره سلوک وکړ." [31] شوروي لويانو تره کي ته دا هم ياده کړه، چې حکومت دې خپل چلند يو څه نرم کړي.

تره کی په بله ورځ وطن ته ستون شو او حکومت يې لکه چې زر به وليدل شي، د شوروي اتحاد په الوتکو او هليکوپترونو او ورو وسيلو سره د هرات پاڅون وځپه، خو شوروي اتحاد له هغه

وروسته په افغانستان کې خپل شتون نور هم ټینګ کړ او په دې لټه کې شو، چې پرچمیان له خلقیانو سره په حکومت کې شریک کړي. که شورویانو د هرات پاڅون په ځپلو کې مرسته وکړه، لکه چې په بل څپرکي کې به یې بیان وشي، د سر په خلقیانو کې یې اختلاف هم خلق او ټینګ کړ او په دې ډول یې له خلقي حکومت سره د مرستې په نامه افغان سیاست په ژول ډول متاثر کړ.
دمخه ویل شوي، چې د هرات د فرقې له پاڅون نه وروسته د امنیه قومندانۍ له ټینګ حصار او یو څو نورو ځایونو پرته ټول ښار د پاڅون والو لاس ته ورغلی او حکومتي لوړ چارواکي د شین ډنډ هوایي ډګر ته تښتېدلي وو. دواړو خواوو ته له جنګ کولو او وژلو پرته بله لار نه وه پاتې او حکومتي لویان اندېښمن وو، چې که پاڅون زر و نه ځپل شي، ممکن نور ولایتونه یې هم له لاسه ووځي، نو حکومت پخوا له دې چې له شوروي نه یې نظامي مرسته ترلاسه کړې وي، په پوځي عملیاتو لاس پورې کړ. "روز دوشنبه 28 حوت از سر شب تا صبح تانک ها از قندهار وارد وادی هرات میشود... این منافقان با بیرق های سفید می آیند... مسلمانان پاک طینت... با ستقبال این قوا... می شتابند. به مجرد نزدیک شدن این قوا به زلمی کوت شش تانک... آنها... بوسیله قوای مسلح مسلمانان زلمی کوت به اتش کشیده می شوند." [32]
د ډګروال میر علم ساپي روایت تر دغه روایت یو څه توپیر لري. دی وایي، چې د کندهار د قوې په راتګ موږ خبر وو "موږ لا په چاونۍ کې وو، چې د کندهار مجهزه عسکري قوه راورسېده او په تعرض برید یې شروع وکړ... موږ هم د هغو سره د مقابلې ترتیب او تیاری نیولی وو. پوره درې ورځې ] موږ[ جګړه ورسره وکړه. الوتکو هم د دوی په ملاتړ بمبارۍ کوله، خو دوی بیا هم شکست وخوړ، وتښتېدل... ددې قوې د شکست نه وروسته

سمد ستي د پلچرخي پله مجهزه قوه راور سېده... د څلورو ورځو خونړۍ جګړې نه پس دوی هم وتښتېدل. له دې قوې سره هم د الوتکو ملاتړ وو. په دې وجهه موږ هم ډېر تلفات ولیدل."[33] ساپی بیا وايي، چې "روسانو... خپل کماندو پوځ هم د هرات د چاونۍ په برخه کې د الوتکو نه د پراشوټ په ذریعه پیاده کړ او چېرته لیرې به یې په غونډیو کې مورچل ونیوه. زموږ چې به څوک بهر ووتل، دوی به په نښان کې راوستل او وبه یې وېشتل." په پای کې دده په وینا "موږ په محدودو وسلو دومره کار وکړ، چې د روسانو کماندویي پوځ مو هم وارخطا کړ او په شکست یې شروع وکړه."[34]

د شوروي له کوماندوګانو نه په هرات کې کار اخیستل د شوروي لویانو د وینا پرخلاف وه، خو ساپی د هغو دیسانټ (له هوا نه ښکته کېدل) او د قیام کوونکو پرخلاف د هغو عملیات په غوڅه توګه یادوي.

په هر حال، د هغه په وینا شورویانو بیا له جنګي "وچت مادل" الوتکو نه کار واخیست او په چاونۍ یې بمباري پیل کړې، خو څنګه چې د ساپي ملګرو د چاونۍ په شاوخوا غونډیو باندې جګ خولي توپونه لګولي وو، د شوروي "خورا ډېرې الوتکې" راوغورځول شوې. نورې الوتکې بیا دومره هسکې الوتلې، چې د توپونو ګولۍ نه وررسېدلې. دغو الوتکو به چې "بم راوغورځاوه، یا به په هوا کې منفلق شو او یا به د هوا د فشار په وجه د چاونۍ (نه) بچ په کوم بل ځای کې وغورځېد، خو چې بم به په ځمکه ولګېد، په ځمکه کې به پېنځه ویشت متره ژور ښخ شو او بیا به یې انفلاق وکړ، تر دې چې په شاوخوا ځمکو کې به اوبه راوخوټېدې." دی اضافه کوي، چې "په هرات کې چې د سر او مال څه نقصان پېښ شوی، د همدغې الوتکې د ګوله ماری په وجه دی."[35]

یوسفي هم د ساپي د وینا په ملاتړ وایي، چې که څه هم د همدغو الوتکو له امله مجاهدین "از اطراف شهر و زلمی کوت از نواحی قریه شاطر، شیدایی و دامنه تخت صفر محاصره [شدند] باز هم نیروی دشمن در فراز زلمی کوت مواضع قوای عسکری مجاهدین قهرمانان براحتی پرواز کرده نمیتوانستند چه شدیداً مورد اصابت قوای دافع هوایی مبارزین قرار میگرفتند." له بلې خوا وزیري وایي، چې "د هرات فرقې ته د ټانکونو په رسېدو سره د انقلاب ضد عناصرو تښتېدل او د فرقې او د هرات د ښار کنټرول اعاده شو." د عملیاتو لپاره له کابل څخه د پاراشوټ له کنډک نه سرتېري او د دوو ټانکونو لپاره د شوبلو د څلورمې او پېنځلسمې لواګانو څخه یوه عمله هرات ته رسول شوې وه، د توپچې ریاست رییس انځرګل په مشرۍ[37].

په هر حال، دغه عملیات به ښه شدید وو، چې زلمی کوټ پوره وران شوی. د روایتونو له مخې ښار او فرقه له شپږو ورځو نښتو نه وروسته د حکومت لاس ته ورغله، خو نښتې لا هم روانې وې. له هغه وروسته د مقاومت افسرانو چریکي یا نامنظم جنګ ته ملا وتړله او دد غه مقصد لپاره یې یوویشت ډلې جوړې کړې، چې د "هر ګروپ تعداد څلوېښت تنه وو." په دغه لړ کې تورن "محمد اسماعیل خان د ملګرو په سلا مشوره ګلران ته لاړ او هلته په امور د جهاد سر شو."[38] څنګه چې دی په اصل کې د هرات یا شین ډنډ او سېدونکی و، چریکي جنګونه یې په هغه وخت کې او هم وروسته د یرغلګر شوروي پوځ په مقابل کې په مېړانه پرمخ یوول، خو نور افسران د چریکي جنګونو له نابریالي توب نه وروسته یا په جنګونو کې ولوېدل، یا له هرات نه ووتل. د ښار له سقوط نه ورسوته غټه نښته شاید هغه وي، چې د پل پښتون په برخه کې د یوه کنډک حکومتي سرتېرو او دغو افسرانو ترمېنځ وشوه. د ساپي

په وینا په دغې جګړې کې "پېنځه اتیا تنه مو د مقابلې خوا مړه کړل. زموږ یو غازي ورور شهید شو او بل سخت زخمي شو."[39] زخمي هماغه نامتو ګل محمد تیزاني مشهور په ګلکي و، چې ایران ته د ورلو په لار کې مړ شو. مؤلف عبدالعلي احراري هم کښلي، چې "مردم با استفاده از اسلحه غنیمتی که از ذخایر اسلحه فرقه 17 بدست اورده بودند، کمیته های چریکی در گوشه و کنار قرا و قصبیا تشکیل دادند و جبهه مقاومت را پدید اوردند."[40] له همدې امله به هم و، چې حکومت حتی په ښار باندې حاکمیت زر جاري کولی نه شو او د پاځون افسران لا هم پرې لاس بري وو. ساپی وایي، چې د جنګونو له امله "خلقي دولت او په خاص ډول د هرات ولایت او چاونۍ ډېره زیاته کمزورې شوې وه. هره شپه مو روسان او روس نوازان له کورونو نه راایستل او اسلامي محکمې ته مو سپارل." دی زیاتوي، چې "په دغه کال د هرات سپې خاربه شوي وو." د ښار امنیت د مجاهدو په لاس وو او دوی د پولیسو په تانو کې اړولي وو.

حکومتي چارواکیو هم له خلکو سره زیږ چلند کاوه او د نوي والي عبدالحی یتیم په مشری یې په انتقام لاس پورې کړ. هر هغه څوک ځپل کېده، چې یې په پاځون کې برخه اخیستې وه، یا یې له پاځون والو سره مرسته کړې وه. د یوسفي په وینا "مردم و اهالی هرات دسته جمعی از کوچه و بازار دستگیر و رهسپار زندان میگردیدند. قوای ضربه با تانک و توپ هرات را محاصره نمودند و [کسی] را که در میافتند، به سلول [زندان] می انداختند. این حالت اختناق در دوازده ولسوالی و علاقه داری هرات مرد افرین ادامه داشت."[41] د کلیو او باندېو لویان هم نیول کېدل او له مېنځه وړل کېدل. د هرات په کوڅو کې جسدونه یو ځای بل ځای پراته وو، ډېرو ښاریانو ځپل مړي

په خپله ښخ کړل او نور ډېر جسدونه په موټرونو کې د فرقې شمالي خوا کې د يوې غونډۍ شاته په دوو چولونو کې واچول شول او خاورې پرې واړول شوې. د ښار کوڅې او سړکونه تر دې حده په وينو ککړې وې، چې بې له پاکېدو نه کېده او پاکې شوې.
دا چې په دغو ټولو نښتو کې به څومره افغانان وژل شوي وي، معلومه نه ده. تراوسه پورې د غه موضوع چا څېړلې نه ده، که څه هم د انسان ژوند ته بايد تر هرڅه زيات اهميت ورکړل شي. د تلفاتو په اړه اټکلونه ډېر دي، خو هغه ډېر سره توپير لري. د هغه وخت د والي نظيف الله نهضت د يوه رسمي راپور له مخې ليکي، چې "د هرات په ولايت کې د فتنې له پيل څخه په اول سمه فرقه باندې د دولت تر واکمن کېدلو پورې 320 تنه وژل شوي دي.)[42]" دغه شمېرنه دغومره لږه ده، چې هغه حتی د شوروي اتحاد د باندنيو چارو وزير اندري ګروميکو ته هم د منلو نه ده، چې وايي د فرقې د يوې برخې په ياغي کېدو سره نښتې وشوې، چې "تلفات يې ډېر وو، له زرو نه ډېر پکې ووژل شول.)[43]" دی "د فرقې د يوې برخې د ياغي کېدلو" د نښتو په نتيجه کې له زرو نه زيات تلفات ښيي. په يوه حساب حتی په خپله حکومت هم دغه شمېرنه ردوي، چې وايي "نږدې څلور زره تنه ارتجاعي او انقلاب ضد عناصر، چې د افغانانو په جامو کې افغانستان ته ]راا ستول شوي وو د [ دموکراتيک جمهوريت د امنيتي قواوو او د هرات د زيار ايستونکيو خلکو له خوا په کلکه وټکول شول.)[44]" د هغه وخت د فراه والي الله داد طوفان د صدارت په محبس کې ددغه پاڅون تلفات ما ته دولس زره و ښوول. له بلې خوا غېر حکومتي خوا اټکلونه هم ډېر سره متفاوت او هم له حد نه او چت ښکاري. يوسفي د ټولو تلفاتو شمېر د پېنځه وېشت او شپږ د برش زره ترمېنځ او د ثقافتي شورا ليکوالان يې پېنځه ويشت زره

ښيي)[45](. د هرات په پاڅون کې د هېڅ لوري کسانو د بل لوري د کسانو په وژلو صرفه نه ده کړې، په هېڅ ليکنې کې نه دي ويل شوي، چې يوې خوا به د بلې خوا کسان بندي يا يرغمل کړي وي. دا هم معلومه ده، چې د پاڅون په وروستيو شپږو ورځو کې وژل، زخمي کول او وړانول په خاص ډول شديد وو او پاڅون هم چې له پښتون زرغون نه پيل شوی و، درې اونۍ دوام کړی و او څنګه چې د پاڅون په اولو ورځو کې ګونديانو او امنيتي چارواکيو د ښار له ستراتيجيکي ځايونو نه له ټانکونو نه په روانو ګڼو خلکو باندې ګولۍ چلولې او حکومتي او شوروي الوتکو په تېره د فرقې له پاڅون نه وروسته په سرتېرو باندې بمونه غورزول، تلفات به يې حتمي ده چې ډېر وي او څنګه چې په دغه پاڅون کې له شمېر نه وتلو افغانانو ګډون کړ و، د وژل شويو او ټپي شويو شمېر به هم له حساب نه وتلی او ډېر وي. ددغومره ډېرو افغانانو وژنه په خپل ذات کې يوه غټه تراجيدي ده، خو دا يواځينۍ تراجيدي هم نه ده. حکومت له هغې نه د عبرت درس هم وانخيست، نه يې له خلکو سره خپل چلند نرم کړ او نه يې د پاڅون په اړه تحقيق وکړ. بس په دې يې بسيا وکړه، چې پاڅون په اصل کې د څلور زره ايرانيانو کار و، چې په افغان جامو کې هرات ته ننوتلي وو.

د هرات د پاڅون لاملونه دمخه ښودل شوي دي، خو د پاڅون په بهير کې نه حکومتي چارواکيو او نه د مقاومت افسرانو د ټاکلې کړنلارې له مخې عمل وکړ. په دواړو خواوو کې هېڅ چا کوښښ ونه کړ، چې لانجه په خبرو سره هواره کړي. هرې خوا برى د مقابل لوري په ځپلو کې غوښته. په دغه کار کې د مقاومت افسران سره يو موټی او حکومتي چارواکي سره بې اتفاق وو. والي نظيف الله نهضت له قوماندان د فرقې سيد مکرم سره، چې تورن و او له سياسي آمر رسول سرده سره تر دې

حده وران وو، چې د پاڅون په وخت کې یې هم سره د زړه همکاري و نه کړه. نهضت لا هغوی په دې، چې شین ډنډ ته تښتېدلي وو، د محاکمې وړ ګڼل[46]. په دغه ټول اړ و دوړ کې حکومتیان او ګوندیان بې روحیې، چوپ او له دفاعي ځواب نه لوېدلي وو. دا به له دې امله هم و، چې د ساپي په وینا "د هرات والي او ځینې نور غټان زموږ سړي وو، خو په ښکاره د حکومت سره وو. نو موږ په دې وجه هغوی ته هېڅ ونه ویل."[47] له بلې خوا د مقاومت افسرانو که څه هم سخت فعالیت وکړ، د عمل کوم ټاکلی پلان نه درلود. د پاڅون په اړه ټول لیکوال په دې نظر دي، چې که د غو افسرانو د کوم ګوندله مشر په لار ښودنه او د کوم ټاکلي پروګرام له مخې عمل کړی وای، لږ تر لږه خپلې غوښتنې به یې په حکومتیانو باندې منلې او د ډېرو وژنو مخه به یې نیولې وای. ددغه کار لپاره دوی وسایل هم لرل. د فرقې ټوله سپکه او درنه وسله د دوی لاس ته ورغله او دوی له هغو نه په کار اخیستلو کې ماهران هم وو. داسې ښکاري، چې دوی د پاڅون مشرۍ ته تیار نه وو او پې ښو سمدلاسه د پهلوانۍ هر کارې ته ټېل وهل. د حکومتي چارواکیو بله غټه ستونځه په هرات کې د کافي ملاتړ نه لرل وو او دوی هغوی په خپلو زیرو او شډلو کړو سره سخت پارولي وو. د احمد شاه فرزان په وینا "حزب تا تاریخ 7 ثور 1357 به جز چند نفر شناخته شده طرفداری در هرات نداشت... از ان پس هر کس در ان حزب نامنویسی میکرد میتوانست صاحب پست و مقامی شده نسبت بدیگران برتری و امتیازی داشته باشد."[48] په کابل کې هم د ثور له کودتا نه وروسته ډېر کسان په ګوند کې ننوتل، دوی بیا د "ثوریانو" په نامه یادېدل. په هرات کې ځوانو ګوندیانو چې د هورا په ویلو سره پارونې کړې وې، د پاڅون په وخت کې یې مرسته کولی و نه شوه. په دغه حال کې ګوندي او حکومتي چارواکي د پاڅون

والو په مقابل کې یواځې پاتې شول، خو داد
حکومت او شوروي هېواد هوای قوتونه وو، چې
پاڅون کوونکي یې وځپل او هغوی یې بېرته په
واک کړل، خو د هرات د خلکو او پوځي فرقې
پاڅون "... جرقه های اغتشاش را بین اردوی
افغانستان پخش نمود" او "... بزودی سرمشقی شد
برای قیام های مردم بادغیس، جوزجان، سمنگان و
در مکاه ثور مردم غور وغیره." (49)

## د دره صوف پاڅون

دره صوف د سمنګانو د ولایت دره د 1357 کال
په لړم کې یانې د هرات له پاڅون نه دمخه، خو
د هرات په شان د لویانو د زده کړې د کورس په
اړوند د خلکو د پاڅون او مرګ ژوبلې دوام
لرونکی ډګر شو. د یوه ښوونځي خلقي سرمعلم
عبدالخالق ) ازبک( د خپل نیایي نګندې او لور
هم مجبورلوې، چې د لیک لوست زده کړې په کورس
کې ګډون وکړي. دی د خپل نیایې له لور سره
دواده کولو په طمع هم و. نیایې یې قربان بای
په دغه کار راضي و، خو له دې سره مخالف و چې
نګندې او لور یې کورس ته ورشي. زامن یې، چې
له صحرا نه کور ته ستانه او په موضوع خبر
شول، د خپل عمه زوی یې د هغه له چپړاسیانو
سره وواهه. عبدالخالق یو قاصد په اس سپور د
ولسوالی مرکز ته واستوه او ولسوال ته یې چې د
والي باجه و، خبر ورکړ چې د مسود د
کلي )پخواني بابوقلعه( خلک یاغي شوي او غواړي
په ولسوالی حمله وکړي. ولسوال سمدلاسه بې له
دې، چې د پېښې په اړه یې دقیق معلومات ترلاسه
کړي وي، له یو شمېر وسله والو کسانو سره د
مسود کلي پر لور روان شو. قربان علي دغه وخت
د کلي خلک سره ټول کړي و، چې د کشالې
بنداوبست وکړي، خو ولسوال چې خلک غونډ ولیدل،
خیال یې وکړ چې یاغي شوي دي. په هغوی یې د

اور بل امر وکړ، د دواړو خواوو ترمېنځ نښته وشوه، چې په نتيجه کې ولسوال او د هغه ډېر ملګري او نور ووژل شول. په بله ورځ د مزار له د هدادي نه په ټانکونو کې حکومتي قوه ور سېدله.
د دره صوف نارينه غرو ته وختل، خو حکومتيانو يې په ښځو بريد وکړ. ويل کېږي، چې ډېرې ښځې غرو ته وختلې او ددې لپاره، چې حکومتيانو ته په لاس ورنه شي او سپکې نه شي، له يوه کمره نه يې ځانونه لاندې وغورځول او تلف شوې. له دوی سره ماشومان هم وو، يو شمېر نورې ښځې او نجونې وروسته له هغه چې سپکاوی يې وشو، په تېره د هاشم دقيق سيغاني په امر ووژل شوې.
په ژمي کې بيا هلته قوه واستول شوه، چې يو شمېر خلک يې له مېنځه يووړل. د بل کال په ثور مياشت کې د نوي والي ساغر په امر د دره صوف خلکو ته جرګه واستول شوه او د روغې جوړې غوښتنه وشوه. خلکو ته وويل شول، چې حکومت حاضر دی د تاوانونو جبران يې وکړي، خو چې ارامي مراعات شي. د دره صوف خلکو د خپل يوه غوره شوي قومندان په مشرۍ جرګې ته دت پخواني والي الله داد طوفان او مستوفي هاشم دقيق سيغاني ظلمونه يو يو بيان کړل او په پای کې يې وړانديز وکړ، چې دوی حاضر دي د حکومت وړانديز ومني، خو چې طوفان او سيغاني دوی ته ورکړل شي. حکومت دغه کار نه کاوه. جرګه نابريالۍ ستنه شوه. له هغه وروسته له قندوز نه اټکل اووه زره عام خلک، چې زياتره يې له بازار نه ټول شوي وو، دره صوف ته واستول شول. دوی ته ويل شوي وو، چې د دره صوف د خلکو سرونه د حکومت او ښځې او مالونه يې ستاسو دي، خو دوی ته د دواب خلکو ماتې ورکړه. په عين حال کې حکومتي الوتکو په سهو دغه خلک او حکومتي کسان تر بمبارۍ لاندې ونيول او ډېر يې ترينه له مېنځه يووړل. بيا يوه غټه ملېشايي قوه له قندوز نه دره صوف ته او بله له پغمان نه

بامیانو ته په پورته وعدې سره واستول شوه، خو وروسته له دې چې ډېر تلفات يې ورکړل، په شا شول. دره صوف ازاد او د نصر سازمان تر واک لاندې شو.
د 1358کال په ثور کې په تاله او برفک باندې هم هغسې بريد وشو، لکه چې په دره صوف باندې شوی و. د تاله او برفک انساني تلفات د دره صوف تر تلفاتو هم زيات وو، که څه هم طوفان، مستوفي هاشم دقيق او سرمعلم عبدالخالق د سمنګان د ښار او د هغه د شاوخوا کليو د مالونو په خپلولو، بندي کولو او وژلو تر دې حده وېره اچولې وه، چې ډېرو سمنګانيانو خپل کورونه پرې ايښي او له خپلو کورنيو سره کابل ته تښتېدلي وو[50].

## د کونړ_نورستان پاڅونونه

په کونړ او نورستان کې د حکومت پر ضد پاڅونونه په يوه وخت کې او عمومي نه وو، خو په اوږدو او لنډو درو کې يې پاڅونونه ډېر او د اوږدې مودې وو، څو څنګه چې د هرې درې په دواړو خواوو کې واړه لوی غرونه ولاړ دي، پاڅونونه زياتره محلي وو. په دغه حال کې حکومت ته ګرانه وه، چې په دغو درو کې خپلې نسکور شوې ولسوالۍ او علاقه دارۍ په پوځ سره بېرته فعالې کړي. دا ټول په دغسې حال کې، چې له بهسودو نه تر اسمار پورې د کونړ اوږده او لويه دره په ستراتيجيکي لحاظ ډېره مهمه ده.
په کونړ کې نا ارامي او د حکومت ناتواني په پېښور کې اخواني ډلو ته که څه هم په دغه وخت کې مهمې نه وې، ښه موقع ورکوله چې په نا ارام کونړ کې نفوذ وکړي او خلک د حکومت پر ضد پاڅون ته وهڅوي. له دې امله حکومت دد غې سرحدي سيمې امنيت ټينګ نيوه او چارواکيو يې له خلکو سره له زور او شدت نه کار اخيسته.
لکه چې دمخه ويل شوي د کونړ_نورستان سيمه

له هغو سیمه څخه وه، چې په هماغه اول سر کې یې د حکومت پر ضد مخالفت کړی و. د دلاور سهري د یوه کتابګوټي )جهاد در کنر( له مخې له کوډتا نه دوه میاشتې وروسته د کونړ په شیګل، موټي، ولجي او نورو کلیو کې د یوې وړې حکومتي قوې او "مجاهدانو" په نښتې سره د ناارامۍ بله لړۍ پیل شوه. دغه نښتې که څه هم وړې وې او انساني تلفات یې لږ وو، خو د حکومتیانو د بې رحمۍ له امله یې خلک سخت وپارول، په تېره چې خلک له کلیو نه مرکزي نورستان ته کډه شول او چارواکیو د کلیو سرکسان ونیول او د ننګلام په لوی کلي کې یو حکومتي افسر په رڼا ورځ ووژل شو. حکومت ددغې پېښې په سبا د پېچ درې ولسوالۍ ته یوه لویه عسکري قوه واستوله، د سیمې خلک وپارېدل او "... در برابر این مردم مجاهد منطقه به حرکت آمده، جرگه های جهاد را در دهات فعال ساختند."[51] له هغه وروسته د سرطان په لسمه د مجاهدو او حکومتي قوې ترمېنځ نښته وشوه او لاسبری د مجاهدو په برخه شو. حکومت زر بله قوه د پېچ ولسوالۍ مرکز ته واستوله او دغې قوې د ننګلام په لوی کلي باندې ودانګل. "قریه ننګلام را که در حدود سه هزار خانواده بود مورد اتش توپخانه قرار داد و پس از آنکه مردم بیدفاع قریه را ترک کردند، دشمن ان را اتش زد، به خاکستر یکسان نمود."[52] دغې قوې بیا د نورستان وایګل دره کې عملیات پیل کړ، خو په شایلام کې یې ماتې وخوړه.

د ننګلام تراجیدي هم په کونړ، هم په نورستان او تر څه حده په سیمې اثر وکړ. د سهري په وینا له پېنځلس زره او سېدونکیو نه یې یو شمېر باجوړ ته ولاړل، نورو یې د چلام او مسعود درو ته پناه یووړه او مجاهدان یې مرکزي نورستان ته په شا لاړل. ددغې تراجیدۍ بله پایله د کشالې د هوارولو لپاره دیوې لارې لټول شول. دواړو خواوو قومي جرګو ته مخه وکړه، اول

حکومتي چارواکيو له شايلام نه "کليو او قومونو" ته جرګې واستولې، خو سهري نه وايي چې د جرګو مشخص وړانديزونه څه وو؟ دغومره وايي، چې د غه جرګې په مقصد ونه رسېدلې. مجاهدو هم چې مرکزي نورستان يې خپل مرکز ګرځولی وو، هرې خوا ته جرګې واستولې. "از دره های مختلف ولايت کنرها ديوه گل، باديل، شوريک، چپه دره، دره مزار، ديووز، ساو، دره سين جرگه ها باهم ديدن کرد ند )و( باهم پيمان بستند و فيصله بعمل آوردند که عليه حکومت دست نشانده دهری به جهاد متوصل گردند."[53] سهري دا هم نه وايي، چې دد غو جرګو مشران څوک وو، خو له ليکنې نه يې معلومېږي، چې هغوی ځايي قومي کسان وو، نه کوم سياسي ګوند ته منسوب کسان.

په هر حال، د ننګلام له تراجيدی نه وروسته څه باندې درې مياشتې وضع په ظاهر کې ارامه وه. بيا مجاهدو د کلا علاقه داري ونيوله او د پېچ ولسوالی مرکز ته نږدې شول او يوځای بل ځای يې په حکومتي قوتونو باندې غلچکي بريدونه کول او مهمات او لوازم يې ترېنه نيول "جنگ های تنتديل، يوتی کوند، سره مرغه، پيرونی از جنگ های خونين در طول زمستان سال 1357 در دره موصوف ميباشد (و) در اين فرصت دشمن قتل عام مردم را براه انداخت."[54]

د مجاهدو پرمختګ د 1358 کال له پيل نه څرګند و، دوی د وري مياشتې په سر کې حتی د ولايت مرکز اسداباد په پېنځه کيلومټری وته پور او پيرو کی په حکومتي قوې ودانګل او ويې نيوله. "برای نخستين بار مجاهدين سلاح های سبک راکت، هاوان و توپ بتريه را با مهمات فراوان از دشمن به غنيمت گرفتند." دی دا هم وايي، چې "از سلاح های به غنيمت گرفته شده به ديوه گل، پنجشير، بدخشان و حتی به لغمان هم داده

شد.[55]" تر دغه وخته پورې د مجاهدو مهمه وسله
دهن پر توپکونه وو، هغه هم په لږ شمېر. د
پیروني او مانوګي له سقوط نه وروسته د پېچ
ولسوالۍ مرکز هم د مجاهدو لاس ته ورغی او د
جهاد مرکز وټه پور ته نقل شو. په دې ډول د
کونړ د ولایت مرکز د مجاهدو تر خطر لاندې راغی
او پاڅون کوونکي د خپل حرکت په یوه نوي پړاو
کې ننوتل.

په نورو کلیو او درو کې هم د حکومتي قوتونو
او ځایي خلکو ترمېنځ نښتې شوي دي. په شلتن او
شیګل کې که څه هم درنې نښتې نه وې شوې، خو د
حکومتیانو له خوا د 1357کال په اوړي کې د
ډاکټر شلتن په ګډون د یو څو تنو بندي کول او
بیا له مېنځه وړل، په خلکو کې وېره پیدا کړه.
ان تر دې چې د شلتن ماموندو باجوړ ته کډه
وکړه، داسې هم د مرورې دره کې چې هم د ولایت
مرکز او هم د ډیورنډ کرښې ته نږدې پرته ده او
هلته د خان غونډۍ په نامه یو کنډک عسکر ځای
پر ځای و، نښتې و شوې. مجاهدو که څه هم د هغې
درې علاقه داري ونیوله، خو د کنډک په نیولو کې
پاتې راغلل. د مجاهدو غټ مشکل دلته دا و، چې
دلته د حکومت قومي پلویان ډېر وو، خو د شین
ګوړي مجاهدان لکه د باډیل او د یوه ګل او مزار
درې خلک د حکومت پر ضد وو. په ختیځ نورستان
کې د باشګل یا بازګل په اوږده دره کې په تېره
په بریکوټ او کامدېش او شاوخوا سیمو کې خلک د
حکومت پر ضد هغسې ټینګ دریدلي وو، لکه د پېچ
اوږدې درې خلک چې پاڅېدلي وو. د 1357کال د
میزان په میاشت کې یې اول برګمټال علاقه داري
او وروسته د کامدېش ولسوالي ونیوله او مجاهدو
خپل مرکز بریکوټ ته نږدې په باغچه کې نقل کړ،
خو حکومت هلته د سهري په وینا یو غونډ او د
قومندان عبدالروف ساپي په وینا، له سرتېرو
څخه یوه فرقه جوړه کړې وه[56] او بریکوټ یې له
سقوط نه ژغورلی و. سره له دې هم د همدغه کال

په ژمي کې د سختو سړو سره په پتيګل، ميرديش، کامو، دمنې، ګوهردېش او منديش کې خونړۍ جګړې و شوې او د سلواغې په مياشت کې د ولسوالۍ مرکز کامديش بېرته د حکومت لاس ته ورغی. مجاهدو بيا خپل مرکز له باغچې نه منديګل ته نقل کړ. له هغه وروسته مجاهدو د مرکزي نورستان د ملاتړو په ملګرتوب د بريکوټ او کامدېش ترمېنځ په چريکي جنګونو لاس پورې کړ. حکومت که څه هم له هوايي بمباريو او نورو تدبيرونو نه کار اخيست، پرمختګ کولی و نه شو او د کب په مياشت کې يې کامديش هم پرېښود. د ورې په مياشت کې د ختيځ نورستان نزدې څلور سوه مجاهدان د سين درې له مجاهدو سره يوه ګډه جبهه جوړه کړه او "چندين حمله بالای ناری و بريکوټ بعمل آوردند. شکری و انچګل دو پسته قوی دشمن تسخير گرديد." [57] دواړو خواوو درانده تلفات ورکړل، د همدغو ښتو له امله په سره ژمي کې خلکو چترال ته مخه وکړه، چې په لار کې "کودکان زياد در نتيجه سرما جان های خود را از دست داده بودند و در نتيجه تاثير سوء برق در کوتلهای بلند انگشتان دست و پای بسياری از بين رفت." [58]

حکومت نور تدبيرونه هم ونيول، هم يې په خان غونډۍ، اسمار، بريکوټ او کامديش او مانوی کې خپل نظامي واحدونه پياوړي کړل او هم يې له نورګل نه د نرنګ تر علاقه داری پورې پنځوس پوستې واچولې او يوه ايله جاري قوه يې هم جوړه کړه. مهمه دا ده، چې حکومتي چارواکيو يو شمېر قومي لويان تر خپل نفوذ لاندې راوستل او "اين بزرگان ضعيف النفس در بين قوم خود به نفع دولت پوشالی کار کردند." [59] خو څنګه چې له حکومت سره مقابله د قومونو وه، نه د ګوندونو، دوی خپل جهاد په جرګو سره پرمخ بيوه... "پس از قيام عليه تره کی در نورستان مرکزی و دره پيچ در دره های غرب و مرکز ولايت چون باديل و ديوه گل جرگه های قومی برای سر و

سمان دادن مجاهدین به جنبش درامدند.)" [60]( له دې سره جوخت د ګونديانو او حکومتيانو زور زياتی، چې څرګند مثال يې د ننګلام سوځول و، هم خلک د حکومت پر ضد و پارول. دا د خلکو په ملاتړ سره و، چې جنګياليو يې د 1358کال په پسرلي کې د پېچ اوږده دره ونيوله او وټه پورې يې خپل مرکز وګرځاوه او د ولايت له مرکز نه يې د ګونديانو او حکومتيانو په ايستلو لاس پورې کړ او ددغه مقصد لپاره د کېرالې په کلي کې ننوتل.

## د کېرالې ټول وژنه

د کېرالې ټول وژنه په هېڅ اثر کې بيان شوې نه ده، په ځينو اثرونو کې يې په لنډه او اخباري ډول ذکر شوی دی. زه دغه پېښه، چې د 1379کال د اپريل په شلمه د جمعې په ورځ شوې، د هغو معلوماتو له مخې بيانوم، چې د څرخي پله زندان کې او په کال 2007 کې له محمد حسن شېرزاد نه ترلاسه کړي. شېرزاد په اصل کې د کونړ او د پېښې په وخت کې په کونړ کې و.

کېراله د کونړ ولايت د اسدآباد له مرکز سره نښتې او د کونړ او پېچ درې سيندونو په منځ کې لوی کلی دی. اوسېدونکي يې ځايي خلک، حکومتي ماموران، معلمان او نور وو. مجاهدو د وټه پور کلي له نيولو نه وروسته فيصله وکړه، چې د ولايت مرکز اسداباد به هم ونيسي او له ټول ولايت نه به د حکومت لاس لنډوي، نو يې خپل وسله وال په پټه په کېرالې کې ځای پر ځای کړل. دوی د ولايت له ټولو قومونو څخه وو، مشواني او د کټار او ګمبير له کليو نه هم خلک پکې وو. ساپيان پکې تر ټولو ډېر وو. د نورو سيمو خلک او د اسلامي تنظيمونو جنګيالي پکې نه وو. حکومت، چې د پېچ اوږده دره د وټه پور تر کلي پورې له لاسه ورکړې وه، د ولايت په مرکز اسداباد کې يې لويه قوه د بېره کړې وه. انتوني

هایمن د هغو شمېر دوه سوه تنه سرتېري او شل تنه شوروي مشاورين ښيي[61]، خو دغه شمېر له واقعي شمېر نه ډېر لږ دی. نورو سرچينو دغه قوه د عبدالحق عالميار په قومندانۍ يو غونډ ښودلی.

په هر حال، حکومتيان په کېرالې کې د مجاهدو له ننوتلو نه خبر شول، کلی يې په سرتېرو سره محاصره کړ او ټوله شپه تر سهاره پورې ور سره وجنګېدل. څنګه چې مخالفان په جګه او حکومتي سرتېري په لاندې هواره کې وو، وروستيو ته دراندې تلفات واوښتل. په سباوون کې د مجاهدو کارتوسونه او مهمات خلاص شول، خو دوی له کلي نه وتلی نه شول. ځينې يې په کورونو ننوتل او نور يې د غنمو په نږدې پټيو کې پټ شول. د ورځې په رڼا کې دوی ټول له کورونو او پټيو نه وايستل شول او د کلي له نارينه او ځوانانو سره په يوه ميدان کې په دې نامه غونډه کړی شول، چې چارواکي غواړي ورسره خبرې وکړي. همدا چې دوی سره غونډ شول، وسله والو سرتېرو په يوه دم پرې ګولۍ واورولې او ټول يې سترې وترې وغورځول او جسدونه يې په داسې حال کې، چې ځينې نيم ژواندي هم وو، په لاريو کې په نږدې کندو کې واچول او په بولډوزرونو يا غاښه ورو سره يې خاورې پرې واړولې.

د کېرالې د ټول وژنې شمېر معلوم نه دی، تر څوارلسو سوو پورې يې هم اټکل شوی دی. په دوی کې څه باندې شپږ سوه د کېرالې اوسېدونکي او نور له کټار، ګمبير او نورو ځايونو څخه وو. له دغې پېښې نه وروسته يو سل او څلور کونډې، چې له ځينو سره ماشومان هم وو، د اسمار له لارې باجوړ ته واوښتې. يوه دينې تاجک عالم، چې په دغه وخت کې په باجوړ کې و، په څرخي پله زندان کې قيصه کوله، چې ځينو ځايي خلکو غوښتل له هغو سره واده وکړي، خو د سيمې خان دوی بې ننګه وبلل او مانع يې شو. دا هم معلومه نه

ده، چې د غه ټول وژنه د چا په امر شوې ده؟ د نظامي پوځ قوماندان، لکه چې دمخه وویل شول، عبدالحق عالمیار و. د ولایت په مرکز اسداباد کې په دم کلي یا چغه سرای کې د ټولو غونډونو د ارکان ریيسان، والي نظام الدین، د امنیت قوماندان او څو تنه روسي مشاورين هم سره ټول شوي وو[62]. له دوی سره یو اوپراتیفي یا عملیاتي بلوک هم وو. د ننګرهار والي او د فرقې قوماندان بهرام هم له څو شوروي مشاورینو سره هلته ورغلی و. والي بهرام بیا په هماغه شپه جلال آباد کې د افغان ملتیانو له خوا له مېنځه یوووړل شو، خو د هغه له مېنځه وړل په مخالف جنګ سره نه و.
ددغې ټول وژنې د تجويز ګوته شوروي مشاورینو ته نیول شوې ده، د کېرالې ټول وژنه په افغانانو کې بې سارې وه، خو روسانو ته هغه نوې نه وه. روسانو د کېرالې له ټول وژنې نه څه باندې سل کاله دمخه د مرو په ښار کې شپږ سوه ملکي ترکمنان د تجويز له مخې په دغه مقصد ووژل، چې د اطراف ترکمنان ووېروي، چې له مخالفت نه لاس واخلي. د کېرالې ټول وژنه به هم په اصل کې د دوی په تجويز په همدغه مقصد شوې وي، خو په کونړ کې له دغې ټول وژنې سره د هغه په لنډو او تنګو درو کې مخالفت روان وو او د 1358 کال د اسد په دېرشمه د قوماندان عبدالروف ساپي په تدبیر سره د اسمار له غرني غونډ نه د حکومت لاس لنډ شو او نژدې و، چې دغه قوماندان له هغه وروسته ټول کونړ ونیسي. د کونړ له ټول وژنې سره هم چارواکیو خلکو ته د خدمت نارې وهلې او خپل ګوند يې د "خلکو خدمتګار" باله.

## د اسمار حېرانوونکې پېښه

اسمار د ډیورنډ د کرښې له ایستل کېدو نه وروسته تر پخوا لا مهمه ستراتیجیکي سیمه شوې وه، له اسمار نه د چترال، باجوړ، کونړ او نورستان په لور لارې تللې دي. د مقدوني لوی

سکندر دوه زره او درې سوه کاله دمخه د اسمار په لار باجوړ ته تللی و. د اسمار د خاص نظامي اهمیت له امله و، چې د برتانوي هند حکومت غوښته هغه په خپلې نفوذې سیمې کې راولي، خو د امیر عبدالرحمن د ټینګار له امله له دغه فکر نه واوښت. په هغه وخت )1892( کې سپاه سالار غلام حیدر څرخي له یوه لوی پوځ سره هلته ډېره و، په دغه مقصد چې په باجوړ باندې د افغانستان نېغ حاکمیت جاري کړي، آسمار له باجوړ سره په هر لحاظ نزدې دی، په واقع کې اسمار د باجوړ یوه برخه وه. د اسمار اوسېدونکي سالارزي، ماموند او مشواني دي او د هغو زیاتره په باجوړ کې اباد دي. همدا اوس هم ځینې باجوړیان په اسمار کې د کر کیلې ځمکې لري. د همدغه اهمیت له نظره و، چې عبدالرحمن له وخت نه را په دېخوا په اسمار کې غټ نظامي پوځ ډېره شوی دی. ددغې لیکنې د بحث په وخت کې ددغې قوې د اسمار غرنۍ غونډ قوماندان عبدالروف ساپی د تګاو اوسېدونکی و. ساپي ګوندي افسر نه و، خو څنګه چې دی یو لایق مسلکي افسر و، د ننګرهار فرقې د یوه ټولي له قومندانۍ نه د اسمار غونډ قومندانۍ ته ورسېد، چې په دغه وخت کې یې 3500 سرتېري او پېنځه اویا تنه خلقي او پرچمي افسران لرل. دی که څه هم ګوندي نه و، د شیګل په ټولي باندې یې د حملې په دفع کولو کې هم د مجاهدو او هم د حکومت اعتماد ګټلی و. څنګه چې ساپی دمخه په اسمار، بریکوټ او جلال آباد کې پوځي دندې ترسره کړې وې، د کونړ له ناارامیو نه ښه خبر و او له جهادیانو سره یې په پټه مرسته کوله. د اسمار په غونډ کې یې افسران جلب کړي او د هغو له همکارۍ نه یې ځان داډه کړی و. ساپي او د غونډ غیرګوندي او مخالف افسران د ننګلام په سوځېدلو، په هرات باندې د شوروي اتحاد بمباري او د کېرالې په ټول وژنې سره پارېدلي او د

حکومت په برابر کې په مناسب وخت کې عمل کولو ته په انتظار وو.

د اسمار د غونډ کنډکونه د غرو په ډډو کې پراته او د ټولیو قومندانان یې خلقي او پرچمي افسران وو. هر ټولي زیکو یکونه، هاوانونه، د مخابرو عصري وسیلې او نورې ډول ډول وسلې لرلې. د ټولو قومندانۍ په یوې څلور پوړیزې ودانۍ کې په دغسې یوې هسکې کې وه، چې درې خوا ته یې غرونه وو. قومندان ساپی له دغسې هسکې ودانۍ نه د خپل پلان په پلي کولو پیل وکړ، چې د هغه له مخې به خلقي او پرچمي افسران له مېنځه وړل کېږي. لومړنی تجویز دا و، چې دغه ګوندي افسران په یوه پلمه په یوه ځای کې ټول شي او بیا له مېنځه یووړل شي. دغه پلان په دې رد شو، چې حکومت به زر خبر شي او غنډ به تر بمباری لاندې ونیسي. د قومندان ساپي په دغه تجویز سره هم موافقه و نه شوه، چې هر ملګری افسر دې یو ګوندي افسر د سرتېرو په ملګرتوب له مېنځه یوسي، ملګرو یې دغه تجویز خطرناک وباله. خبرې په پټه روانې وې، چې په دغه وخت کې دوه سرتېرو د بندي کېدلو په وخت کې خلقي افسرانو ته وویل، چې "... ضابط قطعه شان به آنها گفته است که خلقی ها و پرچمی های داخل لوا از بین برده میشوند."[63] خلقیانو دغه ضابط ونیوه او هغه دوه تنه نور افسران ورپه ګوته کړل او په دې ډول درې تنه مخالف افسران خلقیانو ته په لاس ورغلل او موضع د خطر سرحد ته ورسېده.

په دغه حال کې قومندان ساپي که څه هم د عمل لپاره تیار نه و، مجبورشو د یاد شوي دویم تجویز د اړول شوي شکل له مخې عمل وکړي. دده په وینا "بتاریخ 30 اسد 1358 [اګست 20، 1979] ساعت چار عصر سه نفر از خلقی های بسیار قدرتمند را بدفتر خواستم. اینان عبارت بودند از آمر سیاسی، منشی سازمان و امر کشف

لوا.[63]" ده دمخه د قومندانۍ ساتونکيو ته هدايت ورکړی و، چې هغوی مانۍ ته د ننوتلو په وخت کې په عادي ډول بې وسلې کړي، خو د وتلو په مهال کې يې په زينو کې له مېنځه يوسي. ګونډي امران د قومندانۍ دفتر ته يواځې له توپنګچو سره راغلل او که څه هم د روژې مياشت وه، په چای څښلو او له قومندان سره په خبرو کولو بوخت شول. دوی له قومندان نه وغوښتل، چې د نيول شويو افسرانو د اقرار له مخې 27 تنه نور افسران د توطيې نيت لري او بايد ونيول شي او دوی ته وسپارل شي. ساپي هغو ته د هغو افسرانو له سپارلو سره مخالفت وکړ، په دغه دليل، چې " با در نظر داشت اوضاع و حالات اطراف و روحيه اسلامی که عساکر لوای اسمار از ان برخوردارند، اگر توطيه در کار نيز نباشد هم عليه شما دست بکار می شوند.[65]" هغه دا هم ور ته وويل، چې دغه افسران به جلال اباد ته واستول شي، چې هلته چارواکي چې څه غواړي، هغسې ورسره وکړي. خبرې اوږدې شوې، خو جوړه رانغله او خلقي افسران د مازيګر په پېنځه نيمو بجو په دغه نيت له دفتر نه ووتل، چې هغه 27 تنه افسران په خپله ونيسي او په جزا يې ورسوي، خو په زينو کې د ښکته کېدلو په وخت کې د مانۍ سرتېرو نصير احمد او عبدالله په خپلو وسلو سره له مېنځه يووړل[66]. ډزې به بيرون اورېدل شوې وي، چې قومندان ساپي نږدې ځايونو ته زر خبر ورکړ، چې د وسلو پاکولو په وخت کې په خطا سره فير وشو او نور خيريت دی. هغه بيا د درېيم کنډک قومندان عبدالباقي او نورو له لارې د مخابرې او تليفون مرکز په لاس کې ونيوه او د قرارګاه د ټولي قومندان يې له اصل موضوع نه او داسې هم له دېنه خبر کړل، چې د غو خلقي افسرانو غوښتل دی هم له مېنځه يوسي او "اينک وظيفه خودت است تا صاحبمنصبان خلقی و پرچمی را که من ذريعه تليفون بدفتر فرا ميخوانم، سر

به نیست کنی." هغه دغه ماموریت په خوښۍ سره ومانه، بیا هم د قوماندان ساپي په وینا "صاحبمنصبآن خلقی و پرچمی را که بداخل لوا بودند یکا یک به نام آیذکه آمر سیاسی با انها کار دارد و راجع به وظیفه با انان صحبت مینما ید، باین ترتیب بدفتر خواستم که در منزل پایان به جزای اعمال شان رسانیده میشدند.[67]"
په دې ډول د قوماندان ساپي په قول "منصبداران خلقی و پرچمی در ظرف یکی دو ساعت در داخل لوا از بین برده شدند و نوبت تصفیه حساب بان عده صاحبمنصبان فرار رسید که در قلل شامخ مواضع داشتند و با اسلحه پیشرفته قطعات شان مجهز بودند." دی اضافه کوي، چې "گرچه مرکزیت آنان دیگر از هم پا شیده بود... با آنهم در موقفی قرار داشتند که میتوانستند با قدرت ناچیز کار بزرگی انجام دهند.[68]" ددغه ټولي خلقي قوماندان، چې تر ټولو زیات په یوه حساس ځای کې ديره و، د بې سیم مخابر په هدایت د یوه مخالف افسر له خوا له مېنځه یووړل شو. د هغه په له مېنځ نه وړلو سره د ګوندیانو د وژلو عملیه له پټې نه ووتله. د ساپي په وینا "به تمام شبکه های که تلیفونی و بگونه بی سیم با لوا رابطه مستقیم داشتند، علناً قومانده دادم تا تمام خلقی ها و پرچمی ها را از بین ببرند.[69]" په دې ډول پاتې خلقي او پرچمي افسران د شپې تر یوولسو بجو پورې له مېنځه یووړل شول، بې له دې چې هغوی ته د مقاومت موقع په لاس ورغلې وي.
ددغې بې سارې عملیې بریالی پای قوماندان عبدالروف ساپی په لوډ سپیکر کې اعلام کړ. په هغه سره سرتېري او افسران ډېر خوښ شول او هغو خپله خوښي د رسام ګولیو په پورته ویشتلو سره و ښودله. د غومره ډېرې ګولۍ واورولې شوې، چې د شپې تیاره فضا دغومره روښانه شوه، چې په اسدباد کې والي نظام الدین هم ورته متوجه شو. په ټلیفون کې یې قوماندان ساپی په دې ملامت کړ،

چې "از یکطرف داد میزنی که مهمات نداری و از جانب دیگر با فیر مرمی های رسام فضای کنر را بروز روشن مبدل ساخته ایی." په ځواب کې یې وویل، چې "فیرها توسط اشرار صورت میگیرد که از چار طرف با ما حمله اورده اند." ښایسته ځنډ وروسته یې والي ته په ټلیفون کې ډاډ ورکړ، چې "حمله که بر لوای اسمار صورت گرفته بود، به عقب زده شد و حمله اوران شکست خورد ند. اینک انان خود را تسلیم نمود ند، امدن خودت ضرورت است تا با مردم دره از نزدیک ببینی و ضمناً مارشی نیز بخاطر این پیروزی اجرا شود." والي وعده ورکړه، چې سبا به په اوو بجو ورسېږي.

قومندان بیا د شاوخوا خلک هم پرې خبر کړل او هغوی، چې په دغه بري ډاډه او خوښ شوي وو، د سهار ه شپږو بجو د غنډ په شپږ کیلومتری کې غونډ شول. والي نظام الدین له وعدې سره سم د سهار په اوو بجو په هلیکوپټر کې ځان ورسوه، خو همدا چې هلیکوپټر بېرته په هوا شو، والي نظام الدین هم له مېنځه یووړل شو. عجبه لا دا ده، چې همدغه هلیکوپټر "تا عصر هشت مرتبه به لوای اسمار پروازهای انجام داده و مهمات اورده اما از چگونگی رویداد بیخبر ماند." (70)

په بله ورځ دغه هلیکوپټر بیا راکوز شو، خو دا ځل ونیول شو او جلال اباد ته خبر ورکړل شو، چې ځنګه چې د هغې سیم له کار نه لوېدلی، بله الوتکه راواستوي. په دریېمه ورځ بله الوتکه له دوه انجنیرانو سره اسمار ته راغله او هغه هم ونیول شوه. په څلورمه ورځ بله الوتکه همدا چې د اسمار فضا کې ښکاره شوه، بېرته په شا شوه. د غه وخت حکومت د اسمار د غونډ له سقوط نه خبر شوی و.

د اسمار په غرني غونډ کې په دغه ډول د پېښځه او یا تنو ګوندي افسرانو له مېنځه وړل، فلمي یانې غیر حقیقي ښکاري، خو د غه بیان به

ترهغو پر ځای وي، چې د نورو معلوماتو له مخې هغه په بل ډول انځور کړای شي.
د قومندان ساپي بل قدم د اسداباد او جلال اباد نیول او له ټول ننګرهار نه د خلقي حکومت لاس لنډول و. دغه هدف ته د رسېدلو لپاره ده کار هم کړی و او ډاډه و چې "در طول مدتی که من در جلال اباد و چغه سرای بودم با صاحبمنصبان و عساکر که از رجیم کمونستی حمایت مینمایند، خیلی کم اند... که در صورت براه افتادن قیام در یک قشله موازی با آن قیام ها در قطعات و قشله های دیگر نیز صورت خواهد پذیرفت." نو ځکه دی وایي، چې "بروفق نقشه ایکه من طرح نموده بودم، بایست در مدت سه روز چغه سرای بدست عساکر مسلمان لوای سوم اسمار فتح میشد." (71) ددې لپاره ده د پېچ درې، مرورې، دره سین او اسمار د مجاهدو قومندانانو په ملګرتوب په مرکز باندې د یرغل پلان هم ترتیب کړ. د سهري په وینا "عبدالروف خان به صفت قوماندان عمومی حمله در صف جلوی عساکر و مجاهدین قرار گرفت. فیر توپ های هاوان، و بتریه به مرکز ولایت آغاز یافت... با تاسف در اوانی که قوماندان مصروف عملیات بمرکز بود از عقب افراد دستوری حزب (اسلامی) و عناصر دشمن علیه قوت عسکری قوماندان قیام نموده فوه (و) را با پرسونل، مهمات و سلاح چور و چپاول نمودند. حرکت مجاهدین جهت گرفتن مرکز به ناکامی منجر گردید، یک محشر غیر قابل پیش بینی در منطقه برپا شد. نزدیک بود جنگ داخلی رخ دهد. قوماندان مانع شد و خود را نجات داد و از منطقه بیرون شد." (72)
په دې ډول که له یوې خوا د قومندان عبدالروف ساپي په حېرانونکي او بې ساري تجویز او عمل سره بې له دې، چې یو ملګری یې هم تلف شوی وي، یوه مهمه نظامي قطعه د حکومت له

کنټرول نه وو او وړې ستل شوه او خلکو پرې جشن جوړ کړ، له بلې خوا "... چپاول قوه دگروال همانا سقوط دو باره منطقه بدست دشمن [حکومت] و وخیم شدن اوضاع و پائین آمدن مورال جهادی در آن بود.)[73]" که ساپی او ملګرو یې پېنځه اویا تنه ګوندیان ووژل، په دې نامه چې مسلماني یې پرې ایښې او زورواکي کوي، نورو دوی چور او نابر یالي کړل، په دې نامه، چې دوی د هغو په شان مسلمانان نه وو. په هرې خوا کې د افغانانو په عقیدې او فکر کې تغیر راغلی، بې اتفاقي پیاوړې شوې او د ملي سیاست او ژوند په اړه کړه ضد او نقیض شوی و. حکومت د اسمار د نظامي قطعې له سقوط نه په څلورمه ورځ او د خپل والي له وژل کېدلو نه په دریېمه ورځ خبر شو. د غه حال د قومندان ساپي د پاخه تدبیر او له خلقي نظام سره د خلکو او په خاص ډول له ګوندي افسرانو سره د غیر ګوندي افسرانو د ټینګ مخالفت قیصه کوي. د اسمار د غونډ سقوط نه یوازې د خلقي حکومت پرمخ دغسې سخته څپېړه وه، چې د تره کي او امین ترمېنځ یې موجوده بې اعتمادي نوره هم پیاوړې کړه، د وزیري په وینا "...دا موضوع د وطن د عال شورا په غونډې کې یاده شوه او تره کي صاحب هڅه وکړه، چې ددې پېښې پړه په امین واچوي او داسې ښکارېده چې دوی د هرې پېښې څخه د یوه او بل ملامتیا لپاره ګټه پورته کوي.)[74]" په نهایت کې د قومندان ساپي او د قومي حرکت شنډتوب ددغې لوی حرکت پیلامه شوه، چې په هغه سره د عنعنوي ولسي پاڅون ځای ګوندي فعالیتونو ونیو او د افغان د مبارزو بڼه بدله شوه.

## د پلخمري پاڅون

د پلخمري ښار خلکو د 1358 کال د ثور له دویمې کالیزې وروسته پاڅون پیل کړ. د پاڅون سملاسي محرکه د ښوونځي یوه ښوونکې وه، چې و یل

يې وطن ته "کفر" راغلی دی. هغې ټوپک په لاس د
غسې تبليغ کاوه، خلک پرې ودر ېدل چې حکومتي
قوتونو او خلکو سره مقابله وکړه او دواړو
خواوو ته ډېر تلفات واوښتل.
له پاخون کوونکيو نه اټکل درې سوه ووژل شول
او ښوونکي هم تر يوه ټانک لاندې شوه او له
مېنځه لاړه، خو ددغې پېښې پايلې درنې وې. د
بغلان والي محمد خان پيګير په امر هر پاخون
کوونکی چې امنيتي چارواکيو ته په لاس ورته،
له مېنځه وړل کېده. داسې هم موټروانان او د
کابل_کندوز د لارې لارويان د ښاريانو په شان
نيول کېدل. په دغه ورځ 450 کسان امنيتي
چارواکيو ته په لاس ورغلل او د بغلان په شپږ
ميلۍ فاصله کې د هاشم پله ته نزدې د جرشکن په
نامه يوې طبيعي کندې کې څوک مړه او څوک نيم
ژواندي واچول شول او خاورې پرې واړول شوې.
سره له دې هم د ثور د ميا شتې په نولسمه د
ولسوالۍ مرکز پرته تر دولسو بجو پورې ټول
پلخمري د پاخون کوونکيو لاس ته ورغی. دوی فکر
کاوه، چې پاخون هسې چې په پلخمري کې عام دی،
په ټول هېواد کې عام شوی او حکومت نسکورېږي،
نو دوی په خپل هوډ ټينګ ودر ېدل. ښار يې هم
ونيو، حکومتي دفترونه يې چور کړل او ډېر
ګوندیان او کارګران يې له مېنځه يووړل، خو په
دولسو بجو کې د نهرين له فرقې نه د ذکريا
هاشمي په قوماندانۍ يوه غټه قوه ور سېدله او د
پاخون کوونکيو په نيولو او وژلو يې لاس پورې
کړ. سرتېرو هر هغه څوک نيوه، چې يې نيولی شو.
له کورونو نه يې هم خلک وايستل او ټول يې د
جرشکن په طبيعي کنده کې واچول او خاورې يې
پرې واړولې. خلکو کندې ته د وړل کېدلو په وخت
کې چيغې کولې، چې "اوه مسلمانانو! موږ ژوندي
خښوي، خلاص مو کړئ." د قوماندان ذکريا هاشمي په
وينا، په دغې کندې کې 750 تنه او د يوه بل
راوي په قول، 450 تنه اچول شوي دي. له پېښې

نه وروسته د ښار دکانداوانو خپل دکانونه د اعتراض په توګه وتړل، خو حکومتي چارواکیو مجبور کړل، چې بېرته یې خلاص کړي[75].

## د چنداول پاڅون

چنداول د کابل ښار په تاریخ کې خاص مقام لرلی دی، نادر شاه افشار وروسته له هغه چې په 1738 کې یې د شاه حسین په سروالۍ د هوتکو واکمني نسکوره کړه، د کابل له لارې یې د هندوستان د نیولو تکل وکړ. په کابل کې یې یوه قوه ځای پرځای کړه، د چندول په نامه چې د قراول پرخلاف هغې قوې ته ویل کېده، چې شاته پرته وي. دغه قوه له قزلباشانو نه جوړه وه. قزلباشان، چې د بېلو بېلو خېلونو یو ترکیب وو، په عمومي ډول په خټه ترکمن او په مذهب دولس امامي شیعه وو. قزلباشان په اصل کې د فارس د صفوي پاچایانو سر پریکړي مریدان وو، چې په سرونو باندې د سور رنګه ټوکرو په تاوولو سره په دغه نامه یاد شوي دي. صفوي واکمنو په زیاته اندازه د دوی په قوت سني فارس په شیعه فارس بدل کړی و.

احمد شاه دراني نور قزلباشان هم پرې اضافه کړل. قزلباشان که په کندهار یا کابل کې وو، سدوزي واکمنو ته پوره وفادار وو، په تېره هغوی چې د غلام شاهي په نامه د هغو خاص پوځیان او محافظان وو. نور قزلباشان د منشیاتو او سر رشته دارانو او میرزایانو په توګه په رسمي دفترونو کې ننوتل. د کابل قزلباشانو اهمیت وروسته له هغه نور هم ډېر شو، چې کابل د کندهار پرځای په کال 1776 کې د دراني امپراتورۍ مرکز شو. دوی په خاص ډول تیمور شاه دراني او شاه محمود ته ډېر مقرب وو. د محمدزي واکمنۍ مؤسس امیر دوست محمد خو د دوی خوریه و. د هغه مور چې د کندهار د قزلباشانو د سپاه منصور له خېل نه وه، د هغه په روزنه کې یې له

خپل مېړه سردار پاینده محمد نه ډېره موثره وه. قزلباشانو د افغانستان په سیاست کې که څه هم په شمېر کې کم او یو وروستي مهاجر ولس دی، ډېر اثر کړی دی. خو دوی د افغان_انګلیس له لومړي جنګ نه وروسته په سیاسي لحاظ مخ په ځوړې شول. په دغه جنګ کې د دوی یو نامتو مشر خان شیرین د افغان غازیانو پر مخالفت د یرغلګرو خوا ونیوله او د افغانانو حساسیت ورسره زیات شو. په دویم افغان_انګلیس جنګ کې هم له دوی نه ډېرو له یرغلګرو سره مرسته وکړه او بیا د امیر عبدالرحمن په واکمنۍ کې دوی تر سخت فشار لاندې ونیول شول. سربېره پر دې، چې دوی له یرغلګرو سره مرسته کړې وه، په دوی تور ولګول شو چې د هزاره جات یاغیان یې چې له دوی سره په مذهب کې شریک دي، د حکومت پر ضد لمسولي دي. بیا نو دوی او داسې هم هزاره ګان اړ شول، چې خپل مذهب پرېږدي او سني شي. قزلباشانو د تقیې د اصل له مخې، چې د خطر په وخت کې له خپل مذهب نه تېرېږي، په ظاهر کې سني شول(76)، خو د امیر له مړینې وروسته قزلباشان بېرته د امامیانو په توګه څرګند شول.

قزلباشان د شلمې پېړۍ په نیمایي کې نور نو چنداول ته منحصر نه وو او د امنیت په ټینګېدو، د ښار په پراخېدو او په تېره د میوند جادې په ایستلو سره د ښار په نورو برخو کې مېشت شول. څنګه چې دوی په دغه وخت کې پوره فارسي ویونکي شوي وو، د ښار له نورو خلکو سره په اسانۍ محشور شول او خپښي یې هم ورسره وکړې. په همدغې پېړۍ کې دوی په خپلو تکیه خانو کې تبلیغ زیات او برالا کړ، که څه هم د امام حسین په یاد په زنځیرونو سره ځانونه وهل، وینې کول او کړول یو عجب او د نه کولو کار دی. په عین حال کې څنګه چې په دوی کې د میرزایي عنعنه ښه ټینګه وه، په عصري پوهنې کې په زیات شمېر

ننوتل او مسلکي او عصري ماهران شول، خو ویل کېږي چې د حقوقو په پوهنځي کې یې زده کړه نه شوه کولی. په نتیجه کې په دوی کې د ثور د کودتا په وخت کې هم مذهبي واعظان او هم مسلکي ماهران، ملي شخصیتونه او حتی پوهاندان کم نه وو. که څه هم له خلقي حکومت سره دوی جوړ نه وو، بیا هم تر ډېره وخته پورې په ظاهر کې ارام وو. د دوی او حکومت ترمېنځ ورانی وروسته له هغه څرګند شو، چې د هرات د پاڅون په وخت کې د ایران یوه مذهبي مشر ایات الله شریعتمداري د خلقي حکومت پرضد تبلیغ پیل کړ او حکومت د دوی یو شمېر نومیالي د انجنیر محمد اکرم پرونتا او انجنیر محمد شریف پرونتا په ګډون ونیول[77]. خلقي حکومت په دې فکر و چې څنګه چې دوی نه یواځې په مذهبي چارو کې، بلکې په حقوقي او حتی سیاسي چارو کې هم د ایران د مجتهدانو تر نفوذ لاندې دي او هغوی په عمومي ډول د تقلید مرجع ګڼي، دوی د افغان دولت مخالف دي، نو یې د شریعتمداري له ویناوروسته چې خلقیانو د "شریعت مداري" په نامه یاداوه، په هغو سخته ونیوله. د 1979کال د جون په میاشت کې یې وروسته له هغه چې د یو شمېر شیعه عالمانو په شفاعت سید سرور واعظ له بند نه ازاد کړی و، یو شمېر نور یې د محمد اسماعیل مبلغ، سید ابراهیم عالمشاهي، نادر علي جاغوري په ګډون یو په بل پسې بندي کړل، خو د کابل شیعه ګانو د حکومت پرضد وروسته له هغه عملي ګام اوچت کړ، چې د جوزجان ولایت په سرپل ولسوالۍ کې یوه پېښه شوې وه. هلته خلقي ولسوال خلک اړ کړل، چې خپلې ښځې او لوڼې د سواد زده کړې کورس ته ولېږي. د غه کورس د امام زاده یحیی زیارت ترڅنګ ماجت کې نیول شوی و، چې شیعه ګانو پرې عقیده لرله. شیعه ګان وتورېدل او د دوی او حکومتیانو ترمېنځ نښته وشوه، چې په هغې کې له دواړو خواوو نه یو

شمېر ووژل شول. دغې پېښې د کابل شیعه ګان و تورول او واعظانو یې خپل خلک د حکومت پر ضد عمل ته وهڅول. د توحید ګوند او رسالت ګوند په نومونو، چې په پټه نوي جوړ شوي وو، سره فیصله کړې وه چې د حکومت پر ضد دې عمل و شي. پرېکړه دا وه، چې هزاره ګان او چنداولیان دې د سرطان په دویم سهار )جون 23، 1979( د میوند جادې په لومړۍ برخه کې د لاریون لپاره غونډ شي او له هغه ځایه به ښار ته ننوځي او پاڅون به عمومي کوي. له دوی سره اسلامي ګوند منلې وه، چې پلویان به یې د بیني حصار او میوندجادې له دویمې برخې نه ور سره یوځای کېږي. په عمل به هغه وخت لاس پورې کېږي، چې د محمد عمر په لاس جوړ شوی یو ساعتی بم به په لسو بجو چول کېږي، خو دغه ساعتي بم له وخت نه دمخه وچاود او حکومت د ټک راټک لارې په چټکۍ سره بندې کړې.
د یوه بل روایت له مخې، حکومت له دغې فیصلې نه یوه ورځ دمخه خبر شوی و او د پاڅون لویانو عمل بللې ورځې ته ځنډولی و، خو دغه خبر د هغو چنداولي پلویانو ته نه و رسېدلی او وروستیو خپل لاریون په داسې حال کې پیل کړ، چې حکومت پرې خبر و.
په هر حال، لاریون کوونکیو لا دمخه د چنداول د پولیسو د ماموریت یو خلقي ضابط وژلی او نور یې تسلیم کېدلو ته اړ کړي وو او دوه سوه میله وسله یې د ماشین دار او کلاشنکوف په ګډون چور کړې وه، نور نو د فرهنګ په وینا "در طول جاده میوند چند هزار تن از مردم شهر با سلاح ابتدایی سوته و کارد و امثال آن به تظاهر کنندگان پیوسته جمعیت بزرگی را تشکیل دادند. اما در پایان چار ساعت گلوله باری توسط نظامیان که تا دندان مسلح بودند، ان تعداد از تظاهر کنندگان که سر به سلامت بردند، در کوچه های تنگ دو طرف جاده میوند پراگنده شدند." (78)
بیا هم فرهنګ "بدنبال این حادثه انتقام گیری

دولت اغاز شد. در جاده میوند نیروهای نظامی در دو طرف جاده جابجا شده عابرین را اعم از پیاده و سوار تفتیش میکردند و از بین مردم هزاره ها... را جداً نموده بگروه اعدام میسپردند. هنگام شب چندول توسط نیرو های نظامی محاصره شده صاحمنصبان عنقاً بخانه ها داخل میشدند. جوانان را دستگیر و پول و اشیای گرانبها را به یغما میبردند و به مقدسات مذهبی مردم بی احترامی مینمودند. در هر خانه ایکه شخص مجروح مشاهده میشد، بدون تحقیق اینکه ایا در تظاهرات شرکت داشت و یا تصادفاً جراحت برداشته نه تنها شخص مجروح، بلکه تمام مردان خانه را با خود برده سر به نیست میکردند. بدینصورت بقیه عالمان دینی و روشنفکران اهل تشیع در چندول و سایر نقاط شهر بدلیل باتهام شرکت در تظاهرات زندانی و بشتر مفقود میشدند.‌" (79)

## د بالاحصار پاځون

بالاحصار له 1767 نه وروسته، چې کابل د تیمور شاه دراني په وخت کې پاچايي مرکز شو، په دغه هسک او ټينګ حصار کې افغان واکمنان له خپلو کورنيو سره او سېدل. نظامي قوه هم هلته ديره وه او ميرزايانو او چارواکيو يکې حکومتي کارونه ترسره کول. د افغان_انګليس په دويم جنګ کې، چې د ګندمک د تړون له مخې د انګليس استازي لويي کوګناري له خپلو څو تنو انګليس چارواکيو او ډېرو هندي ساتونکيو سره د امير محمد اعظم په هستوګنځي کې ديره شو، چې د امير محمد يعقوب له هستوګنځي نه يو څه ليرې پروت و. د 1879 کال په سپتمبر کې، چې افغانانو دوی ټول په خپل پاځون سره له مېنځه يووړل، کابل د انګليس پوځ له خوا ونيول شو. بالاحصار بيا په يوې قوي چاودنې سره وران او د سياسي مرکز په توګه ترک شو. امير عبدالرحمن بيا په خپلې

واکمنۍ کې ارګ ودان کړ، چې هغه تراوسه پورې د افغانستان د سروال هستوګنځی دی.

د پاچا محمد نادر په لنډې واکمنۍ کې بالاحصار بېرته ودان او حزبي پوهنتون په کې ځای پر ځای شو. د پاچا محمد ظاهر په پاچایۍ کې، چې ځرخي پله ته نزدې پراخې ودانۍ جوړې شوې، حربي پوهنتون هلته نقل شو. په بالاحصار کې بیا د کوماندويي قوې په نامه یو غونډ په کې ځای پر ځای شو. دغه قوه، چې له دولس سوو سرتېرو نه جوړه وه، له دې امله مهمه شوه چې د شېر دروازه لمن په هکسه کې پرته او ارګ ته نزدې او په هغه حاکمه وه. د خلقي حکومت په وخت کې د بالاحصار تر پاڅون نه یوه ورځ دمخه له جلال اباد نه یوه نظامي قطعه په کې ځای پر ځای شوه، چې ویل کېږي د اسلامي ګوند یو شمېر افسران په کې وو.

د بالاحصار پاڅون په اړه، چې دزمري میاشتې په 14م کال 1379 ) د اګست 5مه 1979 ( وشو، روایتونه ډول ډول دي او یو یې هم دقیق او مفصل نه دی. هرڅه چې و حکومت هغه په چټکۍ او بې رحمۍ سره وځپه. جنګي الوتکو له هوا نه او ټانکونو له ځمکې نه راکټونه او ګولۍ پرې حواله کړې او له دولس نیمو بجو نه تر شپږو بجو پورې یې په پېنځه نیمو ګړیو کې پاڅون غلی او نابریالی شو.

د مؤلف هایمن د وینا له مخې له بالاحصار نه "...یو کماندويي واحد او ټانک چلوونکي د اګست پېنځمه غرمې کې مخ په ښار روان شول، چې د تره کي_امین د وزیرانو په نیولو سره چې د خلکو په کور ]ارګ[... کې یې غونډه لرله، په کودتا سره حکومت ترلاسه کړي. د بغاوت مخکښان ځوان افسران وو، چې د لومړي ځل لپاره یې له چریکانو سره لاس یو کړی وو."[80] زما د جورنال له مخې "... مخالفین د حکومت پر ضد ولاړ شول او د څو سیاسي ډلو طرفداران وو، چې ائتلاف یې سره کړی... او

يوه لويه توطيه يې جوړه کړې وه او د کابل په نورو مېشته لښکرو او فرقو کې هم بايد دغسې حرکت په يوه وخت کې شوی وای، خو... حکومت ته ددغسې حرکت را پور رسېدلی و، مګر د شروع ځای او وخت يې ورته معلوم نه و او څه وخت، چې حکومت د بالاحصار په غونډ کې ځينې مشتبهه منصبداران ونيول، نور پاتې توطيه کوونکي په دې فکر شول، چې پخوا له دې چې وخت فوت کړي او حکومت پر دوی خبر ېږي، بايد حرکت شروع شي. دا و چې دوی شروع وکړه او لومړی يې د کوماندو هغه قطعه، چې تازه له جلال اباد نه راغلې وه، له مېنځه يووړه. په همدغه ګير و دار کې حکومت خبر شو او په مقابلو اقداماتو يې لاس پورې کړ، چې د هغوی يانې مخالفينو پر ضد د ټانکونو او ټانکونو استول وو. مخالفين يو خو حصار شول او بله دا چې له نورو قطعو سره يې ارتباط قطع شو او که څه هم دوی ډېر کوښښ وکړ... په پای کې دوی وو هل شول. تلفات په دواړو خواوو کې زيات وو... په دوی کې لاروي هم شامل وو." (81)

دلته څو ټکي د توجه وړ دي، يو دا چې دغه پاڅون د يوې ډلې نوښت نه و، عظيمي دا د ماوستانو د عمومي پاڅون يوه برخه ګڼي، چې د حرکت اسلامي او رهايي په ګډون يوه جبهه وه. د دوی په وينا "...قرار بود همزمان در بسياری نقاط ديګر کابل و ولايات حرکت های مسلحانه جهت براندازی دولت امين بوجود ايد." (82) خو د هغو په فکر د غه پاڅون د څو تنو د خيانت له امله سرته ونه رسېد. څنګه چې له دوی سره د خلق دموکراتيک ګوند د ښمني، چې حکومت يې په لاس کې و، ايډيالوجيکي او نه پخلا کېدونکې وه، ترد غه وخت پورې يې د هغو پېژندل شوي غړي تر مرګکي فشار لاندې نيولي وو. دوی هم د چاروکيو په زوروا کې سره پار بدلي وو، خو د غه ډلې د ائتلاف په حال کې هم د غومره پياوړې نه وې، چې حکومت په کودتا سره نسکور کړي. دا هم يقيني نه ده،

چې د غه جبهه به په رښتیا له پېنځو سازمانونو نه جوړه وي. له رهایي او حرکت اسلامي پرته د نورو نومونه هم معلوم نه دي. کوم شی چې معلوم دی، دا دی چې دوی سره په ګډه او یوه وخت کې عمل ونه کړ، یا یې کولی ونه شو. بله دا چې کودتا کوونکیو افسرانو ته دا پته وه، چې حکومت دوی پېژندلي او پخوا له دې، چې اګسا ته په لاس ورشي، انتحاري عمل ته لاس واچوه. بیا هم زما د جورنال له مخې، "... څنګه چې یو ډګرمن منصبدار ونیول شو او له هغه نه دغسې لست د منصبدارانو ووت، چې د اګسا غړو په خاص مهارت سره ددغه لست رمزونه کشف کړل او هغه منصبداران یې ونیول. پاتې منصبدارانو ښه وګڼله، چې پخوا له دې چې دوی هم ونیول شي، سمدلاسه یې په فعالیت لاس پورې کړ. له همدې امله به وي، چې پاڅون کوونکیو بې له دې چې ملګرو یې حرکت کړی وی، په رڼا ورځ د انتوني هایمن په وینا په "ځان وژونکي" عمل لاس پورې کړ. په دغه لنډ او ناکام پاڅون کې ډېر نظامیان او لارویان په ډېرې بې رحمۍ او غوځه توګه له منځه یووړل شول، چې په هغو کې ډېر ماهر کمپوزر نینواز هم شامل و. دغه ناکام پاڅون بې اثره هم نه و. د مؤلف حق شناس په وینا "گرچه قیام بالاحصار به ناکامی انجامید، لیکن اثرات قابل ملاحظه ای بر قطعات دیگر اردو وارد نمود. بارز ترین نمونه اش پیوستن غند کوهی اسمار با مجاهدین و مردم بود که در اوایل میزان صورت گرفت." (83) د همدغه پاڅون له ځپلو وروسته حکومت د نظامي او امنیتي افسرانو معاشونه په سلو کې سل زیات کړل، داسې یې هم د کابل په کش کروهي کې له "انقلاب" نه دفاع کمېټې جوړې کړې او غړي یې ورته وسله وال کړل. په کابل ښار کې یې د شپې ګرځېدلو بندیز تر پخوا یو څه نور هم اوږد کړ.

د بالاحصار او اسمار پوځي پاڅونونه، چې

دواړه د 1979 کال د اګست په میاشت کې وشول، د خلقي حکومت پر ضد وروستي لوی او مهم پاڅونونه وو. د اسمار له پاڅون نه څه کم یوه میاشت وروسته، چې حفیظ الله امین واکمن شو، حکومت ضد پاڅون لیدل شوی نه دی. د امین په وخت کې د یادولو وړ یوائینۍ ناکراري د ریشخورو په فرقه کې پېښه شوه، چې تره کي پلوو افسرانو د هغه له مرګ نه وروسته جوړه کړې وه او هغه هم زر وځپل شوه. پوځ، چې د پاڅونونو په ځپلو او داسې هم د خلقي کېډلو په بهیر کې بې خې ډېر تاوانونه وګالل، په پای کې حکومت ته د اعتماد وړ قوت او مخکښان یې امین پلوه افسران او منشیان شول، خو دغه کار وطن او وطنوالو ته ډېر ګران تمام شو. لکه چې ولیدل شول، د پاڅونونو د ځپلو او د پوځ د خلقي کېدلو په بهیر کې دغومره ډېر نظامي او ملکي افغانان ووژل شول، چې په افغانستان کې بل هېڅ وخت په د غومره لنډې مودې کې د غومره ډېر افغانان وژل شوي نه دي. ددغې تراجیدۍ اصلي علت دا و، چې د ثور کودتاچیانو حکومت په خپله جوړ کړ، ځانله یې ځانګړی کړ، نورو سیاستمارو ته یې پکې برخه ورنکړو او په هغه سربېره حکومت یې هم په خپله خوښه او په زور چلوه، بې له دې چې د خلکو ارزښتونه او حتی د هغوی د چلندونو په برابر کې د هغو غبرګونونه په نظر کې ولري.

شپږم څپرکی

# د تره کي_ امین دښمني او د اندروپوف شیطاني

لومړنۍ خبرې

هغه چې د ثور کودتا د عمومو د هیلې پرخلاف وه، داسې هم د نور محمد تره کي او حفیظ الله امین اختلاف د توقع پرخلاف و. دوی دواړه سره ډېر نږدې پېژندل شوي وو. تره کي به ویل، چې دی او امین لکه نوک او وری داسې دي. امین هم تره کي ته دغسې احترام کاوه، چې لکه یو منونکی زوی یې خپل پلار ته کوي. امین به د خلکو په مخ کې هم د تره کي لاسونه ښکلول. په واقع کې ټولو ګوندي غړیو تره کي ته ډېر احترام کاوه، که څه هم هغه د عبدالکریم میثاق په شان د لېږې منظمې زده کړې خاوند و. تره کی تر ټولو ګوندي لویانو مشر و او ګوند هم په اصل کې د هغه په نوښت او پرله پسې زیار جوړ شوی و، نو ټولو ورته هغسې اراده لرله، لکه چې مریدان یې خپلو پیرانو ته لري. تره کی په ټولو رسمي خپرونو کې په مبالغه یېزو لقبونو ستایل کېده لکه "د ختیځ نابغه"، "پیاوړی استاد"، "د ګوند روح" او داسې نور... تره کی په دغسې ستاینو سره د رومانیې د کمونستي نظام مشر چایسسکو مقام ته رسول شوی و، چې د "کارپاتین نابغه" او "د ډانیوب فکر" په لقبونو ستایل کېده. دا او دغسې نور لقبونه د امین له خوا تره کي ته ورکول کېدل او هغه په ټولو حکومتي او ګوندي خپرونو او وسیلو کې

لیکل کېدل او اورول کېدل. داسې هم د تره کي لوی عکسونه په ټولو حکومتي او ګوندي او د کابل ښار په ودانیو باندې ځړول شوي وو، چې زیاتره ښاریان یې په لیدلو زړه خوړین کېدل. په همدغه لړ کې د جولای په 14مه د تره کي د زوکړې کالیزه په دغسې پرتمین ډول ولمانځل شوه، چې افغانانو ته بېخي بې سارې او د تعجب وړ وه. په معاصر افغانستان کې دا لومړی ځل و، چې یو افغان هغه هم یوې شپنې کورنۍ ته منسوب افغان په نظامي کودتا سره د دولت سروال شي او بیا په دغسې بېسارو لقبونو سره وستایل شي، لکه ستالین چې په شوروي اتحاد او هټلر، چې په نازي جرمني کې ستایل کېده. امین د تره کي په وړاندې ځان "وفادار شاګرد" په نامه یاداوه، خو په عین حال کې یې په مهارت سره کوښښ کاوه، چې د هغه قدرت کم او خپل قدرت زیات کړي.

په راتلونکیو پاڼو کې د دغه موضوع څېړل کېږي، چې د دوی دغسې دوستي ولې او څنګه په مرګکي دښمنۍ بدله شوه او شوروي لویانو او ک.ج.ب والو په هغه کې څه ډول رول ولوباوه؟

## د تره کي_ امین دښمنۍ نه دمخه

د تره کي_ امین ترمېنځ اختلاف د هرات له پاڅون نه وروسته پیدا شو، چې د ک.ج.ب چاروا کیو په لمسونې سره ژر په مرګکي دښمنۍ بدل شو. د دغې دښمنۍ بیان به ژر وشي، خو تر هغو چې د همدغه کال په سپتمبر کې په دلکشا ماڼۍ، اګسا او په سل بستره ییز روغتون کې د امین پلویان نه وو وژل شوي، حتی د حکومت ډېر وزیران او لوړ رتبه ګوندیان هم په دغه اختلاف خبر نه وو. اختلاف تر دغه وخته پورې د دسیسو په بڼه و، چې په اصل کې د اګسا د سروال اسدالله سروري او د هغه د ملګرو له خوا د ک.ج.ب چاروا کیو په سر کې د اګسا مشاور بوګدانوف په لمسونې سره کېدلې. دا د سرپټو او زورواکو حکومتونو خاصه ده، چې اعلی قدرت د خلکو په

نامه له خلکو نه اخلي او خپلو پا سنيو کړيو ته يې منحصر کوي او خپلمنځي اختلافونه په دسيسو او د رقيبانو په ځپلو له مېنځه وړي، نه د زغم په ښوولو او په بحث کولو سره. د خلقي زورواکی نظام هم همدغسې و.

د کرنې او اوبو لګولو وزير او د ګوند د پوليټبورو غړی صالح محمد زيری وايي، چې "زه تر هغه وخته پورې چې په ارګ کې د دوی ] تره کي او امين[ د محافظينو ترمېنځ نښته وشوه، د دوی په اختلافونو نه وم خبر." دی دا هم وايي، چې نور وزيران )د ماليې وزير عبدالکريم ميثاق، د پوهنې وزير غلام د ستيګر پنجشيری، د عدليې وزير عبدالحکيم شرعي جوزجاني او د کانو او صنايعو وزير محمد اسماعيل دانش( هم په دغه اختلاف خبر نه وو. زيری ددغې بې خبری علت دا ګڼي، چې "زموږ خبر]تيا[ او ناخبر]تيا[ کوم اهميت نه درلود."[1] تره کي خپل وزيران له سياست کولو نه منع کړي او هغو ته يې فرمايلي وو، چې "تاسو د خپلو وزارتونو کارو ته متوجه شئ، په سياسي او نظامي موضوع ګانو سره ] سرونه[ مه خوږوئ. دغه دی موږ ټوله ورځ په همدې مسئالو اخته يو او د شپې تر ناوخته يې حل او فصل کوو." امين هم په همدغسې ناستې کې د "شرق نابغه" په ملاتړ وويل، چې "موږ هر يو بايد هغه وظيفه اجرا کړو چې تره کي صاحب او ګوند راسپارلې ده. که موږ وغواړو په ټولو چارو د يوه بل په کارونو ځان پوه کړو، نه شو پسې رسېدلای."[2]

په دې ډول په خلقي نظام کې حکومت او سياست، چې په اصل کې د ګوند په انحصار کې و، په ګوند کې د امنيتي سروالانو په انحصار کې شو، چې زياتره يې په اصل کې نظامي واړه تخنيکي منصب وال وو، لکه اسدالله سروري د هوايي قوې ميخانيک، محمد اسلم وطنجار، چې د ټانک نيمه باسواد افسر و، سيد محمد ګلابزوی چې دريم بريد من و، عزيز اکبري چې ځارندوی و او داسې نور... په

خپله د "شرق نابغه" هم د لومړي ښوونځي یو څو ټولګي لوستلي و. په دوی کې یواځې امین د لوړې زده کړې خاوند و. وروسته له هغه چې د کابل پوهنتون په ساینس پوهنځي کې لیسانس شوی و، د نیو یارک په پوهنتون کې په روزنه او پوهنه کې د ماسټرۍ درجه ترلاسه کړې وه. په کولمبیا کې هغه ډاکټرۍ شهادتنامې ترلاسه کولو لپاره د تیسس تر لیکلو پورې زده کړه کړې وه، چې د زده کړې بورس یې د کابل پوهنتون د سروال صمد حامد له خوا قطع شو او دی کابل ته وغوښتل شو.

لکه چې دمخه ویل شوي، د کابل حکومت لویانو د هرات په پېښه کې شوروي اتحاد ته موقع ور کړه، چې د افغانستان په چارو کې تر پخوا ډېر ښکېل شي. بیا نو د ک.ج.ب سروال یوري اندروپوف په دغسې کوښښونو پیل وکړ، چې ببرک کارمل د امین پرځای په واک شي. د ک.ج.ب چارواکیو له همدغه وخت نه تر نظامي یرغل پورې په کابل کې حېرانوونکې دسیسې وکړې. د همدغو دسیسو لپاره یې د شوروي سفارت له غړیو نه سربېره د متخصصانو او مشاورو په نامه ډېر شورویان افغانستان ته واستول. دوی په اسانۍ سره افغانستان ته راتللی شول. د ک.ج.ب له چارواکیو نه غېر د شوروي نظامي استخباراتو (GRU) چارواکیو هم په افغانستان کې د خپل فعالیت لمنه پراخه کړه.

د شوروي حکومت له اول نه د خلقي حکومت په راتلو خوښ نه و. د وزیري په وینا "... د ثور د انقلاب په بریالیتوب د شوروي اتحاد مشرتابه او په خاصه توګه اندروپوف ډېر خپه وو."[2] نو دوی "... د ببرک ډله دې ته هڅوله، چې څومره زر کېږي او خلقیانو څخه واک ترلاسه کړي."[4] د شوروي لویانو د غه هیله بېځایه وه. د غه کار د کارملیانو په وس کې نه و. لکه چې دمخه ویل شوي، په دغې لار کې یې کوښښ وکړ، خو له لاسه یې څه ونه شول. لویان یې اول بهر سفیران شول او

بیا له افغان تابعیت نه هم محروم شول. سره له دې هم دوی شورویانو ته په تمه وو، چې په واک به یې ر سوي. د دوی ز یاتره لو یان لکه چې دمخه ویل شوي، د شوروي اتحاد منونکي ایجنټان وو. په خپله کارمل هم د "مارید" په نامه د دوی ایجنټ و، نو ځکه دوی تر خلقیانو زیات شورویانو ته د اعتماد وړ وو. خلقیان که څه هم مسکو پلوه وو، خو د شورویانو په دستور یې حکومت نه کاوه. شورویان چې په تره کي هم پوره ډاډه نه وو، هغه یې هم "مغرور" او هم "بې کفایته" ګڼه، سره له دې چې هغه تر کارمل نه دمخه د ک.ج.ب ایجنټي منلې وه، خو د ک.ج.ب د اصولو له مخې تره کي وروسته له هغه چې ګوند یې د شورویانو له خوا د "ورور ګوند" په نامه وپېژندل شو، په رسمي ډول له ایجنټۍ نه آزاد وګڼل شو. شورویانو بیا له هغه سره د ګوند د لوړ سروال یا عمومي منشي په توګه همکاري کوله[4الف]. خو ک.ج.ب "... د امین په اړه چې د تره کي او کارمل پرخلاف د ک.ج.ب له خوا هېڅکله د ایجنټ په توګه جلب شوی نه و، لا سخته بدګوماني درلودله."[5] نو د ک.ج.ب ټولې دسیسې د امین پر ضد وې، خو امین نه یوازې د غه دسیسې شنډې کړې، بلکې ځان یې د ګوند او دولت د سروالۍ مقام ته ورساوه.

## خلقي او شوروي لویان په کریملن کې

لکه چې دمخه ویل شوي، شوروي حکومت له اول سر نه د خلقي حکومت په هسکېدو خوښ نه و، د شوروي اتحاد لوړ واکمن لیونید بریژینف دغه ناخوښي هغو یوولسو خلقي لویانو ته څرګنده کړه، چې د 1978 کال د دسمبر په میاشت کې د تره کي په سروالۍ مسکو ته تللي وو او د سفر په پای کې یې د افغان_شوروي د دوستۍ تړون

لاسلیک کړ. تراوسه دغه سفر د خلقي او شوروي لویانو د دوستۍ اعلی نمونه ګڼل کېده، خو د د سمبر په اووم ماښام په کریملن کې د بریژنیف او تره کي ترمېنځ هغه سې لفظي ټکر پېښ شو، لکه چې یو کال دمخه د ولسمشر محمد داود او بریژنیف ترمېنځ پېښ شوی و. دلته د لومړي ځل لپاره ددغه ټکر بیان په یو څهٔ اوږد ډول د خیال محمد کټوازي د یوې لاسي لیکنې له مخې کېږي، چې زما د پوښتنو په ځواب کې یې کړې، په نامه د "زما سترګو لیدلی حال". دی د هغه افغان هیئت مطبوعاتي غړی وو د غه ټکر تر هغه بل ټکر نه شډل او زیږ و او بریژنیف په خلقي لویانو دغسې تېره ورته، چې لکه د کټوازي په وینا "اولادونه" یې وي، خو دغو "اولادونو" هغه خپل سپک چلند ته ښه ملتفت کړ.

په غونډې کې لومړی بریژنیف خپله لیکل شوې وینا واوروله "خو کله چې ... نور محمد تره کي په خپلې وینا پیل وکړ... بریژنیف د نور محمد تره کي د خبرو په مېنځ کې ورولوېده... او ورته یې وویل، چې "ولې د دوستۍ او مرستې اړتیاوې تکرارېږي؟ مهرباني وکړه د موجودو اختلافاتو په هکله خبرې وکړه!" کټوازي لیکلي، چې تره کي له د غې مداخلې سره سره خپلې وینا ته دوام ورکړ "خو دا وار بیا هم بریژنیف په ترېو تندي د تره کي خبرې ور غوڅې کړې او په تکرار سره یې وویل: ماته د مرستو او وروګلوۍ خبرې مه کوه... زموږ او ستاسې په خپلمنځي شته ستونځو باندې وغږېږه." کټوازی لیکي، چې د تره کي رنګ سور شو او په تندي کې یې د قهر او خوا شینۍ نښې څرګندې شوې او ځان یې غبرګون ښودلو ته اماده کاوه، چې "حفیظ الله امین... د نور محمد تره کي په اجازه په جدي لهجه بریژنیف ته وویل: د نننۍ خبرو په اجندا کې خو د اختلاف موضوع موجوده نه وه، ځکه چې موږ له تاسې سره کوم اختلاف نه لرو، خو تاسې چې د دواړو

هېوادونو په شته اختلافاتو او خپلمنځي کړکېچ باندې خبرې کوئ، نو مهرباني وکړئ د اختلافاتو مسئله رامېنځ ته کړئ، چې خبرې اترې پرې وکړو." کتوازی خپلې لیکنې ته دوام ورکوي او وايي، چې بریژنیف "څرنګه چې هغه یې د خپل ځان سیاسي آندول نه ګانه، نو د حفیظ الله امین مداخله... سپکاوی ورته ښکاره شو، ځکه یې د هغه د خبرو په وړاندې غبرګون ونه ښود." تره کي بیا "د خبرو مزی په لاس کې ونیوه، نو په جدي توګه یې وویل: د افغانستان د اقتصادي ودې او تکامل په یوه داسې وروسته پاتې پړاو کې دی، چې تر هغه دمخه بهرنیو مرستو ته اړتیا لري او موږ په همدې هیله انقلاب کړی. موږ ګومان کاوه، چې شوروي اتحاد... به له هېڅ ډول مرستو او همکاریو څخه ځان ونه سپموي... خو که تاسو ته د مرستو او دوستۍ یادونه ښه نه ښکاري، موږ د خبرو لپاره نور هېڅ نه لرو او په نړۍ کې ډېر داسې پرمختللي هېوادونه شته دی، چې مرستې ورڅخه وغواړو... دا چې تاسې د اختلافاتو موضوع یادوئ، په دې هکله دومره ویلی شم چې افغانستان یو آزاد او خپلواک هېواد دی، موږ به هېڅ چا ته اجازه ورنکړو، چې قومنده راکړ شي." تره کي بیا بې له دې چې د بریژنیف غبرګون ته انتظار وباسي، له سالون نه په وتلو شو او ملګري یې ورپسې وخوځېدل، خو په دغه وخت کې د شوروي د ګوندي چارو د بانډنیو اړیکو سروال پانوماریف له بریژنیف سره پس پسکې وکړې او بیا د تره کي په لور ورغلل، چې وضع عادي شي، خو "ګته یې ونکړه او غونډه بې له کومې پایلې او نتیجې په خوابدۍ سره پای ته ورسېده."

کتوازی لیکي، چې افغانان ټول د تره کي په کوټه کې په کریملن ماڼۍ کې غونډ شول "او هلته نور محمد تره کي سره له دې، چې پوهېده چې د هغه په کوټه کې د خبرو د ثبت وسایل شته... په قصدي توګه د بریژنیف په ناوړه چلند ګوت نیوی

وکړ" تره کي بیا ددغې پوښتنې په برابر کې، چې د دواړو هېوادونو د اختلاف موضع به څه وي؟ وویل چې "شوروي زما په ویناوو او مطبوعاتي مرکو او همدا راز زموږ په حکومتي جوړښت خوشحاله نه دی او دوی وایي، چې ولې نور محمد تره کی په هره مرکه کې... وایي، چې موږ داسې انقلاب کړی چې نه بریژنیف خبرو او نه کارتر او په دغه انقلاب کې نه روبل مصرف شوی او نه ډالر." تره کي دا هم وویل، چې "دوی په دې خوابدي دي، چې ولې ببرک کارمل او څو تنه پرچمي ملګري یې له خپلو حکومتي پوستو څخه لیرې او سفیران وټاکل شول." هغه دا هم وویل، چې "شورویان له موږ څخه غواړي، چې کارمل او ملګري یې بېرته افغانستان ته راشي... خپلې پخوانۍ رتبې و لري، خو موږ به دا ورسره ونه منو."

د کټوازي په وینا سبا "د شوروي اتحاد صدراعظم الیکسي کاسیګین او نورو وزیرانو د افغاني لوري سره اړیکې نیولې وې او د بریژنیف د چلند په اړه یې بښنه غوښتې وه." بیا د همدغې ورځې په ماښام په کریملن کې مېلمستیا شوې وه، چې په هغې کې د معمول په شان د شوروي لوړو چارواکیو او سفیرانو ګډون کړی وو. د ډوډۍ پر سر بریژنیف څو ځله له ځایه ولاړ شو او د تره کي "د ستایلو په ترخ یې د هغه په سر سلامتي جامونه پورته کړل... خو نور محمد تره کی تر پایه په خپل ځای ارام ناست و." اقبال وزیري هم ددغه تکر ذکر کوي، چې هغه یې د کټوازي او داسې هم د هیئت د بل غړي محمود سوما د شفاهي یاداشت له مخې ترتیب کړی دی[6].
د افغان هیئت بل غړی صالح محمد زیری هم ددغه لفظي ټکر یادونه کوي، خو په لنډه ډول. "نور محمد تره کي د مجلس د پای ته رسېدلو په وخت کې دبریژنیف سره د مباحثې په جریان کې له

غونډې وپاڅېده او بريژنيف ته يې وويل، چې يواځې خو تاسې نه ياست چې موږ مرستې درڅخه اخيستلای شو، په نړۍ کې هېوادونه ډېر دي." زيری وايي، چې "بريژنيف يې سپک کړ." سره له دې هم د زيري په وينا "شورويانو تر هغه وروسته همغاسې اقتصادي مرستې وکړلې، چې موږ غوښتې وې."[7] دا به شايد هسې تصادف وي، چې هم محمد داود او هم خلقيان هر يو له کريملين سره له ټکر نه يو کال وروسته نسکور شول.

## د تره کي_ امين د اختلاف پيل

لکه چې دمخه ويل شوي، د تره کي_ امين اختلاف د هرات د پاڅون په بهير کې پيل شو. کيسه داسې وه، چې د هرات د پاڅون په وخت کې امين د اقبال وزيري په ملګرتيا عسکري کلب ته لاړ او له هغه ځايه د شوروي اتحاد د دفاع وزير ديمتري اوستينوف سره د پاڅون په اړه وغږېد، چې په دې اړه دمخه يو څه ويل شوي دي. اوستينوف امين ته وويل، چې ښه به دا وي چې تره کی په دغه اړه له بريژنيف سره په مسکو کې ووينې. هغه دا هم وويل، چې ددغه مقصد لپاره به يوه ځانګړې الوتکه دروا ستول شي او سهار د وخته به له تره کي سره بېرته کابل ته درشي. همدغسې هم وشول. له تره کي سره لوی درستيز محمد يعقوب ملګری و. په مسکو کې لکه چې دمخه ويل شوي، تره کي له شورويانو سره په اوږد ډول وغږېد. تر هغه ځايه، چې په دغې موضوع پورې اړه لري، په مسکو کې تره کي د بريژنيف له خوا "مشغول کېږي، چې د هرات پېښې څخه په ګټه اخيستلو امين د ملي دفاع وزارت څخه ګوښه کړي." تره کی په بل سهار د انقلابي شورا په غونډه کې، چې له امين پرته د تره کي په سفر خبر نه وو، بې له دې چې له چا سره يې مشوره کړې وي، ناڅاپه غږ کړ چې "ما اسلم وطنجار د باصلاحيته لوی درستيز په توګه وټاکلو او په

خپله به د ملي دفاع وزارت په چارو کې ور سره مرسته کوم.)"[8] په امین باندې دا یوه ناڅاپه ځپېږه وه، چې حواله شوه او چې په دې ډول له ملي دفاع وزارت نه ګوښه شو، ورسره یې په خپګان سره همکاري پرې کړه. په داسې حال کې، چې په پوځ باندې یې تر هر بل خلقي نه اثر ډېر و. وطنجار که څه هم په کودتا کې یې د مخکښې رول په برې سره لوبولی و، د امین د نه همکارۍ په حال کې ددې جوګه نه و، چې د ملي دفاع چارې تر سره کړي. د ملي دفاع وزارت سر مشاور تورن جنرال ستانیسلاف ګاریلوف په همدغې روحیې سره د وزیري له لارې تره کي ته پیغام واستوه. په پای کې د امین او تره کي نږدې کسان، چې مشخص شوي نه دي، د تره کي او امین ترمېنځ ښکته او پورته شول او تره کی بیا د مارچ په 27مه امین لومړی وزیر، وطنجار د ملي دفاع وزیر او محمد یعقوب لوی درستیز په توګه وټاکل[9].

په پورته ډول د امین او تره کي ترمېنځ په ظاهر کې روغه راغله، خو همغه رښتینې نه وه او دوام یې نه شو کولی. تره کي که څه هم امین د لومړي وزیر په توګه ونوماوه، په خپله یې "لا هم د وزیرانو شورا د غونډو سروالي کوله او امین په دغه کار سره ډېر خپه کېده.)"[10] په خلقي نظام کې د سر په کسانو کې دټکر امکان ډېر و. غټ علت یې دا و، چې نظام نوی او ناآشنا و او دغسې قانون یې نه لاره، چې د همغه له مخې د مقامونو صلاحیت او د ندو حد او حدود ټاکل شوي وي. بل علت په ګډه او ملګرتوب سره د کار د کولتور نشتوالی او په دغو پښتنو کې د ګونديماري او تربورۍ ټینګ احساس و. هرڅه چې و، په دغو پښتنو کې د واکمنۍ په وخت کې د واک ګټلو د دورې ملګرتوب هوا کړې وه او ځای یې د ځان پالنې او رقابت احساس نیولی و. د همدغه احساس له مخې به و، چې لومړي وزیر امین د می په اوله ورځ، چې حکومت د کارګرو د ورځې په

نامه لمانځله، تره کي خبر نه کړ او د حکومت استازي توب یې په خپله وکړ. که څه هم د غه امتیاز د عنعنې له مخې د تره کي و. د جولای تر میاشتې پورې د دوی د غه اختلاف د لفظي ټکر سرحد ته رسېدلی و. امین د سیاسي دفتر په غونډه کې د حکومت د ناکامیو پړه په تره کي واچوله. په بلې میاشت (اګست) کې تره کي امین په دې ګرماوه، چې کورنۍ واکې کوي[11]. له دېنه د تره کي مقصد دا و، چې د امین مشر ورور عبدالله امین که څه هم د ګوند غړی نه و، په کندوز او درې نورو ولایتونو کې د تنظیمي رییس په شان په پوره صلاحیت سره کار کاوه. په همدغې میاشت کې د اسمار په پېښې سره د دوی ترمېنځ اختلاف نور هم زیږ شو، چې دمخه یې بیان شوی دی. امین له اختلاف سره سره تره کي ته په څرګند ډول پوره احترام کاوه او د پخوا په شان یې په مبالغه ییزو لقبونو سره ستایه. په عین حال کې یې کوښښ کاوه، چې د هغه واک د ځان کړي. امین ډاډه و چې په پای کې به لاس بري دده وي. دی چې په دغه وخت کې د پنځوس کلونو په ځان تکړه، روغ، فعال او خواریکښ و، په داسې حال کې چې د دوو شپېتو کالو منډلی او چاغ تره کي، چې په ځان روغ هم نه و، په حکومت کولو کې د امین جوګه کېدی نه شو. په افغانانو کې هم د غه فکر ټینګ و، چې د ګوند او حکومت اصلي محور حفیظ الله امین دی.

خو امین ته دننه په ګوند او حکومت کې دغسې نور مخالفین پیدا شول، چې تر پرچمیانو نه هم ورته خطرناک وو. دغه مخالفین د اګسا سروال اسدالله سروري او درې وزیران (محمد اسلم وطنجار، سید محمد ګلابزوی او شیر جان مزدوریار) وو. دوی د 1979 د جون په میاشت کې سره یو موټی او د امین پر ضد شوي وو. د دوی د مخالفت لوی علت دا و، چې دوی د خپلو زارتونو په اړه د کارونو راپور د پخوا په شان تره کي ته ور کاوه، نه

حفيظ الله امين ته، که څه هم دی د لومړي وزير په توګه د هغوی نېغ آمر شوی و. سروري په اګسا کې د ک.ج.ب سرمشاور ل.پ.بوګدانوف ته د امين پر ضد خپل مخالفت ښوده. د مخالفت د غه راپور په کابل کې د ک.ج.ب استازي جنرال ايوانوف او داسې هم اوساد چې په مسکو کې اندروپوف ته استوه)[12]. سروري خپل مشاور بوګدانوف ته په مشخص ډول ويلې، چې "امين يو ډېر خطرناک سړی دی، هغه به هر هغه څه وکړي، چې غواړي يې.)[13]"
دوی ټولو دا هم ويل، چې ډله ييزه مشري له مېنځه وړل شوې او هر څه امين په لاس کې نيولي. امين او د غه څلور کسان په شخصي لحاظ هم سره وران وو، وروستيو له خلقي نجونو او نورو نه جنسي استفاده کوله او امين دد غه کار مخالف و. په واقع کې دوی "لچکان" وو، په داسې حال کې چې امين فاميلي سړی او د حيثيت او اخلاقي کرکتر خاوند و)[14]. په دغه وخت کې د شوروي سفارت غړو او د ک.ج.ب خاص استازي جنرال بوريس ايوانوف دغه ډله لمسوله، چې د امين او تره کي اړيکې سره خړې پړې کړي. وزيري ليکي، چې تر هغو چې "... د شوروي سفارت کارکوونکو او د ک.ج.ب ايجنټانو د اسدالله سروري او د هغه د ملګرو په ذريعه په دې لا بريالي شوي نه وو، چې تره کی او امين يو پر بل باندې بې باوره کړي، نو هغه سفارت به شبنامې د تره کي_امين بانډ په نامه خپرولې او د اګسا او د شوروي سفارت له موټرو به تيت کېدلې، خو کله چې پاس ياد شويو څلورو تنو وکړای شول، چې د ک.ج.ب په دستور د تره کي او امين ترمېنځ نفاق مېنځ ته راوړي، بيا شبنامې د امين بانډ په نامه خپرېدې او د اګسا او شوروي موټرو له خوا تيت کېدې." وزيري دا هم وايي، چې "شوروريانو بۀ کله کله موږ ته پخپله راکولې، چې ګويا دوی ته رسېدلي دي.)[15]"
د امين پر ضد شپې ليکونه به دغومره ډېر خپر يدل، چې يوه امريکايي مؤلف براډ شبر هم د

هغو يادونه كړې ده. د هغه د روايت له مخې د اګست 29مه شپه ليک تر نورو ښه څرګند دی. په دې ډول، چې د څوارلس تېروتنو يا ناکاميو په سر کې يې راوړي، چې "وفادار انقلابي کسان" ګوښه کړل شوي او "په زرګونو هغه خلقيان، چې له امين سره نه جوړېدل، بندي شوي دي" او دا چې "د امين د سلوک او استبداد... په سبب مخالفين سره يو موټی شوي چې د هېواد امنيت او روغتيا يې له خطر سره مخامخ کړې ده." د شپې ليک په اخر کې ويل شوي، چې "که څه هم موږ د ګوند عمومي منشي د امين په کړو او سلوک نه څو ځله خبر کړ، هغه په ډېر افسوس سره وويل چې د هرڅه واک د امين په لاس کې دی او زه هېڅ څه کولی نه شم او د هر څه مسؤليت د امين په غاړه دی، نو ښکاره ده چې ټول خلقيان بايد د امين په وړاندې سره يو موټی شي او له واک نه وغورزول شي." (16) لکه چې وزيري هم وايي ټول د غه شپې ليکونه په اګسا کې د سروري له خوا خپر يدل. نورو مخالفينو ته د هغو خپرونه د شپې ييز بنديز په حال کې ناشونکې وه. سروري د بوګدانوف په ډاډ سره امين ته سپکې سپورې هم ويلې. په خپله بوګدانوف هم د هغو شوروي مشاوروانو له ډلې نه و، چې له امين سره سخت مخالف و.

لکه چې دمخه ياد شوي، سروري چې يو سخت زړی دسيسه ګر و، په دې فکر وې چې د "ثور انقلاب" مخالفين بايد وځپل شي. البته په خلقيانو کې دغه فکر عام و، خو ده د "ضد انقلاب" د ټکولو لپاره دغسې اداره لرله، چې ښځينه او نارينه افغانان يې بندي کولی، کړولی او وژلی شو، بې له دې چې د محکمې، قانون او حتی ګوندي او حکومتي لويانو پروا وکړي. د ظلمي خروټي په وينا، کله چې ماما يې امين له سروري نه د خلکو د عريضو له مخې د ورک شويو افغانانو په

اړه معلومات وغوښتل، هغه وویل چې "هغوی پاکستان ته تښتېدلي دي."[17] امین بیا سروري ته اخطار ورکړ، خو اخطار یې بې اثره و، ځکه چې په هغه باندې د هېڅ افغان زور نه رسېده. د هغه شاته ک.ج.ب ولاړه وه. د امین د وراره میرویس امین په وینا امین نه یوازې سروري مهارولی نه شو، له هغه نه وېرېده هم، نو یې خپل ځان او د خپلې کورنۍ غړي په احتیاط سره ساتل.

د سروري د ډلې دویم سړی سید محمد ګلابزوی و، چې په اول سر کې له امین سره د غومره نږدې و، چې له کودتا نه وروسته په قصر کې ورسره اوسېده. که څه هم د کودتا په وخت کې "نوموړي خپله دنده پرې ایښې تر دې حده چې خپل کور ته تللی او له هوایي قواوو نه ورغلی ټانک بې اړیکې پاتې و."[18] سره له دې هم هغه په رسمي خپرونو کې د کودتاچیانو په ډله کې نیولی شوی و. دا ددې لپاره، چې اندروپوف پرې خوښ شي. دا په ځکه حقیقت ولري، چې ګلابزوی د "مامد" په مستعار نامه د ک.ج.ب "ایجنټ" و. لکه محمد رفیع چې د "نیروز" په نامه د ک.ج.ب "ایجنټ" و. دوی دواړو د ثور د کودتا خبر پخوا له دې، چې پرې پیل وشي، په کابل کې د ک.ج.ب مرکز ته استولی و[19]. له امین سره د ګلابزوی مخالفت په دې و، چې امین د هغه د هیلې پرخلاف د کورنیو چارو وزیر ټاکلی نه و. د امین په نظر ګلابزوی یو بې تعلیم او بې سواده ووړ ضابط و.

## په افغانستان کې د شوروي اتحاد خاص هیئتونه

د شوروي اتحاد حکومت له لمسونو نه سربېره په نظامي او سیاسي ډګرونو کې هم فعال و. د هرات له پېښې نه لس ورځې وروسته د اپریل په پېنځمه یې د دفاع وزیر لومړی مرستیال او د

پوځ د سیاسي چارو سروال جنرال الیکسي یپیشیف (Yepishev) په سروال له شپږو نورو جنرالانو او نورو نه جوړ یو هیئت کابل ته واستوه، چې هلته "وضع وڅېړي او په افغان پوځ کې د دسپلین، معنویاتو او اغېزتوب پیاوړي کولو لپاره سپارښتنې وړاندې کړي او په پلي کولو یې تېزتګار وکړي، خو دغه هیئت اغېزه چې په ماهیت کې سیاسي وه، څرګنده نه شوه."[20] له یپیشیف سره سیاسي ماهران هم ملګري وو. دی په 1968 کې پراګ ته هم د یوه هیئت په مشرۍ استول شوی و او بیا یې خپل حکومت ته د وارسا د تړون له خوا د مداخلې نظر هم ورکړی و، چې د شوروي اتحاد سیاسي نفوذ پرې خوندي وساتي. هیئت په کابل کې له یوې اونۍ تم کېدلو او سروې کولو نه وروسته خپل حکومت ته نظر وړاندې کړ، چې د افغان پوځ د معنویاتو د ضعف له امله ممکنه ده په هغه کې مخالفین نفوذ وکړي[21]، خو د شوروي حکومت اصلي توجه د خلقي حکومت ترکیب ته وه، چې غوښتل یې د "انقلابي" یا "ملي دموکرات کولو" په نامه د خپلې خوښې افغانان پکې ننباسي. ددغه مقصد لپاره یې د واسیلي سفرنچوک په نامه یو ازمېدلی دیپلومات یا سیاسي استازی کابل ته واستوه. دی پخوا په ګانا کې سفیر او له 1971 نه تر 1976 پورې په ملګرو ملتونو کې د شوروي هیئت د دایمي استازي مرستیال و. کابل به د هغه له راتګ نه دمخه د امریکې سفارت راپورونو ښودله، چې "... شورویانو لا پخوا دغسې پلانونه په لاس کې نیولي وو، چې مطلب یې د خلقي مشرتابه عوض کول و."[22] نو د سفرنچوک اساسي ماموریت دا و، چې په افغان حکومت کې "اساسي تغییر" راوستل شي، چې مشر به یې دغسې یو نوی صدراعظم وي، چې د حکومت "له جاري سیاستونو سره پېژندل شوی نه وي" لکه نور احمد اعتمادي. په دغسې حکومت کې به تره کی، امین

او کارمل هم غټ مقاموونه ولري[23]. سفرنچوک، ځکه په دغه ماموریت وګومارل شو، چې که هغه پکې نابريالى شو، يا له هېواد نه ووېستل شو، د شوروي اتحاد حيثيت به زيانمن شوى نه وي[24].
په خپله سفرنچوک هم د امريکې سفارت له ځينو غړو سره د خلقي حکومت د تغيير په اړه غږېدلى و، حتى مولف سليګ هري سن ته يې هم ويلي و، چې امين د حکومت د پراخ بنسټ وړاندیز ته غوږ نه نيوه او چې "کله موږ په نورو ځايونو کې د ملي دموکراتيک طريقې بر ياليتوب ورته وايه، هغه به ويل چې د افغانستان د خلق دموکراتيک ګوند بل ډول دی او دا چې هغه په کافي اندازه پراخ بنسټه دی."[25]
د شوروي اتحاد حکومت په اصل کې ددې لپاره، چې د سفرنچوک ماموريت اغېزناک شي، يو بل لوى نظامي هيئت د دفاع وزير د مرستيال جنرال ايوان پاولوفسکي په مشرى د اګست په 17مه يانې د بالاحصار له پاڅون نه وروسته او د اسمار له پېښې نه دمخه کابل ته واستوه. دغه لوى هيئت له دري شپېته نظامي افسرانو نه جوړ و، چې په هغه کې نور دولس جنرالان او شپږ کرنيلان وو.
ماموريت يې په ظاهر کې دا و، چې د هېواد پوځي وضع وڅېړي او د پاڅونونو د ځپلو لپاره وړانديزونه وکړي. دا به يې هم په ماموريت کې و، چې د امنيت د خرابېدو په حال کې د شوروي اتحاد نظامي دخالت په نظر کې ونيسي[26]. د هيئت تم کېدل په افغانستان کې دوه مياشتې و، خو د دفاع وزير آستينوف دغه موده اوږدوله.
په هر حال، د هيئت غړي د وضع د سروې کولو لپاره په ټول هېواد کې خپاره شول، خو په اړه يې په رسمي ډول څه ونه ويل شول. پاولوفسکي هغه جنرال و، چې په 1968 کې يې د چکوسلواکيې د لاندې کولو قوماندانى پر غاړه لرله[27]. خو پاولوفسکي د افغانستان پوځي وضع معلوم مولو نه وروسته له کابل نه استينوف ته څرګنده کړه، چې

دا به "مصلحت" نه وي، چې شوروي اتحاد خپل پوځ افغانستان ته واستوي او دا چې له امین سره دې په لوړه سویه خبرې وشي، خو استینوف د هغه هیئت په نومبر کې مسکو ته وغوښت. په مسکو کې جنرال پاولوفسکي له استینوف سره خپله لیدنه په دې ډول بیانوي: "پس از پایان گزارش پیرامون اوضاع در افغانستان دیدگاه خود را در باره اینکه نباید سپاهیان خود را به افغانستان بفرستیم ارایه کردم... پیشنهاد نمودم که کسی از اعضای دفتر سیاسی حزب امین را که بسیاری در مسکو دیگر باو اعتماد ندارند، دعوت کنند. در ضمن از پیام خاص او به لیونید بریژنیف که از طریق مستشار ارشد نظامی در جمهوری دموکراتیک افغانستان فرستاده بود، اطلاع دادم. مگر وزیر به سخنان من گوش نداد." (28) له هغه وروسته جنرال پاولوفسکي د افغانستان په اړه خبرو ته نه غوښتل کېده او تنزیل هم ورته ورکړل شو. امین به ددغه جنرال او هئیت له نظر نه ډاډه و، چې شوروي اتحاد به په افغانستان باندې نظامي تېری و نه کړي، خو شوروي اتحاد له ددغه هیئت له راتګ نه دمخه د جولای په میاشت کې زیات او کم یو کنډک سرتېري په بګرام کې پر ځای کړي وو. په عین حال کې د سفرنچوک د ماموریت په وخت کې د جولای میاشتې په نیمايي کې په کابل کې شپې لیکونه یواځې د امین پر ضد خپر بدل، چې په هغو کې د وزیري او نورو په وینا شوروي چارواکیو هم لاس درلود. په دغو لیکونو کې میر اکبر خیبر رښتینی انقلابي او امین د سي.ای.ای "ایجنټ او د بدماشو فاشستي ډلې" مشر ښودل شوی و، چې غواړي شوروي اتحاد او سوشلزم بې اعتبار کړي (29).

دغه تور، چې امین د سي.ای. ای ایجنټ دی، پوره خور و، که څه هم هغه بې بنسټه و، خو شورویانو او پرچمیانو اول په پټه او له یرغل

نه وروسته برالاله ګاوه. د سفرنچوک ماموریت، چې کارمل او نور په خلقي حکومت کې ننسباسي، نتیجه ورنکړه. په دغه حال کې امین کوښښ کاوه، چې په ګوند او حکومت کې خپل دریځ نور هم پیاوړی کړي. د جولای په 27مه په حکومت کې تغییر هم راوستل شو. امین د دفاع وزیر هم شو او د دفاع وزیر وطنجار د کورنیو چارو وزیر او د کورنیو چارو وزیر مزدوریار د سرحداتو وزیر شو. امین دمخه د ګوند په مرکزي کمېټه کې یو شمېر افسران، چې پلویان یې وو، هم د غړیو په توګه داخل کړي وو. په دې ډول واقعي واک له امین سره و، که څه هم د ګوند عمومي منشي، د انقلابي شورا سروال، د ټول پوځ ستر قوماندان او د دفاع شورا سروال تره کی و. د همدغه واقعیت له مخې به و، چې د سفرنچوک د ماموریت په نابریالي توب سره د شوروي سفارت یوه غړي وویل، چې په دغه وخت کې د خلقي مشرۍ لپاره عوض نه شته[30]. سره له دې هم وضع کړکېچنه وه، امین که څه هم د نظام پیاوړی کس و، لوی پاخونونه ځپل شوي وو او په پېښور کې د افغان اسلامي جمعیت او اسلامي ګوند د نورو هېوادونو له ملاتړ نه بهره من نه وو، په ولس کې نارضایت او په ګوند او حکومت کې تاوتریخوالی زیات و. د امین هغه څلور مخالفین د تره کي ترشا ولاړ وو او تره کی له امین نه په ژور ډول ناراضه و. ټول په دې لټه کې وو، چې امین پخپله د دوی له خوا یا د شورویانو په مرسته له واک نه وغورځول شي یا حتی له مېنځه یووړل شي.

دغه وخت په هاوانا کې د ناپېیلو هېوادونو د سرانو د کنفرانس وخت نږدې شوی و، چې افغان پلاوی باید یا د تره کي یا د امین په سروالۍ پکې ګډون وکړي، خو دوی د هاوانا ترسفر پورې "یو د بل له وېرې څخه... ته نه شو تللی. تره کي هڅه کوله، چې امین هاوانا ته ولېږي، خو امین له دې څخه وېرېده چې دده په غیاب کې به له خپلې دندې څخه لیرې کړای شي."[31] په همدغه حال کې و، چې امین د پولي تخنیک په تالار کې

ناڅاپه څرګنده کړه، چې د افغانستان ستر لار ښود
انقلابي شورا مشر تره کی صاحب د کیوبا په
هاوانا کې د ناپېیلو هېوادو نو په کنفرانس کې
د افغانستان د هیئت مشري کوي. تره کی بې چاره
ته بله لاره نه وه پاتې، مګر دا چې د سپتمبر
په لومړی ورځ هاوانا ته د مسکو له لارې حرکت
وکړي، که څه هم د هغه پلویانو په کابل کې او
شوروي لویانو په مسکو کې ترېنه وغوښتل، چې
دغه سفر ونه کړي. له تره کي سره په دغه سفر
کې د باندنیو چارو وزیر شاه ولي، د طلاعاتو او
کولتور وزیر خیال محمد کتوازی، د باندنیو
چارو وزارت مرستیال شاه محمد دوست او سید
محمد داود تړون ملګري وو. وروستي د تره کي
سریاور و، د اګسا مرستیال عزیز اکبري هم ددغه
پلاوي غړی و.

## تره کی په هاوانا او مسکو کې

په هاوانا کې د تره کي د یاد وړ کار د
پاکستان له مشر جنرال ضیاء الحق سره د
افغانستان او پاکستان د کشالو په اړه خبرې
اترې کول او په خبرو کې د دواړو له خوا د روغ
نیتی ښودل وو، چې په بل څپرکي کې به یې بیان
وشي. دلته به په مسکو کې له بریژنیف سره د
هغه د خبرو او موافقې په اړه بحث وشي. دا
دویم ځل و، چې تره کي د شوروي اتحاد له لوړ
واکمن سره په یوازې ځان ویني او د خپل هېواد
د اساسي موضوع ګانو په اړه ورسره غږېږي او د
هغه هدایت ته غوږ ږدي. د دوی د خبرو اجندا
هغه وه، چې د کابل ک.ج.ب والو دمخه ټاکلې وه.
په دې ډول چې هغو د تره کي د سفر په
شروع (سپتمبر1) سره مسکو ته یو اوږد یادښت
استولی او په هغه کې یې د افغانستان په اړه
تجویز وړاندې کړی و، لکه افغانستان چې د دوی
تر لاس لاندې هېواد وي.
په یادښت کې ویل شوي و، چې حکومت په خلکو

کې واک له لاسه ورکوي او افغانان "په زياتېدونکي ډول د شوروي پر ضد کېږي." په هغه کې دا هم ويل شوي، چې "د شوروي مشاورو په هره سطح کې تره کی او امين ته مشورې ورکړي" چې د خپل حکومت بنسټ پراخ کړي، خو "هغه نږدې ټولې له نظر نه غورځول شوې." دوی د هغه په عوض "...د داخلي مسئلو د حل لپاره په پوځي زور ډېره کوله او غېر حق يې عامه جزايي کارونو ته ادامه ورکوله." په يادښت کې "امين ددغه سياست لوی تنظيم کوونکی" ښودل شوی. په پای کې دغو ک.ج.ب والو مسکو ته وړانديزونه وکړل، چې مهم يې داوو چې "بايد يوه لار ومونډل شي، چې امين د هېواد د مشرۍ له مقام نه ګوښه کړل شي، په دې چې هغه د داخلي سياست د وړاندې بيولو مقصر دی." نو هغه "بايد د داخلي سياستونو د ناکاميو او قانون پرخلاف کارونو مسؤول وګڼل شي." بله دا چې "تره کی بايد وهڅول شي، چې دا اساسي ده چې يو دموکراتيک ائتلافي حکومت جوړ شي، چې په هغه کې د لارښود رول په حتمي ډول د پرچميانو په ګډون د افغانستان خلق دموکراتيک ګوند سره وي." په يادښت کې دا هم ويل شوي، چې د وطنپالو روحانيانو، قومونو، ملي لږه کيو او روښان اندو استازيو ته هم پکې برخه ورکړل شي (32).

دا په واقع کې د سفرنچوک هغه تجويز و، چې اصل مقصد يې په حکومت کې د شړل شويو پرچميانو شريکول و او لومړی وزير امين يې مخالف و، خو اوس هغه د شوروي حکومت لوړې سطح ته ورسول شو، چې په خپله بريژنيف او ملګري يې په دې اړه په مسکو کې د افغانستان له اعلی واکمن نور محمد تره کي سره ووينې او له هغه سره په دې اړه کوم ډول موافقې ته ورسېږي. د همدغه مقصد لپاره تره کي ته په هاوانا کې وويل شول، چې افغانستان ته د بېرته تګ په لار کې په مسکو کې

تم شي او له بريژنيف سره وګوري. تره کي بيا له خپل ور سره هيئت سره وطن ته د ستنېدلو په لار کې دوه ورځې (سپتمبر 9_10) په مسکو کې تم شو، خو هلته يې په يواځې ځان د سپتمبر په لسمه له بريژنيف سره وليدل. په دغې ليدنې کې بل افغان له تره کي سره نه و. څنګه چې د کابل ک.ج.ب والو يادښت د افغانستان په اړه د عالي کمسيسيون غړو اندروپوف استنيوف او ګروميکو له خوا منل شوي و (دغه کميسيون د هرات له پاڅون نه وروسته جوړ شوی و، چې د افغانستان د پېښو څارنه او دهغو په اړه فيصله به کوي). بريژنيف دهغه له مخې تره کی په دې ډول مخاطب کړ، چې "...د نورو په لاسونو کې د قدرت له حد نه ډېر تمرکز حتی که ستا ډېر نږدې ملګري هم وي، د انقلاب لپاره خطرناک کېدی شي. دا به له مصلحت نه ډېر ليرې وي، چې يو څوک د هېواد په مشرتابه، په وسله والو ځواکو نو او په دولتي امنيتي څانګو کې د ممتاز قدرت خاوند وي.) 32الف(" ميتروخين وايي، چې "دا د تره کي لپاره نېغ او څرګند دستور و، چې له امين نه ځان خلاص کړي." دی دا هم وايي، چې تره کي ته د يوې سياسي لوبې د اجرا لپاره نسخه ورکړل شوه او رضايت و ښودل شو، چې په واقعي ژوندانه کې يې عملي کړي. دوی پرېکړه وکړه، چې امين استعمال کړي او د ټولو هغو تېروتنو، ناکاميو او جرمو نو لپاره يې چې په سياسي او نظامي لحاظ شوي، ملامت وګڼي.) 32(" اقبال وزيري لا وايي، چې "د شوروي مشرانو په کلک ټينګار نور محمد تره کی دې ته اړ ايستل شو، چې امين په فزيکي توګه له مېنځه وباسي." دی د يوې "موثقې سرچينې" په حواله دا هم وايي، چې د شخص اندروپوف په نوښت نور محمد تره کی او ببرک کارمل هم سره دوه په دوه وليدل، په داسې حال کې تره کي له ګروميکو سره هم دوه په دوه ليدلي و) 34(. دلته دغه ټکي په خاص ډول ور دي.

یو دا چې له شوروي لو یانو سره د تره کي له یواځې لیدلو نه معلومېږي، چې د دوی ترمېنځ خبرې دغسې خاصې وې چې حتی د هغه د هیئت له ملګرو په تېره له شاه ولي نه هم پټې وې، په داسې حال کې، چې د باندنیو چارو وزیر په توګه ده باید په خبرو کې ګډون کړی وای. که خبرې خاصې نه وای، تره کي به وروسته خپل ملګري پرې خبر کړي وای، خو هغه خبر نه کړل. له دېنه معلومېږي، چې لږ تر لږه تر هغه ځایه چې په دغو خبرو پورې اړه لري، تره کي ته شوروي لو یان تر خپلو لوړ پوړو چارواکیو نه هم نزدې او د اعتماد وړ وو. لا مهمه دا ده، چې تره کی ولې دې ته حاضر شو، چې د باندنیو په دستور خپل صدراعظم له وظیفې نه ګوښه کړي، یا په له مېنځه وړلو سره یې رضایت ښکاره کړي. یا حتی د غه کار په غاړه واخلي. هر څه چې و، ده دغسې کار په غاړه واخیسته، چې کولی یې نه شو او که یې کړی هم وای، پایلې به یې نه یواځې خلقي حکومت بلکې وطن ته هم ډېرې ګرانې وای. د تره کي په دغې موافقې ښوولو کې شاید سروري هم اغېزه لرلې وي. د راجا انور په وینا سروري د سپتمبر په 7مه تره کي ته په تلیفون کې په هاوانا کې ویلي و، چې "امین پلان لري، چې موږ یا بندي کړي، یا مو ټول ووژني ددې لپاره چې ستا تر ستنېدلو دمخه یې حکومت په لاس کې نیولی وي. [35]"

د خلقي حکومت ترکیب اړول او پرچمیانو ته پکې ځای ورکول [36]، له امین پرته د بل چا په وسه کې نه و او امین دغه کار نه کاوه. دا هم د تره کي په وس کې نه وه، چې امین له صدراعظمی نه ګوښه کړي او د باندې یې د سفیر په توګه واستوي. په دې اړه یې دغسې دلیل هم نه لاره، چې خپل لوړ پوړي خلقیان پرې قانع کړي. له بلې خوا شوروي لو یان په دې فکر ټینګ وو، چې د دوی د اعتماد وړ پلویان پرچمیان په

حکومت کې برخه ولري، نو امین باید د واک له ډګر نه وتلی یا اېستل شوی وي او د دغه کار باید په کوم ډول دسیسې سره وشي او دسیسه ګر په ظاهر او صحنه کې خلقیان په تېره د سروري ډله وي. په دغه حال کې دا عجبه نه وه، چې د کابل ښار زر د دسیسو او خلقي ګوندیانو د وژنې ډګر شو.

راجا انور وایي، چې سروري د امین د له منځه وړلو پلان حتی هاوانا ته د تره کي له تللو نه دمخه ایستلی و. پلان دا و، چې امین به هغه وخت په ماشین ګڼو سره له منځه وړل کېږي، چې د تره کي د هرکلي لپاره هوايي ډګر ته روان وي[37]. سروري ددغه پلان لپاره د اکسا مرستیال عزیز اکبري، چې د هغه خوریه و، مامور کړ. هغه ته وظیفه ورکړل شوه، چې د پلان د عملي کولو لپاره لس کسه وروزي، بې له دې چې هغوی د پلان په مقصد پوه شوي وي[38]، خو اکبري دبل ایجنټ و. هم یې خپل د شوروي مشاور او هم امین په پلان خبر کړ او بیا د وزیر په وینا "... شوروي مشاورینو په ګډه د لوی درستیز ]محمد یعقوب[ سره د هغه په دفتر کې ددغه پلان د ناکامۍ لپاره بل پلان جوړ کړ، چې د هغه په نتیجه کې امین هوايي ډګر ته روغ رمټ ورسېد."[39] د حېرانۍ ځای دی، چې شوروي مشاورانو ولې د خپل مرکز د فیصلې پرخلاف د امین له منځه وړلو پلان په شنډولو کې برخه واخیسته. ممکن دغه مشاوران د مرکز له فیصلې نه خبر نه و. په مرکز یانې مسکو کې "اندروپوف... بریژنیف او تره کي په دې قانع ]کړي وو[ چې... د ک.ج.ب د معلوماتو له مخې کابل ته د تره کي د رسېدو له مخه به امین لیرې شوی وي." په همدغې ډاډینې سره و، چې د هغه مسلمان کنډک له استولو نه کابل ته ډډه شوی و، چې وظیفه یې د تره کي ساتنه وه[40].

په دغه حال کې د "ستر لاربښود" او "وفادار شاګرد" ترمېنځ نا باوري تر اخره حده پورې

ورسېدله او امین خپل ژوند په خطر کې لیده. په عین حال کې په کابل کې پرچمیان بیا فعال شول، شپې لیکونه به یې خپرول او له "اصولي خلقیانو" سره له وحدت نه غبرېدل[41]. د سپتمبر په یوولسمه کابل ته د تره کي راتګ په ظاهر کې د دولت د رییس په توګه د معمول په شان و، د پښتونستان له واټ نه تر هوايي ډګر پورې ګوندیان او نور خلک قطار ولاړ وو. د امین "د سوارۍ موټر مخ په هوايي ډګر لکه د مرمۍ غوندې په سرعت تېر شو." امین دمخه د هوايي ډګر کنټرول د خپلو اعتمادي کسانو په لاس ورکړی و او په خپله یې تر درېشۍ لاندې زغرور کالی په تن و. د تره کي الوتکه د ښکته کېدلو له ټاکلي وخت نه یوه ساعت نور هم په هوا کې ګرځېده او همدا چې امین ډګر ته ورسېد، هغې ته د ښکته کېدلو اجازه وشوه. امین لومړی کس و، چې د تره کي مخې ته ودرېد، خو هغه سمدلاسه وپوښته چې زما "نور وزیران" چېرې دي؟ امین ورته ډاډ ورکړ، چې "ټول شته دي او وبه یې وینې."[42]

## وطن ته د تره کي بېرته راتګ او د هغه پای

په داسې حال کې، چې امین د ارګ په دلکشاه او تره کی د ارګ په ګلخانې ماڼۍ کې و، په کابل کې د سپتمبر له یولس نه تر 16 پورې ډېرې زیږې او مهمې پېښې وشوې، چې په هغو سره تره کی اول پوره بې واکه شو او یو څو نور خلقیان ووژل شول. تره کي بیا د اکتوبر په نهمه له مېنځه یووړل شو او امین د ګوند او دولت لوړ سروال شو. د غه پېښې په اثرونو کې په ډول ډول بیان شوي، دلته کوښښ کېږي چې هغه د وزیري او میتروخین د لیکنو له مخې بیان شي، چې د لومړ یو لیکنو په شان مهمې دي، خو مشکل دا دی چې دوی دوه مغرضو حکومتونو ته منسوب دي او لیکنې یې په اساسي ټکو کې سره نه جوړېږي. په

د غه حال کې ځېړونکي په خاص ډول مجبور دی، چې د تحقیق پولیس شي، چې له هغو نه واقعیت یا واقعیتونه واېستلی شي. غیر له هغه هم د لنډ وخت پېښو دقیق بیان په اصل کې یو ګران کار دی، خو څنګه چې د ارګ په تاریخ کې دا لومړی ځل دی، چې دغسې زیږې پېښې شوي، ریښتینی بیان یې د افغانانو لپاره خاص اهمیت لري.
تره کی کابل ته په رسېدلو سره په هماغه ورځ (11 سپتمبر) د انقلابي شورا غونډه جوړه کړه او په هاوانا او مسکو کې یې د خپلو خبرو راپورونه ورته وړاندې کړ، خو د میتروخین په وینا "... د خبرو اصلي موضوع یې پټه کړه."(43)
په هماغه ورځ تره کي له پوزانوف سره هم ولیدل. د بلې ورځې (12 سپتمبر) په سهار تره کي سروري خپل دربار ته وغوښت او امین یې هم د تلیفون له لارې وغوښت. د ورو ستیو د خبرو جریان معلوم نه دی، خو امین ورنه غوښتي و چې د سروري او ملګري یې له دندو نه ګوښه کړي. هغه د تره کي د سفر په وخت کې د هېواد را پور هم وړاندې کړی و او دا یې هم ورته ویلي و، چې په دغه وخت کې دده د وژلو قصد شوی و او محرکان یې سروري او د هغه ملګري وو. تره کي کوښښ وکړ، چې امین د هغوی "بښنه" ومني او موضوع ختمه وګڼي، خو هغه رضایت ښکاره نه کړ. "داسې ښکاري، چې تره کي خپل دریځ دمخه ټاکلی و او د ګوندي مشرتابه په اړه یې راپور واورېد، چې پکې ویل شوي و "... په ګوند کې دد غې دننۍ جګړې نوښتګر له امین پرته بل څوک نه دی."(44)
د بلې ورځې (13 سپتمبر) په سهار سروري او درې نور ملګري یې "... د تره کي صاحب دفتر ته د کلاشنکوفونو سره راځي."(45) امین چې د هغو له وسله وال ورتګ نه د تړون له لارې خبرېږي، د تره کي دفتر ته له ورتګ نه ډډه کوي. میتروخین د تره کي له خوا امین ته په ټلفون کې له دغسې وعدې ورکولو نه غږېږي، چې د باور وړ نه ښکاري

او هغه دا چې دی تیار دی "دده ټول رقیبان موقوف کړي" او پر هغه سربېره "... اماده دی چې امین د ګوند د مرکزي کمېټې عمومي منشي شي."[46] میتروخین په همدغه مهال کې دا هم وايي، چې امین د جمهوري ګارډ قوماندان جانداد او د پوځ لوی درستیز محمد یعقوب ته قومانده ورکړه، چې د تره کي د امرونو له منلو نه ډډه وکړي. په داسې حال کې چې وراره یې اسدالله امین د کابل ښار د کومېټې منشي، د کومېټې د پیاوړتیا لپاره ډېر کارونه وکړل. میتروخین دا هم وايي، چې دواړو خواوو کوښښ کاوه، چې په دغې مقابلې کې د شوروي اتحاد ملاتړ ترلاسه کړی.
په دغه وخت کې اندروپوف ته په مسکو کې ] له کابل نه په یوه تلګرام کې وویل شول، چې "تره کي کوښښ وکړ امین وهڅوي، چې هستوګنځي ته یې ورشي، خو امین له ورتګ نه ډډه وکړه او څرګنده یې کړه چې د هغه ټولې غوښتنې باید ومنلی شي او که نه په فعالو کارونو به لاس پورې کړي. تره کي دا یوه دسیسه وګڼله او خبرې پرې شوې."[47] بیا د همدغې ورځې (13 سپتمبر) په ماښام سروري، ګلابزوی، وطنجار او مزدوریار د شوروي سفارت ته لاړل او هلته "د تره کي له خوا سروري وغوښتل چې یوه ډله شوروي ملګري د امین په نیولو کې له دوی سره مرسته وکړي."[48] د وزیر په وینا د همدغې ورځې (13 سپتمبر) په نیمه شپه کې دوه پېښې وشوې. له یوې خوا له شوروي سفارت نه "... د اسلم وطنجار له خوا د وسله وال پوځ قطعاتو ته قومانده ورکول کېږي، چې د تره کي صاحب ژوند په خطر کې دی او د امین پر ضد یې حرکت ته را بولي، خو دده په قومانده څوک د ځایه ونه ښورېده." له بلې خوا د صاحب جان صحرايي په هاند د تره کي په هستوګنځي کې تره کي او امین سره پخلا کېږي.
تره کی هغو څلورو تنو ته په شوریو سفارت کې

تيلفون کوي او ورته وايي، چې "... بچو خپلو کورونو ته راشئ، امين دا اوس زما په کور کې ناست دی. موږ سره پخلا يو او بيا تيلفون امين ته ورکوي او هغه هم د وطنجار سره خبرې کوي او دا پخلاينه تاييدوي.[49]" هغوی هم دغه پخلاينه ومنله او د شپې په دولسو بجو خپلو کورونو ته په مايکرورويانو کې ستانه شول. ميتروخين هم د امين او تره کي پخلاينه يادوي، خو دده روايت بل ډول دی او ناسم معلومېږي. په دې ډول، چې تړون د شپې په نهو بجو او شلو دقيقو پورانوف ته خبر ورکوي، چې امين د تره کي هستوګنځي ته راغلی او پوزانوف بيا د جنرال ايوانوف جنرال پاولوفکسي او ګوريلوف په ملګرتيا د تره کي کور ته لاړل او دغه پخلاينه يې شونکې کړه[50]. په داسې حال کې چې وزيري په غوڅه توګه وايي، چې همدا چې "پوزانوف او جنرال ايوانوف چې خبر شول چې تره کی او امين د صحرايي په کوښښ سره پخلا شوي دي، په دې هڅه کې شول چې دا پخلاينه په شخړه بدله کړي." مهمه دا ده، چې دوی د نورو سرچينو په حواله په دغه شپه ارګ ته په ګډه نه وو تللي. لا مهمه دا ده، چې د وزير په وينا "د هغوی په لمسون د نواب وژنه او د درو تنو تېښته تنظيم شوه.[51]" د بلې ورځې (14 سپتمبر) په غرمه کې د غه خبر خپور شو، چې د اکسا مرستيال نواب چې د امين پلوی و او هغه د اکسا سروالۍ ته په نښه کړی و "...د سروري د ياور له خوا ټپي شوی دی... پوځي روغتون ته وړل شوی و. د نواب پوښتنې ته د هغه دوه وطنداران انجنير خير محمد او ډاکټر سورګل روغتون ته ورغلي وو. د پوځي روغتون قومندان غني اندړ په ډېره بې رحمۍ سره نواب خير محمد او سور ګل وژلي وو، چې وروسته يې په خپله هم ځان وژلی و.[52]" غني اندړ، چې د تره کي پلوی و، په دې فکر و چې امين له مېنځه وړل شوی يا له مېنځه وړل کېږي. د يادونې وړ ده، چې دغه

وژنې د ک.ج.ب په لیکنو کې نه دي یادې شوي.

د کټوازي په روایت له امین سره پخلاینه کې تره کي منلې وه، چې سروري او ملګري به یې چېرته سفیران کوي، خو دوی چې په سبا (14 سپتمبر) له خپل سفیر کېدلو نه خبر شول، بیا وتښتېدل. کټوازی، چې په مکروریانو کې له هغوی سره نژدې اوسېده، د هغوی تېښته په دې ډول بیانوي: "د کړکۍ له ښیښې څخه مې ورته کتل، چې دوی دا وار له خپلو پنډو او بکسونو سره یو ځای له خپلو کورونو څخه راووتل او په یوه موټر کې کېناستل. له خپلو اولادونو او مېرمنو سره یې د لاسونو په خوځولو سره مخه ښه کوله او داسې ښکارېدل، چې ګواکې بېرته به په بریالۍ توګه راوګرځي او موټر یې ورو ورو وخوځېد او له سترګو څخه الونیا شول." له دوی سره دا ځل شېرجان مزدوریار نه و.

سروري او ملګري یې دا ځل د ک.ج.ب یوه چارواکي کور ته لاړل، چې لومړی نوم یې ایلین (Ilyin) و. هغه بوګدانوف پرې خبر کړل، اول سروري تره کي ته په ټلیفون کې وویل، چې امین یې پر ضد توطیه کوي او دوی حاضر دي د ساتنې لپاره وسله وال راشي، خو تره کي دغه وړاندیز ونه مانه. بیا ګلابزوی ایلین ته کړه، چې "امین زموږ د بندي کولو امر کړی، نو موږ دوه لارې لرلې: یا تر مرګه پورې مبارزه یا دلته پناه راوړل. موږ وروستۍ لار غوره کړه، ځکه که موږ ووژل شو، موږ به ګټور نه شو، خو موږ سره له دې هم خپلو شوروي ملګرو ته خدمت کولی شو."[54] یوه ورځ دمخه (د سپتمبر په 13مه) د شوروي پولټبورو د پریکړې له مخې پوزانوف ته ویل شوي و، چې "دغه حقیقت په نظر کې ولره، چې موږ په خپله په غاړه اخیستلی نه شو، چې امین د خپل کنډک په زور ونیسو، ځکه چې دغه کار به د افغانستان په دننیو چارو کې نېغه لاسوهنه وي او د اوږدې مودې پایلې به

ولري. په واقع کې دا له عملي نظره یو ناشونکی کار دی. "(55) شوروي لویانو ته دا د افغانستان په دننیو چارو کې نښته لا سوهنه نه وه، چې د حکومت وزیرانو ته یې د صدراعظم پر ضد په سفارت او د ک.ج.ب چارواکي په کور کې پناه ورکړې وه او په دې ډول یې هغوی هڅولي او ور سره مرسته کړې وه. د غو شورویانو غو ښتل، چې دغه کار په خپله د افغانانو له خوا وشي، البته د دوی په مرسته. دلته د ک.ج.ب د پخواني چارواکي الیکزاندر موروزوف دغه ویـنا په ځای ښکاري، چې ویلي و "مسکو په تره کي ټینګار وکړ، چې امین په خپل ځای کېنوي، د سفیر پوزانوف د اندروپوف استازي جنرال ایوانوف او جنرال پاولوفسکي په مرسته، چې د استینوف په مشری د ملي دفاع وزارت استازی و. "(56) وزیري له دوی سره د افغانستان د دفاع وزارت سرمشاور ګاریوف هم ملګری نیسي.

په هر حال، "دوی سمدلاسه دا اوازه خپره کړه، چې د شوروي سفیر او ور سره کسانو یې د بریژنیف پیغام راوړی او غواړي د افغان مشرانو ترمېنځ اړیکې نورمال کړي. "(57) دوی دغه پیغام مشخص نه کړو. وزیري وایي، چې "پلان داسې و، چې امین به د بریژنیف د پیغام په نامه د تره کي دفتر ته وغواړي، د ګلخانې د ماڼۍ په بام باندې به د روسي کوماندو سرتېري ځای پرځای کړي، چې د جنرال ایوانوف د شخصي ساتونکیو تر نامه لاندې په ځانګړي موټر کې دده سره یوځای ګرځېدل. د تره کي ساتونکو )قاسم او ببرک( ته دنده ورکړل شوې وه، چې امین د تره کي دفتر ته د ننوتلو په مهال کې له مېنځه یوسي. "(58) ایوانوف دومره وایي، چې "... ټینګې اوازې وې، چې امر ورکړل شوی چې همدا چې امین د خلکو په کور کې ظاهر شو، ودې وژل شي، خو تره کي وویل چې دا رښتیا نه ده. "(59) ددې مانا دا ده، چې د امین په وژلو کې شورویان لاس نه لري او دا د نورو یانې

د افغانانو کار دی، خو دوی دواړه یاني په کابل کې د ک.ج.ب سروال جنرال ایوانوف او د افغانستان د دولت سروال تره کی اقرار کوي، چې په دغسې اوازې خبر دي او دوی د هغې د څنګه والي په اړه هېڅ تحقیق و نه کړ او دا په دغسې حال کې، چې امین د دوی په لور روان و. مهمه لا دا ده، چې د مید تروخین لیکنه چې یواځې د شوروي چارواکیو او په خاص ډول د ک.ج.ب چارواکیو د راپورونو پر بنسټ تهیه شوې ده، په دې اړه چوپه ده چې امین وروسته له هغه هلته تلل ومنل، چې پوزانوف په ټلیفون کې ورته داډ ورکړ، چې ژوند به یې خوندي وي، خو د ک.ج.ب پخواني چارواکي الیکزاندر موروزوف لیکي، چې وروسته له هغه چې پوزانوف او درې تنه جنرالان د تره کي دفتر ته لاړل "... تره کي له امین نه وغوښتل، چې دی هم په غونډه کې ګډون وکړي، خو امین په دې چې ممکن هلته ژوند یې په خطر شي، له ورتګ نه ډډه وکړه، خو د تره کي په ټینګار سره یې موافقه وکړه. په دې شرط، چې پوزانوف یې د ژوند د خوندي توب ضمانت وکړي. وروستي په ټلیفون کې دغه ضمانت ورکړ."(61) نور نو د اقبال وزیري په ژبه، چې په دغه وخت کې د دفاع په ماڼۍ کې و، خو دی دغه کیسه د محمود سوما له خولې کوي، چې په خپله امین ورته کړې وه.

"... نور محمد تره کي امین ته تلیفون کوي، چې پوزانوف له خپلو ملګرو سره یوځای دده دفتر ته ورغلی او د بریژنیف پېغام یې راوړی دی، خو امین د تره کي دفتر ته د ورتګ څخه ډډه کوي. په دې مهال کې پوزانوف د خپل ژباړونکي په ذریعه د امین سره تلیفوني خبرې کوي او امین ته وایي، چې نوموړی یې امنیت تضمینوي او که ځان مصؤن نه احساسوي، د خپلو ساتونکو سره دې راشي. امین د پوزانوف سره موافقه کوي او د ځان سره د ساتونکو په توګه حبیب الرحمن مصطفی او وزیر ځیرک بیایي... امین د ګلخانې ماڼۍ ته

ننوځي او د ترون له خوا د تره کي دفتر ته ] په دويم پوړ کې[ بدرګه کېږي. د امين مخې ته ترون او ورپسې وزير او په وزير پسې امين او د هغه شاته مصطفی او حبيب الرحمن روان دي او دويم پوړ ته په زينه ختيږي. د تره کي ياوران هغه وخت، چې دوی په زينه راخيږي، وربانديې ډزې کوي. ترون سمدلاسه وژل کيږي، وزير سخت ټپي کېږي او امين او نور ساتونکي يې تښتي. امين، چې وزير يې په لاسونو کې نيولی و، په بيړه سره خپل موټر ته ختيږي او په چټکتيا سره د دلکشا ماڼۍ ته په خپل موټر کې تښتي. د تې ښتې په مهال د ګلخانې د بام څخه په امين او ساتونکو باندې يې د شوروي د کوماندو د سرتېرو له خوا ډزې کيږي او امين دا صحنه په خپله ويني." (62)

امين له صحنې نه روغ و ځي او د دفاع وزارت ته ځي.

دا به قصدي وي، چې د ميتروخين په ليکنه کې دغه مهمه پېښه نه ده بيان شوې. دغومره پکې ويل شوي، چې "يو څو دقيقې وروسته د تره کي د دفتر له هغه بل وره نه د ماشين ګڼ اواز واورېدل شو. مل ګري ل.ن.ګوريلوف کړ کی ته لاړ او کتل يې چې حفيظ الله امين د انګړ د پوال ترڅنګه ځغستل." (63)

عجبه ده، چې ميتروخين د تره کي د يوه محافظ له قول نه وايي، چې دا سيد داود ترون و، چې اول يې په يوه محافظ ډزه وکړه او هغو بيا سمدلاسه دی وواژه. کوم شی، چې دلته په اساسي ډول مهم دی، هغه د تره کي په دفتر کې ددغې پېښې په وخت کې د پوزانوف او درې تنو شوروي جنرالانو شتون و، چې موظف شوي وو د امين په لاندې کولو کې له تره کي سره مرسته وکړي. له همدې امله به و، چې تره کي هغې پخلاينې ته اهميت ور نه کړ، چې څلورويشت ساعته دمخه يې د صاحبجان صحرايي په مېنځګړتوب له امين سره کړې وه. په دغې پخلاينې سره تره کي منلې وه، چې

سروري او ملګري به يې سفيران کوي، خو هغوی چې دد غې فيصلې له منلو نه سر وغړاوه او په خپل ښار کې يې شورويانو ته پناه يووړه، هغه هغوی ياغي ونه ګڼل او د هغه پرځای يې د خپل صدراعظم په له مېنځه وړلو کې له شورويانو سره لاس يو کړ. معلومه ده، چې تره کي د غې پخلاينې ته رښتين نه و، دی هغه پلان ته رښتين و چې په مسکو کې د امين د له مېنځه وړلو لپاره ايستل شوی و، که څه هم لکه چې دمخه ويل شوي امين د ثور کودتا په خپل نوښت او قومندې سرته رسولې وه او بيا يې خلقي نظام په اصل کې په خپل فعاليت سره په پښو درولی و. پر هغه سربېره تره کي له دغه درک نه عاجز و، چې که امين وژل شوی وای، بيا به دی واکمن سروال نه، بلکې هغسې بېواکه سروال وای لکه په ختيځې اروپا کې چې دولتي سروالان وو او وروسته کارمل شو. معلومه ده، چې تره کي، سروري، ګلابزوی او وطنجار ته خپلواکي مهمه نه وه، دوی ته مهمه دا وه چې په قدرت کې وي، که څه هم د يوه بېګانه هېواد تر ولکې لاندې وي. دا خو لا پرځای پر پرېږده، چې دوی ټولو يوه غېر اخلاقي او وحشي کار ته ملا تړلې وه.
دد غې پېښې په اړه غبرګونونه به په بل څپرکي کې وکتل شي، دلته به د هغې په وروسته بهير باندې خبرې وشي. له پېښې نه وروسته، چې يوه بې ساري کړکېچنه فضا رامېنځ ته شوه، طبيعي وه چې تره کي او امين به هر يو د خپل دريځ د پياوړي کولو او د بل د ناتوان کولو او لاندې کولو لپاره زيار باسي، خو لومړی تره کي له امين سره، په داسې حال کې چې اقبال وزيري ورسره په دفتر کې وو په تليفون کې وغږېد او وزيري له امين نه واورېدل، چې "د نرترپ وي يا خرپ." هغه دا هم ورته وويل، چې "زه خو ستا دفتر ته د درتګ په مهال په ډزو استقبال شوم، خو تاسې د سفير او د هغه له ملګرو سره يو ځای

راشئ، زه به دې په ګلونو استقبال کړم." په عين حال کې پوزانوف هم له امين نه په تليفون کې وغوښتل، چې غواړي ورسره وګوري. پوزانوف بيا له خپلو ملګرو سره ورسره وليدل، په پېښې يې خواشيني ښکاره کړه او وروسته له هغه چې يې سره وعده وکړه، چې د ماښام په اوه نيمو بجو يانې دوه نيم ساعته وروسته به بيا سره ګوري، د امين له دفتر نه ووتل. په عين حال کې تره کی "د ګارد قومندان جانداد ته امر کوي، چې د دلکشا ماڼۍ له خاورو سره برابره کړي، خو هغه... ورته وايي چې هلته امين او نور ملګري دي او نه شي کولی په خپلو ملګرو بريد وکړي." تره کی بيا د هوايي پوځ د قومندان مرستيال حاجي محمد ته تليفون کړی و، چې په بګرام کې دشوروي اتحاد پراشوت کندک دده مرستې ته ورداننګي. نوموړي ورته ويلي و، چې هغوی دا کار نه کوي.)63الف(" يواځې د خواجه رواش په هوايي ډګر کې د سياسي څانګې امر دوست محمد په هڅې سره يو جنګي ماشين راووت او په ارګ باندې يې ډزې وکړې، خو ماشين تسليم کړل شو او دوست محمد ونيول شو. په دې ډول د امين پر ضد د تره کي کوښښونه کوم ځای ته ونه رسېدل او پوزانوف او ملګرو يې هم ورته شا کړه او په نتيجه کې تره کی د واکمنۍ په تخت باندې د يوه بې واکه او لغړ واکمن په شان يواځې پاتې شو. ده ته به ښه وای، چې په خپله امين ته تللی وای او ترېنه يې د زړه ښښنه غوښتې وای، خو ده دغه کار ونه کړ.

د تره کي پر ضد د امين کوښښونه غوڅ او بريالي وو، د هغه د تليفون د مزي په پرې کېدلو سره په خپل دفتر کې ګوښه کړل شو. د امين په قومنده وسله والې قطعې ښار ته ننوتلې او د ښار امنيت يې په لاس کې ونيوه او په افغانستان راډيو کې سروري او ملګري يې له خپلو وظيفو نه ګوښه شوي اعلام شول. په دې ډول

د سپتمبر په پېنځلسمه امین په واقع کې په ګوند او حکومت کې د تره کي ځای ونیوه. اوس نو د ګوندي او حکومتي سرانو کار و، چې هغه ته د مشروعیت او "قانونیت" بڼه ورکړي.
د سپتمبر په پېنځلسم سهار امین د ګوند پولټبورو یا د ګوند تر ټولو لوړ سیاسي تنظیم د دلکشا په مانۍ کې راوغوښت او غړیو ته یې د ګلخانې او د روغتون د وژنو او اړوندو پېښو راپور وړاندې کړ. په دغه وخت کې د امین پلویان د ګوند په پولټبورو، مرکزي کمېټې او داسې هم په انقلابي شورا کې په اکثریت کې وو. په اجتماعي سازمانونو او په خاص ډول په پوځ کې هم وضع همدغسې وه. په بل عبارت، هم په حکومت او هم په ګوند کې امین تر ټولو پیاوړی وو. د دستګیر په وړاندیز، چې تره کی دې غونډې ته راوغوښتل شي، لنډ بحث وشو او امین هم ورسره سر وښوراوه، خو په عین حال کې یې دا هم وویل، چې د تره کي محافظانو اخطار ورکړی، چې که څوک ورنږدې شي، ډزې به پرې وکړي او د دغه کار مسؤلیت په غاړه اخیستلی نه شي. په پای کې د امین دغه نظر ومنل شو، چې د ګوند مرکزي کمېټه دې په دې اړه پرېکړه وکړي.
په بله ورځ (16 سپتمبر) په مرکزي کمېټه کې د امین په وړاندیز د "تره کي صاحب پر مستعفي کولو" بحث وشو. د زیري په وینا "تر بحث او سوال پر ته نور محمد تره کي مستعفي او حفیظ الله امین د ګوند عمومي منشي په څېر وټاکل شو." (64)
وزیري او پنجشیري د مرکزي کمېټې پرځای د مرکزي کمېټې پپلینوم نوم یادوي، چې د ګوندي او حکومتي لوړو څانګو د غړو ګډه غونډه ده.
په هر حال، انقلابي شورا هم د تره کي ګوښه کول ومنل او امین یې د هغه پرځای د خپل سروال په توګه غوره کړ. په دې ډول امین د ګوندیانو له خوا د ګوندي او دولتي سروالۍ مشروعیت ترلاسه کړ، خو هغه ته د تره کي شتون د اندېښنې

وړ و. دی تراوسه د ګوند او حکومت مشر و او په دواړو کې یې پلویان لرل او د ګوند سپین ږیری مؤسس هم و. پر هغه سربېره څو ورځې دمخه یې په مسکو کې د شوروي اتحاد امپراتور لیوینډ بریژنیف سره دوه په دوه لیدلي او د امین په لیرې کولو کې یې ورسره موافقه کړې وه او د همدغې موافقې له امله د امین بندي ګرځېدلی و.
سره له دې هم درې او نۍ وروسته د اکتوبر پر لسمه په یوې رسمي څرګندونې کې په لنډ او عادي ډول وویل شول، چې نور محمد تره کی د هغې ناروغتیا له امله چې ورپېښه شوې وه، مړ شو او په قول ابچکان کې په پلرنۍ هدیرې کې خښ شو. تره کی د څیګر، معدې او ساه کښلو نه شکایتونه لرل، خو یو یې هم د غومره جدي نه و، چې د هغه له امله مړ شي، هغه هم سمدلاسه. امین د بي. بي. سي استازي سره په مرکه کې دوه مره ویلي وو، چې هغه ناروغ دی او دی طبیب نه دی، چې ناروغي یې ور ته په دقیق ډول معلومه وي. دغه استازي له امین نه سختې او دقیقې پوښتنې کولې او هغه په ډېرې زیرکۍ سره ځوابونه ورکول. په پرچمي رجیم کې د روزي له خولې د تره کي د له مېنځه وړلو خبر په راډیو کې خپور شو. عظیمي او په تېره فرهنګ د تره کي وژنه اوږده بیان کړې، چې لنډیز یې دا دی چې تره کی د لوی درستیز محمد یعقوب او د ګارډ قوماندان جاندا د په څارنې سره عبدالودود د ګارډ د مخابراتو رییس او روزي زیرک د میزان په 16مه یا 17 مه ) اکتوبر اتمه یا نهمه ( د ارګ په باغچه کوټۍ کې وروسته له هغه، چې کورنۍ یې ورنه بېله کړې وه، په بالښت سره د لسو یا پېنځلسو دقیقو په بهیر کې دغسې سخت خپه کړی و، چې ساه یې وختله[65].
په یوه روایت تره کی هغه وخت له مېنځه یووړل شو، چې بریژینف د هغه د برخلیک په اړه علاقه ونه ښودله او د امین د پېغام په ځواب کې، چې له بندي تره کي سره څه وشي، ویلي و چې

"ددې اړتیا نه شته چې تره کي مسکو ته واستوي. دا ستاسې مسئله ده، په کوم ډول چې ته ښه پوهېږې، حل یې کړه." [66] دغه روایت د بریژنیف له هغه غبرګون سره سر نه خوري، چې هغه د تره کي په مرګ شودلی. د ګرومیکو په وینا، بریژنیف ددغه خبر په اورېدلو سره "بل څه شو" او ویې ویل، چې "هغه په ځپېړه په مخ وهل شوی دی او مجبور دی ځواب یې ورکړي." په دغه وخت کې دده ځواب له واک نه د امین لیرې کولو فکر و، نه نظامي یرغل[67]. لکه چې په بل څپرکي کې به ولیدل شي، بریژنیف د تره کي له مرګ سره د امین له حکومت سره اړیکې ساتل او پرمخ بیول.
د تره کي وژنه د امین غټه تېروتنه وه، له اخلاقي او انساني کتنو نه سربېره سیاسي مصلحت او د سلیم عقل حکم داو، چې تره کي په داسې حال کې چې هغه څلور فتنه ګر له صحنې نه وتلي او د عمومو په ذهن کې محکوم شوي او تره کي په ارګ کې بندي شوی او له بیرون سره یې اړیکې شلېدلي وو، پر ځان پښ او نه چندان فعال تره کي امین ته خطر کېدلی نه شو. البته له روحي نظره به امین ته ګرانه وه، چې تره کی وژغمي، خو دولتي لویان د ملي چارو په اجرا کې له مصلحت او سلیم عقل نه کار اخلي، یا باید کار واخلي، نه له بدل او انتقام نه.

## نور محمد تره کی

نور محمد تره کی په رسمي خپرونو کې په کال 1917 د جولایي په 14مه د مقر د ناوې په سور کلي کې پیدا شوی. د وژل کېدلو په وخت دوه شپېته کلن و او تر خپل عمر نه زوړ معلومېده. دغه نېټه شاید ده په خپله غوره کړې وي، ددې لپاره چې د خپلې زوکړې کال شوروي "انقلاب" او نېټه د پاریس باستیل ورځې ته منسوبه کړي او په دې ډول خپلو پلویانو ته ځان یو طبیعي انقلابۍ

وښيي. په هغه وخت کې د افغانستان په کليو کې هغه هم په يوې شپنې کورنۍ کې د زوکړې نېټې ليکل رواج نه لاره. پخوا نور محمد تره کي په خپل قلم د عبدالروف بېنوا کتاب (پښتانه ليکوال) کې د خپل زوړ کړې ځای ميمنه ښوولی او تره کي بيا په خپلې واکمنۍ کې ددغه اثر ټول ټوکونه له دولتي کتابتونونو نه ټول کړل او د مقر د ناوې په سور کلي کې يې په خپلې زوکړې باندې له حد نه زيات ټينګار وکړ. د اروا ښاد عبدالرشيد ساپي په روايت، تره کی چې لا ماشوم و له خپلې مور سره له روسي ترکمنستان نه ميمنې ته راوستل شو او هلته محمد زمان تره کي ورسره واده وکړ.

په هر حال، د تره کي سترګې شنې، اوږې يې پلنې، ونه يې ټيټه او پر ځان منډلی او پڼ و. هر څه چې و، تره کی په واقع کې يو ټينګ او زيږ پښتون و. د لومړي ښوونځي يواځې څو ټولګي يې لوستلي و او په خپل شخصي زيار سره يې ځان تر دې حده رسولی و، چې د کندهار موسی خان شرکت له خوا بمبۍ ته واستول شو او بيا بېرته په کابل کې د محمد زمان تره کي په مرسته د ماليې وزارت په مجله کې محرر وټاکل شو او وروسته د ملي بانک سروال عبدالمجيد زابلي په مرسته په دولتي انحصاراتو کې مقرر شو.

له دويم نړيوال جنګ وروسته د ويښ زلميانو په ګوند کې يو فعال غړی شو او د وخت له نوميااليو ليکوالو سره يې ملګرتوب پيل کړ او د ملي سياست په ډګر کې ننوت. د شاه محمود په صدراعظمۍ کې تره کي د بېنوا په سپارښتنه په باختر اژانس کې په کار وګومارل شو. وروسته په داسې حال کې، چې حکومت د ويښ زلميانو ځينې لويان بندي او نور يې تطميع کړل، تره کی يې په واشنګټن کې د مطبوعاتو اتاشه مقرر کړ، خو د محمد داود د صدراعظمۍ په شروع کې هغه په دې، چې انګرېزي يې ښه نه وه زده، بېرته

وغوښتل شو. تره کی اول د افغانستان د حکومت پرخلاف په امریکې کې مرکه وکړه، خو له خپلو خبرونه زر واوښت او د محمد اکبر پرواني او بېنوا په شفاعت وبښل شو او بېرته کابل ته راغی. له هغه وروسته تره کي د ثور ترکودتا پورې کومه رسمي دنده نه ده لرلې.
بیا نو تره کي د کمونستي اثرونو په لوستلو لذکر واچوه او د ایران د تودې ګوند اثرونه یې ډېر لوستل او لکه چې دمخه ویل شوي، په کال 1951 کې یې د ک.ج.ب ایجنټي منلې وه، خو د خپلې واکمنۍ په وخت کې یې شوروي لویانو یا ک.ج.ب چاروکیو ته سر ټیټ کړی نه دی او په مسکو کې یې په کال 1978 کې له بریژینف سره هم ټینګ چلند کړی دی. ک.ج.ب هم تر هغه وخته، چې له امین سره مخالف شوی نه و، له تره کي نه سر وټکاوه. په کال 1974 کې، چې د خلق او پرچم ډلګي سره سخت مخالف وو او تره کي او کارمل په یوه بل باندې سخت تورونه لګول، دواړو ته د ک.ج.ب هدایت دا و، چې د یوه بل پر ضد له تورونو لګولو او تخریب نه ډډه وکړي او که نه "ارتجاعي قوتونه" به له هغو نه په ګټې اوچتولو سره په افغانستان کې د "دموکراتیک غورځنګ" شنډ کړي[68].
تره کي لا دمخه په 1957 کې د "بنګ مساپري" په نامه یو ناول خپور کړی و. دد غه ناول مرکزي ټکی د مارکسستي فکر له مخې دا ښودل شوي و، چې په افغانستان کې بزګران او خواریکښان د فیوډالو، مذهبیانو او حکومتیانو له خوا زبېښل کېږي. دی په اصل کې یو جذمي او په کمونستي ایډیالوجۍ باندې ټینګ ولاړ یو ساده ټوکمار او غوریالی شخص و. په کال 1968 کې، چې زه له انګلستان نه وطن ته ستون شوم، د تره کي د یوې پوښتنې ځواب کې مې وویل، چې ما د یوه ځېرنیز تیسس په لیکلو سره د لندن پوهنتون ته د ماستر اف ایم.فل ( MPhil ) شهادتنامه ترلاسه

کړې. هغه سمدلاسه وویل، چې "هر هغه اثر چې د امپریالستي اثار و پر بنسټ لیکل شوی وي، موږ ته د منلو وړ نه دی." د حېرانۍ ځای دی، چې ددغسې ذهنیت لرلو سره سره تره کی په کال 1965 کې په دې بریالی شو، چې په افغان عنعنوي او دیني ټولنې کې تعلیم کړي ځوانان د افغانستان خلق ډموکراتیک ګوند په نامه په دغسې تنظیم کې سر ځان ټول کړي، چې په اصل کې کمونستي و. دا د هغه ډېر غټ بریالیتوب و، چې ډېر خلک یې حېران کړي وو. د تره کي بل غټ بری هغه و، چې د ثور کودتا نه وروسته هغه وخت چې عامه ذهنیت د هغه او د هغه د ملګرو پر ضد وتورېد، تره کي د افغانستان د هر قوم ډلو ډلو مشرانو ته په ارګ کې په ساده او عامه ژبه ویناوې کولې، چې "هغوی چې د نادر غداره کورنۍ له واک نه غورزولې، د دوی بچیان او وروڼه دي او دوی دغه کار په واقع کې د دوی د ښېګڼو لپاره کړی دی." تره کی بیا هېڅکله دغسې و نه ځلېد، که څه هم د خلقي کودتایي نظام اعلی واکمن و.

# اووم څپرکی

# د حفیظ الله امین سل او درې ورځې واکمني

امین د خپلې واکمنۍ په دوره کې که څه هم لنډه وه، ډېر کارونه وکړل. دغه وخت دی پنځوس کلن او په ځان تکړه و. لومړی او مهم کار یې په ګوند او حکومت کې د خپل مقام نور هم

ټینګول او د خلکو د روغ نیتي جلبولو په لور کوښښ کول و. ددې لپاره یې په وطن او دباندې له نورو حکومتونو سره تغییرونه راوستل او د حکومت لوری یې یو څه واړوه، خو حکومت د پخوا په شان یو ګوندي او په اصل کې زورواک و.

## نوی حکومت، نوی چلند

امین د تره کي د وخت کابینه، چې د وزیرانو شورا نومېدله، وساتله او د ګوښه کړل شویو وزیرانو او د اګسا د سروال پرځای یې خپل ټینګ پلویان پکې دننه کړل. فقیر محمد فقیر د کورنیو چارو وزیر، انجنیر محمد ظریف د مخابراتو وزیر او صاحبجان صحرایي د سرحداتو وزیر په توګه. خپل وراره او زوم اسدالله امین یې د اګسا پرځای د کام )د کارګرو د استخباراتي مؤسسې( سروال په توګه وټاکه. په کابینه کې اته تنه وزیران پښتانه، پېنځه تنه تاجک، یو ازبک )عبدالحکیم شرعي جوزجانی( د عدلیې وزیر او لوی څارنوال، یو هزاره )عبدالکریم میثاق د مالیې وزیر( او یو قزلباش )محمد اسماعیل دانش د کانو او صنایعو وزیر( وو. پوځي او پولیسي چارې زیاتره د پښتنو په لاس وې او ټینګ پلوي یې محمد یعقوب دپوځ لوی درستیز و. داسې هم امین د ګوند حاکمو څانګو یانې پولټبورو )سیاسي دفتر( او مرکزي کمېټې تشیاوې په خپلو پلویانو سره ډکې کړې او د پولټبورو شمېر یې د دوو تنو په اضافه کولو سره اتو تنو ته ورساوه او په مرکزي کمېټه کې یې څوارلس تنه پوره او علی البدل یا منتظر نوي غړي ځای کړل[1]، خو په ګوند کې د تره کي په وژل کېدلو او د سروري او نورو )له مزدور یار نه پرته چې بندي شوی و( په لادرک کېدلو سره کړکېچ پیدا شو، چې د ناارامۍ او د ګوند د کمزوري کېدلو سبب شو. په دننني او باندني سیاستونو کې په عمومي ډول دغسې حرکت شروع او بدلون راوستل

شو، چې د هغه دوره یې د تره کي له دورې نه په
څرګند ډول بېله کړه.
د نوي حکومت اصلي محور امین او دویم کس شاه ولي د صدراعظم مرستیال او د باندنیو چارو وزیر و. امین د حکومت د لوري په اړولو سره له غېر معمولي حال سره مخ شو، په دې چې دوی ټولو د حکومت په چلولو کې مخینه او تجربه نه لرله، په اداري چارو کې یې پخواني تجربه لرونکي ماموران هم ګوښه کړي وو او چارې یې په مشورې سره هم نه اجرا کولې، که څه هم په رسمي او ګوندي خپرونو کې په پرله پسې ډول ویل کېدل، چې حکومت او ګوند د ډله ییزې مشرۍ د اصل له مخې چارې ترسره کوي. په ګوندي او حکومتي مخکښانو کې د اعتماد کمی هم و. د زیري په ژبه "حفیظ الله امین... زیری، میثاق او پنجشیری خپل پخواني مخالفان بلل، چې د پلویانو له خوا... د کنجکیانو نوم پرې ایښودل شوی وو."[2]
"کنجکیان" په دې مانا، چې څه وخت چې په غونډو کې کومه موضوع تر بحث لاندې نیول کېدله، دوی به د کوټې په کنج کې سره پس پسکې کولې، نه دا چې په موضوع باندې ازاد بحث وکړي، یا کولی وشي. له بلې خوا کنجکیانو د امین پلویان "سره خلقیان" ګڼل، یانې هغوی چې په "انقلابي ډول" یا غوڅه توګه عمل کوي[3]. د تره کي پلویان خو د "اصولي خلقیانو" په نامه د حاکمې ګوندې ډلې پرضد شول، خو دوی نه کوم مخکښ لاره او نه پېژندل کېدل. دوی په ګوند کې دننه ورانی کاوه او د ریشخورو د فرقې پاڅون د دوی کار و، چې زر به یې بیان وشي. پردې سربېره په کابل کې د نوي حکومت پر ضد د ک.ج.ب چارواکیو ورانی کاوه، دوی ځینې ګوندیان هڅول، چې شوروي اتحاد ته لاړ شي، ځکه چې دلته یې د دوی په فکر، ژوند په خطر کې دی. صولت شاه او ایګور کاتکوف ددغه کار لپاره ګومارل شوي وو. صولت شاه چې د تاجکستان تاجک و، د پښتو متلونو په څېړنه کې

د ډاکټرۍ شهادتنامه ترلاسه کړې وه او کاتکوف د شوروي سفارت دویم سکرتر و. لومړني عبدالکریم میثاق ته ویلي و، چې څنګه چې دلته یې ژوند په خطر کې د، شوروي اتحاد به ور ته سیاسي پناه ورکړي. میثاق نه یوازې هغه ته د رد ځواب ور کړی و، امین یې هم پرې خبر کړی و. وزیري وایي، چې کاتکوف ده ته هم دغسې بلنه ور کړې وه. امین وزیري ته ویلي وو، چې کاتکوف داود پنجشیري ته د همدغه مقصد لپاره ویزه هم اخیستې وه. صولت شاه او کاتکوف بیا په 24 ساعتونو کې له افغانستان نه وایستل شول(4). خو دغه خبر په رسمي ډول خپور نه شو، یوازې دستګیر پنجشیري په همدغسې هڅونې سره مسکو ته لاړ او د امین د واکمنۍ په اخر کې وطن ته ستون شو او په هغې مېلمستیا کې یې ګډون وکړ، چې له ده نه پرته نور ټول مسموم شول او دی مشکوک وګڼل شو.

له دغو ستونځو سره سره امین همدا، چې د ګوند عمومي منشي او د انقلابي شورا سروال شو، په زغرده په کار لاس پورې کړ. د پخوا په شان یې د لومړي وزیر او د ملي دفاع چارې هم تر سره کولې، د امنیتي څانګو او چارو سروالان ټول د امین ټینګ پلویان وو. په دغه حال کې د دولت او حکومت سروال حفیظ الله امین، چې دننه او دباندې هر ډول سیاست پرمخ بیوه او هر ډول چلند کاوه، په خپل فکر او نوښت کاوه. امین د دوشنبې په ماښام (26 سنبله، 1358_17 سپتمبر، 1979) په تلویزیوني وینا کې وویل، چې کوم هغه کسان چې بې موجبه بندي شوي دي، آزاد به شي او له دې وروسته به هېڅ څوک له لاسوند نه پرته بندي نه شي. نور به فردي حکومت نه وي او حکومت به خلکو ته مسؤلیت ولري او د قانون له مخې به چلېږي. ده دا هم وویل، چې د اساسي قانون د جوړولو لپاره به یو خاص کمیسیون وټاکل شي او په وطن کې به "قانونیت، مصؤنیت

او عدالت" وي[5].

د بندیانو موضوع سمدلاسه مهمه وه، په دې اړه حکومت دوه کارونه وکړل: یو یې د نومبر په 16مه د له مینځه وړل شویو بندیانو لستونه د کورنیو چارو وزارت په دېوالونو وځړول، د دوی ټول شمېر دولس زره ښودل شوی و، خو د غه شمېر یقیني نه و او د لستونه هم زر ټول شول. د مؤلف فرهنګ په وینا "خانواده های اشخاص زندانی و مفقود بوزارت داخله سرازیر شده بعضی نام وابستگان شان را در فهرست مشاهده کرده فریاد و فغان و لعنت و دشنام وداد ند و برخی دیگر که نام شخص مطلوب را در فهرست نیافتند، در شک و تردید جانکاه باقی ماندند. اما هنگامیکه سر و صدای اعتراض عامه اوج گرفته نزدیک بود به قیام عمومی منجر شود، فهرست ها از دیوارها برچیده شد."[6] دغه لستونه دقیق او سم هم نه وو، "بعدها معلوم شد که فهرست چنان ناشیانه ترتیب شده بود که یک تعداد اشخاص که نام های شان در ان درج بود، از محبس بیرون شدند و کسانیکه نام شان تثبیت نشده بود از بین رفته بودند."[7] دا له دې امله و، چې خلقي ماموران په دفتري چارو نه پوهېدل او په هغه سربېره څنګه چې د اګسا چارواکیو بندیان بې له لیکلي تحقیق او محاکمې نه هم له مېنځه وړل، په دفترونو کې یې هویتونه لیکل شوي نه وو.

په هر حال، دد غو لستونو له ځړولو نه مقصد دا و، چې دغه وژنې د اګسا چارواکیو کړي او کام به څوک له لاسوندونو پرته نه بندي کوي.

دویمه دا چې حکومت له وعدې سره سم په کابل کې 850 تنه بندیان جوپه په جوپه ازاد کړل او پاتې 2700 یې د جنوری په لومړۍ ورځ د ګوند دشپاړسمې کالیزې په ویاړ خوشې کول، خو په هغه وخت کې نسکور شوی و[8]. حکومت په همدغه لړ کې د کشتمند، عبدالقادر او رفیع اعدام د اوږدو مودو په بند سره تبدیل کړ.

د امین په وخت کې اساسي موضوع د اساسي قانون د کمیسیون جوړول و. د اساسي قانون لرل اول پولټ بورو او وروسته انقلابي شورا ومنل، تر دغه وخته پورې د فرمانونو له لارې حاکمیت چلول کېده نه د کوم اساسي قانون پر بنسټ، چې د حکومت واک او د خلکو حقونه ټاکل شوي او د زورواکۍ مخه نیول شوې وي، یا لږ تر لږه زورواکي محدوده شوې وي، نو په خلقي دوره کې تر دغه وخته پورې د چارواکیو د زورواکۍ غټ علت د اساسي قانون نه شته والی و چې اوس امین غوښتل حکومت یې د قانون له مخې حکومت وکړي. هغه و، چې د دغه کمیسیون د جوړولو لپاره د اکتوبر په سر کې له ټول هېواد نه پنځوس تنه غړي وټاکل شول، چې هغه ځینې حکومتي وزیران، غیرګوندي پوهان، ځینې نظامي افسران، قومي لویان او روحانیان وو[9]. د کمیسیون لومړۍ غونډه په خپله امین پرانېستله او کار یې په اوو کمېټو وویشل شو او ډول ډول نظرونه او وړاندیزونه پکې واورېدل شول. د قانون جوړولو کار پای ته رسېدلی و، چې شورویانو په افغانستان ودانګل او په پرچمي رجیم کې هغه د افغانستان د موقتي اساسي قانون په شکل واېستل شو، خو عمل پرې ونه شو.

داسې هم امین د سپتمبر په اخره کې په دې پیل وکړ، چې د کودتا نه دمخه حکومتونو په شان هېواد ته د پلان له مخې انکشاف ورکړي. د دغه مقصد لپاره یې د خپل مرستیال شاه ولي په سروالۍ او د عامه روغتیا، مالیې، کانو او صنایعو، د پلان جوړولو او سوداګرۍ وزیرانو په غړیتوب یو لوی اقتصادي کمیسیون جوړ کړ. په دې اړه دمخه هم یو کمیسیون جوړ شوی و، خو هغه غېر فعال و. نوي کمیسیون په ټینګه کار پیل وکړ او دغسې پېنځه کلن اقتصادي پلان یې وایست، چې د نوي لمریز کال په شروع (مارچ 1980) کې به یې پلي کېدل شروع شي[10].

د اکتوبر په پای کې امین انقلابي شورا ته د اقتصادي_اجتماعي انکشاف لپاره لس کلن پلان وړاندې کړ، چې د هغه له مخې د پېنځه کلن انکشافي پلان په هدفونو باندې له سره نظر اچول شوی و. دد غه تجویز له مخې شوروي اتحاد د خپلو پورونو د تادیې وخت بېرته غورزولی و او سوشلستي هېوادونو د پلان د 66 سلنې پیسو مرستې منلې وې[10]. د پلان ځانګړتیاوې مشخصې نه وې، خو که هغه په د غومره مرستو سره پلی شوی وای، په افغانستان کې به د شوروي اتحاد نفوذ لا ډېر شوی وای، خو څنګه چې نورو حکومتونو نه غوښتل د امین له حکومت سره مرسته وکړي، هغه هم د غومره ډېره مرسته حکومت ته بله لاره هم نه وه پاتې. امین په دې باور و، چې د شوروي اتحاد مرستو ته "حد نه شته ]او هغه[ پوره زموږ په توان پورې اړه لري، چې جذب یې کړو او کار ترینه واخلو.[11]" د امین دغه باور پر ځای نه و. شوروي اتحاد ته ګرانه وه، چې له افغانستان سره د غومره ډېره مرسته وکړي، که څه هم تر دغه وخته یې له خلقي حکومت سره ډېر قراردادو نه لاسلیک کړي وو. شوروي اتحاد لا د افغانستان د ګاز بیه، چې له 1968نه وروسته یې له شبرغان نه واردوه، له بین المللي نرخ نه لږه ورکوله. پر هغه سربېره د ګاز د اندازې میتر په شوروي اتحاد کې نصب شوي او د شوروي ماهرانو تر څارنې لاندې و. افغان حکومت د هغومره متر مکعب غاز اندازه منله، چې شوروي ماهرانو ورکوله[12]. په دې ډول افغانستان په خپل یوه غټ صادراتي قلم باندې تاوان کاوه.

د خلقي حکومت درې وزیرانو د عبدالکریم میثاق په ګډون په یوه ګډ لیک کې له شوروي اتحاد نه وغوښتل، چې د ګاز په بیه باندې له سره نظر وکړي. د شوروي حکومت ځواب معلوم نه دی، خو دا معلومه ده چې امین د شوروي له یرغل نه لږ دمخه خپل یوه لوړ پوړي چارواکي ته ویلي

و، چې د شوروي حکومت ورنه غوښتي و، چې افغانستان دې د تيلو بيه درې کرته زياته ورکړي. امين په ځواب کې ويلي و، چې موږ د ضعيف اقتصاد له امله د غه زياتوالى منلى نه شو او که مجبور شو، ز موږ خلک به له بايسکيلونو کار واخلي[13].

امين پوهېده، چې که حکومت يې د ضعيف اقتصاد له امله سقوط و نه کړي، لېر تر لږه له سختو ستونځو سره به مخ شي. افغانستان د ثور له کودتا نه وروسته نه دا چې په اقتصادي لحاظ انکشاف نه و کړى، له بحران سره مخامخ و. هغه وړې فابريکې، چې پخوا په کار شوې وې، په تېره د کابل په صنعتي پارک کې تړل شوې وې. د توليدي مؤسسو خاوندانو او پانګه ورو خپلې شتمنۍ په خطر کې ليدلې او چې کولى يې شول، دبا ندې تللي. سوداګري هم سخته زيانمنه شوې وه او انتقالات په لويو لارو کې خوندي نه وو. بانديو سيلانيان، چې افغانستان ته په راتګ سره يې د وطن عوايد ډېرول، له کودتا نه وروسته نه راتلل. په سيلانيانو پورې اړوند صنعت لکه د انتيک شيزونو هټۍ او هوټلونه هم تړل شوي وو. عمومي وزګارتيا ډېره شوې وه او وار په وار ډېرېده. زراعتي محصولات، چې د ملي اقتصاد مهمه برخه ده، د ځمکو وېش سره کم شوي و، په داسې حال کې چې کرنه له کودتا نه دمخه تر يوه حده پورې په خاص ډول په هلمند کې ماشيني شوې وه او افغانستان د اصلاح شويو تخمونو او کيمياوي سرې په استعمال سره د کرنې د محصولاتو له درکه تر ډېره حده پورې پر ځان بسيا شوى و. عمر ساپى وايي، چې "د ثور د پاڅون وروسته هم پروګرام دا و، چې نو موړې پروژې تکميل شي او لا انکشاف ورته ورکړل شي، خو حالات دا ډول راغلل چې هرڅه دکاغذ پر مخ پاتې شول.[14]" دى "د زرګونو اقتصادي ستونزو" له ډلې نه دا هم وايي، چې د کودتا په لومړي کال "د افغانستان

د دفاع وزارت بودجه د عقرب په میاشت کې خلاصه شوه.[15] "په دغه کال کې د پاڅونونو له امله نظامي عملیات او لګښتونه بېخي زیات شوي وو، عجیبه ده چې په ټولو هغو اثارو کې چې د خلقي نظام په اړه لیکل شوي دي، د افغانستان د اقتصادي او مالي وضع په اړه لږ څه ډېر کې ویل شوي دي. هغه ټول د سیاسي او امنیتي وضع په اړه دي.

د اکتوبر په درېیمه حکومت د هېواد ټول خلک څه باندې پېنځلس نیم ملیون وښودل، چې شمېر نه یې د جون د 15مې او جولای پېنځمې پورې شوې وه. د هغې ناارامي له امله، چې په هېواد کې خوره وه، دغه شمېرنه ناشونکې وه، خو د مرکزي سرشمېرنې مؤسسې د ملګرو ملتونو د مؤسسې هغه نمونې، چې دمخه یې تنظیم کړې وې، اساس وګرځولې او دغه شمېرنه یې په تخمیني ډول وړاندې کړه[15 الف].

اساسي موضوع د امنیت وه، چې د امین په واکمنۍ کې هم خرابه وه، خو نه هغومره چې مخالفانو په تېره پرچمیانو او وروسته شورویانو ویل او د شوروي یرغل یې د کړارولو دلیل وښودل شوی. د امین په وخت کې یوازېنۍ غټه ناارامي د ریښخورو د فرقې وه، چې د اکتوبر په 14مه د جمعې په ورځ پېښه شوه او ډزې یې په بله ورځ په کابل پوهنتون کې هم اورېدل کېدلې. ناارامي په اصل کې د تره کي پلوو او زړ غوني افسرانو کار و، خو په اړه یې دقیق معلومات نشته او هغه زر وځپل شوه. حکومت د هغه پړه په دوو "خاینو جنرالانو" واچوله او د افغان ملت ګوند مؤسس غلام محمد فرهاد یې مشر وښودل شو. په ځپلو کې یې له جنګي الوتکو، زړو ټانکونو او نورو قوتونو نه کار واخیستل شو، نه د څلورمې زغروري قوې له ټانکونو نه، چې له هغو نه شاید د وطنجار له امله کار نه وي اخیستل شوی[16]. ددغه نابریالي پاڅون په کړارولو کې

"دومره ډېرې وسلې په څو ډیپوګانو کې د هوايي بمبارۍ په ذريعه له منځه لاړې، چې ارزښت يې مليونونو افغانيو ته رسېږي. ويل شوي، چې په دغو ډیپوګانو کې ډېرې زړې ډول ډول وسلې هم وې، چې ځينې يې حتی د امیر عبدالرحمن د وختو هم وي. پاځون د توپچي د غونډ له خوا پيل شوی و.)[17]" حکومت زر وروسته دا هم څرګنده کړه، چې "يو شمېر انقلاب ضد او خلق ضد عناصرو د غلام محمد فرهاد په مشرۍ غوښتل په ښار کې ناارامي راولي، خو دوی له اسنادو سره ونيول شول.)[18]"
له فرهاد سره د سپين غر په نامه يو متقاعد جنرال هم ملګری و ښودل شو، خو فرهاد له خپل زوی سره تر دې يوه اونۍ دمخه بندي شوی و. پر دې سربېره د يوه بندي په وينا "د هغه عمر د غومره زيات و، چې په مشکله يې خبرې اورېدلای او درک کولای شوې.)[19]" ويل کېده، چې فرهاد ځکه ددغه پاځون مشر وښودل شو، چې شورويانو ته وښودل شي چې دوی د نېشنلستانو مخالف دي.
په هر حال، په دغه کار سره افغان ملتيان هم ناراضه شول. دغه پاځون که څه هم زر وځپل شو، پايلې يې ژورې وې. يو دا چې څنګه چې دا پېښې پوځي پاځون و، پوځ يې لا هم ضعيف کړ، په تېره چې په هغه کې ډېر سرتېري او افسران تلف شول. بله دا چې لکه چې دمخه و يل شوي، په ارګ کې د تره کي په وژل کېدلو سره او بيا په دغه ناکام پاځون سره په خلقي ګوند کې يو بل درز راغی او ګوند تر پخوا لا ضعيف شو. له دې وروسته حاکمې خلقي ډلې، چې تر دغه وخته يې تره کي په غټو لقبونو ستايه، د تره کي په بدويلو پيل وکړ. په يوې ګوندي ليکنې کې ويل شوي و، چې "تره کي د ثور په ستر او نه ماتېدونکي او په شانه تلونکي انقلاب کې هېڅ رول نه لاره. دغه افتخارات په دې ده ته ورکړل شول، چې دی يو سپين ږيری او د حزب مؤسس و، مګر ده خپل قدر و نه پېژنده او غوښتل يې چې د يوه خارجي قدرت

په مرستې سره نور له مېنځه یوسي او له ببرکیانو سره ائتلاف او حاکمیت وکړي.‌"[20] په مقابل کې پرچمیانو او "یو شمېر خلقیانو" امین پر ضد شپې لیکونه خپرول. د یو شمېر آستخباراتي موټرو په واسطه د کابل ښار په مختلفو برخو کې تیت یدلې او د شب نامو په متن کې په صراحت سره د امین د سقوط مطالب لیکل کېدل او خلکو ته د یوه نوي او سالم حکومت د راتګ غږونه پکې ښکاره کېدل.‌"[21] نبي عظیمي هم وايي، چې "عده ای را عقیده بران بود که برخی از این شب نامه ها در سفارت شوروی ترتیب و از طریق اعضای سفارت مخفیانه از طرف شب پخش میشدند." دی دا هم وايي، چې "در شب نامه ها به ضرورت وحدت و همبستگی حزب خلق و پرچم بخاطر از بین بردن امین تائید میگردید."[22]

حکومت د تره کي پلوو خلقیانو او پرچمیانو په وړاندې کې غوڅ عمل کاوه، په لنډ ډول حکومت یو شمېر پېژندل شوي تره کي پلوه او زر غوني خلقیان بندي کړل. د شېرزاد خلقي په وینا، د ننګرهار په محبس کې د هغو شمېر یو پنځوس او د هاشم وطنوال خلقي په وینا په کابل کې د هغو شمېر تر دېرشو نه ډېر وو[23]. له کارملیانو سره خو د امینیانو اړیکې له اول نه ترخه وو، د غو شپې لیکونو هغه نور هم ترخه کړل. امین په دې هم پوهېده، چې کارمل که څه هم پراري دی، دده اصلي ژوندی سرسخت رقیب دی، خو دا به دده ته معلومه نه وه، چې شورویانو هغه او ملګرو ته یې ډاډ ور کړی، چې په واک به یې ور سوي. د امریکې د څو استخباراتي ځانګو په یوه یاد ښت کې د سپتمبر په 27مه ویل شوي و، چې "موږ دغسې راپورونه ترلاسه کړي وو چې شورویانو د خلق دموکراتیک د پرچم د مخالفې ډلې لویان، چې په اروپا کې پراري دي، هڅولي دي چې ډاډه او سي چې شورویان به یې په واک راولي او که داسې و نه شول، شوریان به په نظامي کودتا لاس پورې

کړي.)24(" د همدغې ډاډينې له امله و، چې پرچميان بيا هم کرار نه، بلکې په حېرا نوونکي ډول فعال وو. په دغه حال کې حکومت په پرچميانو باندې د دويم ځل لپاره سخته ونيوله. لومړی ځل يې وروسته له هغه پرې سخته نيولې وه، چې لويان يې د کودتا په تور نيولي وو. اوس د حکومت پروګرام دا شو، چې پرچميان له حکومتي ادارو نه وباسي، تنظيم يې له منځه يوسي او له ټول ملک نه يې کمبله ټوله کړي.
په کابل کې يې پېژندل شوي پرچمي ماموران يو په بل پسې نيول او بندي کول. غېر حکومتي پرچميان يې هم، چې ګوتو ورتلل نيول او بندي کول. سره له دې هم ډېر پرچميان پټ شول. دوی د مقابلې توان نه لاره، خو پروپاګند يې ډېر کاوه. امين يې د سي آی اي "ايجنټ" ګاڼه او ويل يې چې له دوی نه يو نيم زر تنه بندي شوي دي. واقعيت دا دی، چې ټول هغه پرچميان چې د شوروي د يرغل په سبا له زندان نه خوشې شول، شپږ سوه تنه وو. له دوی نه ډېر له منځه وړل شوي هم نه دي. په هغو "دولس زره" اعدام شويو کې پرچميان د ګوتو په شمار وو. دوی د تره کي پلوو خلقيانو په اندازه کړل شوي هم نه دي. داسې ښکاري، چې خلقي حکومت د شوروي مشاورانو له امله په پرچميانو نور څه نه کول، يا کولی نه شول. هرڅه چې و د غوږې ښوګوندي کړکېچ او دا چې امين ترفشار لاندې و چې بايد ډېر کار وکړي، په هغه يې بد اثر کړی و. د ساپي په وينا "امين د ګوند د تشتت او د خپلو مخالفينو د بهرني شيطاني نقشونو په نتيجه کې ناراحت و... د پخوا وختونو په تناسب زهير معلومېده.)25(" ساپی امين د شوروي له يرغل نه لږ څه دمخه په کابل کې ليدلی و.
د ريشخورو له پاخون نه غير د امين په واکمنۍ کې بل غټ پاخون ليدل شوی نه دی، البته هېواد نارام و، خو امنيتي وضع مخ په ښه کېدو

وه. د بېلګې په ډول د امين د واکمنۍ په سر کې په پکتيا کې يواځې خوست او ګرديز د حکومت تر کنټرول لاندې وو او سيمې او قومونه يې له حکومتي کنټرول نه ازاد وو، خو وروسته ټوله پکتيا ارامه شوه[26]. د ګرديز، احمدزی رود، سيد کرم، احمد خېلو او ميرزکي خلکو او مشرانو لا په عاجل ډول د کابل د خلکو هغه تنکسيا له مېنځه يووړه، چې په سره ژمي کې د سونګ لرګيو د لږ والي له امله پېښه شوې وه. د هغه وخت د پکتيا والي محمد عمر ساپي د امين په مخامخ غوښتنې سره د غه خلک وهڅول، چې د لرګيو رسول اسان کړي[27]، هغه همدغسې وکړل. دغه وخت چې په کابل کې سخته ګراني وه ) اوړه من په پېنځه اتيا، سکاره من په پېنځه نوي او لرګي من په دېرش افغانۍ وو( حکومت له پکتيا والو نه لرګي په بيه رانيول او کابل ته يې په چټکه رسول. د اکتوبر په دېرشمه له لرګيو نه نزدې شپېته ډکې لارۍ په کابل کې د ننداري په ډول وګرځول شوې، په داسې حال کې چې په سرو جنډو پوښل شوې او ډولچيانو ډهلونه دربول[27]، خو څنګه چې دغه کار په نظامي قوت ترسره شو، اوازه شوه چې په پکتيا او غزني کې لوی نظامي عمليات وشول. په پکتيا کې بيا د امين د واکمنۍ تر پايه پورې امنيتي وضع خرابه نه وه. د ساپي په وينا "زه د پکتيا د والي په حيث اکثره د ولايت په دولتي موټر کې کابل ته تلم راتلم، پرته له دې چې زره پوش او يا نور جدي امنيتي تدابير د ځان دپاره ونيسم.[29]" زه هم د پوهنتون له څو استادانو سره له کابل نه د ننګرهار پوهنتون ته د درس ورکولو لپاره په اونۍ کې يو ځل د شوروي تر يرغل پورې تلم، بې له دې چې د بد امنيتي کومه نښه مې ليدلې وي، د وطن د نورو سيمو وضع هم لږ و ډېر همدغسې وه، يواځې د بدخشان، د پنجشير سر درې د مخالفانو په لاس وې، خو مخالفان په هېڅ سيمې کې له حکومتي

وسله والو ځواکونو سره مخامخ کېدلی نه شول. د لغمان د الیشنګ په ولسوالۍ کې مخالفان د اکتوبر له 30مې نه دمخه د درې له سر نه تر صبرآباد، ګنجاوڼ او شکرمان پورې رسېدلي وو، خو له حکومتي ځواکونو سره بې له مقابلې نه په شا شول[30]. خو له ترین کوټ نه پرته ارزګان د حکومت په ولکه کې نه وو. امین د نومبر په 24مه په یوې مطبوعاتي مرکې کې وویل، چې "په ټول افغانستان کې ارامي ده او ددغو پرخلاف ویناوې ټولې د بین المللي امپریالزم او ارتجاع اختراعات دي."[31]

***

## له شوروي اتحاد سره اړیکې

د ثور له کودتا نه وروسته افغان_شوروي اړیکې د خاصې دوستۍ په شکل ښوول کېدلې، خو په هغو کې کړکېچ هم ډېر او ټینګ و. دغو اړیکو څو مرحلې لرلې: له کودتا نه د امین تر لومړي وزیر کېدو پورې، بیا د تره کي تر وژل کېدلو پورې او وروسته د امین د واکمنۍ په بهیر کې.

د شوروي اتحاد حکومت په اصل کې د ثور له کودتا سره جوړ نه و، په دغه غټ دلیل، چې افغانستان د سوشلستي انقلاب لپاره تیار نه و. لا مهمه دا ده، چې کودتا په اساسي ډول د خلقیانو او په خاص ډول د امین کار و، نه د پرچمیانو. خو څنګه چې په افغانستان کې مسکو پلوه د خلق دموکراتیک ګوند د لومړي ځل لپاره دولتي واک ترلاسه کړ، شوروي حکومت ته بله لاره نه وه، خو دا چې د ټینګښت لپاره یې مالي او تخنیکي مرستې او وسلې ورکړې او په دې لار کې لګښتونه و کړي او تاوانونه و ګالي. شوروي اتحاد د کودتا په اولو ورځو کې له خلقي حکومت نه دوه امتیازونه ترلاسه کړل: یو دا چې لکه چې دمخه ویل شوي په حکومت کې یې پرچمیانو ته له خلقیانو سره برابر مقامونه وګټل. بله دا چې

پوزانوف له تره کي نه دغه وعده ترلاسه کړه، چې "افغانستان به د مارکسزم_لیننزم په پیروي د سوشلزم د ودانولو په لور روان وي او سوشلستي کامپ پورې به اړه ولري." تره کي دا هم وویل، چې په دغې کرښې باندې به په احتیاط سره تګ وشي او ګوند به ددغو رښتینو موخو په اړه خلک وروسته خبر کړي. افغانستان به په خپل باندني سیاست کې د ناپېیلو هېوادونو په لار روان وي، خو لومړۍ درجه همکاري به یې له شوروي اتحاد سره وي[32].

پرچمیانو ته د دغه امتیاز ګټل سمدلاسه مهم و. شوروي اتحاد پرچمي لویان په خاص ډول کارمل خپل مننونکي ایجنټان ګڼل او په حکومت کې یې د هغو شته والی مهم ګاڼه. پوزانوف ددې لپاره، چې پرچمیانو ته اتبآر ورکړل شي، حتی له تره کي او امین نه زیات له کارمل سره په رسمي ډول لیدل. هغه لا خپل حکومت ته ویلي وو، چې د "ثور انقلاب" د هغه د نوښت زېږنده دی. شورویانو دغه کارونه په دې هم کول، چې امین په نوي نظام کې د سرسړی نه وي، خو هغه په واقع کې و او د پرچمیانو په اړه د هغه نظر د شوروي لویانو د سیاست پرخلاف و، چې په پای کې یو شمېر پرچمي لویان د کارمل په ګډون، لکه چې دمخه ویل شوي، دباندې پراري شول او یو شو نور یې په څرخي پله زندان کې بندي شول. د شوروي حکومت ددغو انکشافونو په اړه په رسمي ډول څه ونه کړل، خو بریژنیف د همدغه کال په دسمبر کې د کریملن په ماڼۍ کې له افغان پلاوي سره د "اختلاف" مسئله پورته کړه. دغه "اختلاف" مشخص نه شو، خو هغه په غالب احتمال د پرچمیانو په اړه و، چې خلقي حکومت ځپلي و او په هغه سربېره په حکومت کې دولتي واک په زیاتېدونکي ډول د امین لاس ته ورته. بریژنیف بیا د هرات د پاڅون په وخت کې له تره کي نه، چې د یوې شپې لپاره په پټه مسکو ته تللی و، وغوښتل چې "امین د ملي دفاع

د وزارت څخه ګوښه کړي.(33)" خو ددغه دستور نتيجه په کابل کې سرچپه شوه. په دې ډول، چې امين اول د هېواد لومړی وزير او وروسته د جولای په 27مه د ملي دفاع وزير هم شو. بيا نو د شوروي حکومت په ظاهر کې له امين سره دوستي کوله، خو په واقع کې يې د مرستو او دوستۍ په نامه د هغه د حکومت تخريب کاوه.

د شوروي اتحاد د کمونست ګوند پولټبورو يا سياسي دفتر، چې په واقع کې تر نورو ټولو لوړه واکمنه ځانګه وه، د هرات له پاڅون نه وروسته د افغانستان په اړه يو لوړ کميسيون رامېنځ ته کړ، چې د ک.ج.ب سروال يوري اندروپوف، د باندنيو چارو وزير اندري ګروميکو، د ملي دفاع وزير ديمتري اوستينوف او د مرکزي کمېټې بين الملي ځانګې آمر بوريس پانوماريف نه جوړ و. له وروستي نه پرته، چې د پولټبورو نه رايه ورکوونکي غړي و، نور ټول د هغه پوره غړي وو. د کميسيون وظيفه دا وه، چې د افغانستان په اړه "وړانديزونه وکړي او عملونه همغاړي کړي.(34)" په واقع کې د کميسيون وظيفه د افغانستان په اړه د شوروي اتحاد حکومت سياست غوره کول و. د همدغه کميسيون په سپارښتنه و، چې د شوروي اتحاد دوه نظامي کميسيونونه افغانستان ته واستول او د امين د حکومت د نسکورولو په مقصد په افغانستان باندې وسله وال تېری وشو. څنګه چې بريژنيف له 1977 څخه وروسته د فعال کارتوان له لاسه ورکړی و، د دغه کميسيون په اسانۍ سره د خپلو پرېکړو په اړه د هغه موافقت حاصلولی شو، نو دا يو ډېر مهم کميسيون و.

د شوروي اتحاد د حکومت دننه په افغانستان کې د تخريب او نفوذ خپرولو وسيلې ملکي او نظامي مشاوران او واړه نظامي ډلګي وو، چې شمېر يې وار په وار ډېر بده. په دغه لړ کې د سروري ډله وه، چې ک.ج.ب والو د امين پر ضد

لمسوله او په دې اړه دمخه بحث شوی دی. د امین په واکمن کېدلو سره دوی ته (له مزدور یار پرته چې په کور کې تر رڅارنې لاندې نیول شوی و) افغانستان کې ځای نه و. دوی د سپټمبر په خونړۍ ورځ چېرته په لوګر کې پټ شول. د سروري په وینا "با برکناری ما سر نوشت ما معلوم بود باین جهت خود را باو [امین] تسلیم نکرده هر سه ماه از شهر جانب لوګر رفتیم، شب را در دامنه یک کوه سپر بردیم. هوا خیلی سرد بود، من و ګلابزوی به هیزم جمع کردن رفتیم. و قتی باز ګشتیم وطنجار به شدت میګریست و اشک میریخت و میګفت: سر نوشت زن و فرزندم چه خواهد شد؟ ما با و ګفتیم وقتی تاب و توان این روزها را نداشتی [باید] مبارزه نمیکردی. چند روز بعد بصورت مخفی به شهر بر ګشتیم." بیا دوی د شوروي سفارت د درېیم سکرتر والیري ساموتن هستوګنځي ته ورغلل، چې سفارت ته نږدې پروت و. ګلابزوی ته د غه ځای معلوم و، چې هلته یې له 1973 نه تر 1975 پورې په غونډو کې ګډون کړی و. "هغوی بیا د ایوانوف په دستور او د پوزانوف په مشوره د (زینت) د خاص واحد تهکاوی ته په پټه ولېږدول شول، قوارې یې ورته واړولې، برېتونه یې وروخرییل او د هغه واحد نظامي یونیوفرم یې ور واغوستل." خو د شورویانو له خوا هغوی ته پناه ورکول لکه د امین له حکومت سره دښمني کول و. "نو د ک.ج.ب ځانګې ته هدایت شوی و، چې د هغو له شته والي نه انکار وکړي او پراخ کارونه وکړي، چې د غه حقیقت پټ وساتل شي، چې دوی په د غې هستوګنځي کې دي.)[35]" د هغو د پیدا کولو په اړه د حکومت پلټنو او پوښتنو نتیجه ورنکړه. حکومت له شورویانو سره د هغو د شته والي په اړه لاسوندونه هم نه لرل، که څه هم پوهېده چې هغوی یې پټ کړي دي. سروري او ګلابزوی به د پرچمیانو په شان د ک.ج.ب چاروا کو ته په ټینګه ویل، چې

امين د سي.ای.ای ايجنټ دی او د غو چارواکو د غه راپورونه اندروپوف، بريژنيف او د بولټبورو نورو غړو ته رسول[36]. خو د ک.ج.ب لپاره په کابل کې د هغو پټه ساتنه غټ مشکل و، نو يې د سپتمبر په 19مه هغوی تاسکند ته ولېږدول، په دې ډول چې وطنجار او ګلابزوی يې چې شکلونه يې يو څه بدل کړي او د زينت نظامي واحد يونيفورم يې وراغوستی وو، له شوروي پوځيانو سره يو ځای د بګرام له هوايي ډګر نه په الوتکه کې تاشکند ته ورسول، خو د سروي انتقال له دې امله چې پڼ و او له ورا يه پېژندل کېده، ګران و. هغه په يوه سر پټي او مهر شوي لوی ظرف کې چې د شپږو ساعتو لپاره يې اکسيجن لاره، تاشکند ته ورسول شو. دغه بريالی انتقال په خپله اندروپوف وستايه او چارواکيو ته يې انعامونه ورکړل. ک.ج.ب سره له دې هم په سروري او ملګرو يې اعتبار نه کاوه. د يوې مياشتې لپاره يې په تاشکند کې په دغسې کور کې و ساتل، چې د غږ ثبتولو په آلو مجهز و. وروسته له دې، چې د هغو د خبرو فيتې واورېدل شوې او شورويانو ته د اعتماد وړ وګرځېدل، بيا په بلغاريې کې کوم پټ ځای ته ولېږدول شول[37]. په دې ډول د شوروي امپراتورۍ يوې برخې ته د هغو په انتقال سره د شوروي حکومت په دې قادر شو، چې وروسته يې له پراري پرچميانو سره متحد کړي او په افغانستان باندې په نظامي يرغل کې تربنه کار واخلي. دوی ټول پوهېدل، چې د خپل وطن افغانستان په مقابل کې د شوروي حکومت له خوا د دوی استعمال له وطن سره د نه بښنې وړ غټ خيانت دی. سره له دې دوی په خپله خوښه او اراده ور ته تسليم شول او په دې ډول يې خپل افغانيت او انسانيت د تل لپاره داغي او نيمګړي کړ.

په افغانستان کې په خلقي دوره کې شوروي چارواکي سمدلاسه ډېر شول، دوی افغانستان ته په اسانه راتلللی شول. دوی ک.ج.ب والو په ګډون د

سفارت چارواکي يا ديپلوماتان، مشاوران، متخصصان او وړې نظامي ډلې وې. مشاورانو يې د خلقي ګوندي او حکومتي نظام په جوړښت کې ونډه لرله. دوی په واقع کې د افغانستان د سياست يوه برخه شوي وو، خو په دوی کې هم ډېرو يې د خپل حکومت د سياست له مخې عمل کړی او کارمليان يې د حکومت په برابر کې لمسولي او په دې ډول يې له حکومت سره د دوستۍ او مرستې په نامه ورانی کړی او د امنيت ټينګولو په برخه کې يې د حکومت ستونځې ډېرې کړې وې، خو ټولو مشاورانو په افغانستان کې د خپل حکومت لار نه ده نيولې، زياتره غټانو يې د خلقيانو په پلوۍ په ملکي او پوځي چارو کې چارې ترسره کړي او لکه چې وروسته به ولېدل شي، د شوروي حکومت دوی په بې‌لو پلمو شوروي اتحاد ته بېرته غوښتلي دي او ددې پرخلاف د پرچمي پلو مشاورانو راپورونه او فکرونه يې د اعتماد وړ ګڼلي او حتی پرې عمل کړی دی.

ډېر شوروي مشاوران د خپل مسلک وړ نه وو، په خپله امين هم د هغو په اړه شکايت کاوه "موږ ستاسو مشاورانو ته په افغانستان کې ډېر قدرت ور کړی، موږ هغو ته ډېره سخته سزا ور کوو چې ستاسو د ملګرو مشوره نه مني. له دې نه ښکاري، چې ستاسو ټول مشاوران په کافي اندازه لياقت نه لري."[38] سره له دې هم څنګه چې خلقي لويانو د ثور له کودتا نه وروسته په افغانستان کې د يوه نوي شوروي ډول نظام په پښو درولو پيل وکړ. دغو "ناوړو" شوروي مشاورانو ته اړ شول او هغو ته يې تر افغانانو نه زيات اهميت ور کړ. که د موروزوف د غه ويناسمه وي، هغو له شورويانو نه وغوښتل چې "موږ قدرت ترلاسه کړی، خو په دې نه پوهېږو چې څه ورسره وکړو. مهرباني وکړئ زموږ وسله والو پوځونو، د افغانستان د خلق دموکراتيک ګوند او زموږ د هر وزارت لپاره هغومره مشاوران

راوا ستوئ چې کولی شي. موږ ته وښيي چې موږ دولت څنګه تنظيم کړو او موږ به په هغه څه عمل وکړو، چې موږ ته ويل کېږي.[39]" د افغان پوځ لپاره د لومړي ځل لپاره پاچا امان الله باندني ماهران استخدام کړي وو، چې هغه ترکان وو، خو د پاچا امان الله دولتي نظام ملي او افغاني وو، چې هغه د امير شېر علي او امير عبدالرحمن د نظامونو په دوام وو. د پوځ لپاره شوروي مشاوران د لومړي ځل لپاره صدراعظم محمد داود استخدام کړل. دوی ځکه استخدام شول، چې د شوروي حکومت د افغان پوځ د عصري کولو او په نويو وسلو د هغو د سمبالولو لپاره افغانستان ته د وسلو او پېسو کريډتونه منلي وو، خو د غو مشاورانو د حکومت په تنظيم کې هېڅ رول نه لاره او حکومتي نظام د پخوا په شان اسلامي او ملي بڼه لرله.

په دې کې غټ شک دی، چې موروزوف به د خلقي لويانو د غه غوښتنه په دقيق ډول بيان کړې وي، خو دا به سمه وي چې هغوی به په خپل وطن کې د شوروي دولت نظام د جوړولو لپاره د هغوی مشاوران غوښتي وي. دلته بايد وويل شي، چې په افغانستان کې د دولتي نظام جوړولو عنعنه د روسانو تر هغې نه ډېره پخوانۍ ده. روسانو د نهمې پېړۍ تر نيمايي پورې بې دينه او بې دولت په دغه وخت کې د سکنديانو وو، وانګانو ته بلنه ورکړه، چې د دوی لپاره د نووګراد په ښار کې دولتي نظآم جوړ کړي[40].

په هر حال، د ثور له کودتا نه دمخه افغانستان هم د ډېرو مجربو مسلکي کدرونو خاوند شوی و، خو خلقي لويانو هغوی د "نور چشمان" او "ضد انقلاب" په نامه رد کړل او له حد نه زيات ته ډډه يې په شوروي ماهرانو وکړه. دوی په خپلې د غې پاليسۍ سره په خپل نظام کې شوروي مشاورانو ته د نفوذ او توطيه کولو لپاره موقع په لاس ورکړه، چې تخريبي اثر يې په

خاص ډول د امین په واکمنۍ کې ثابت شو. د ایډیالوجۍ په جال کې ګیر شوي خلقي لویان دېته ځیر نه شول، چې د شوروي حکومت د خلقي ایډیالوجۍ په نامه چې هرڅه کول، په اصل کې یې د خپل ملت لپاره کول. حکومتي سیاستونه او چلندونه په نهایت کې ملي وي، نه ایډیالوجیکي او هېڅ ملي حکومت په خپل ملک کې باندنیو ته په هر نامه، چې وي، واک نه ورکوي. البته د امین په واکمنۍ کې افغان چارواکي موظف شوي وو، چې له شوروي مشاورانو نه یوازې مشوره ترلاسه کړي. په دغه وخت کې دوی ته د خپل حکومت له خوا هم دستور ورکړل شوی و، چې د مصلحت لپاره په ظاهر کې د حکومت رښتیني مشاوران وي او هغه پرځان مشکوک نه کړي.

په خلقي دوره کې د شوروي مشاورانو شمېر په یقین سره معلوم نه دی، د 1979 په مارچ کې د کوسیګین په وینا د 550 تنو په شاوخوا کې وو(41). د مؤلف براډشیر په وینا د کودتا په اولو دریو میاشتو کې د شوروي د نظامي مشاورانو شمېر درې واره ډېر شو او اوه سوو ته ورسېد، چې ځینو یې د ملي دفاع وزارت چارو په ترسره کولو مرستې کولې او د 650 ملکي مشاورانو څخه، چې تر کودتا دمخه په افغانستان کې وو، ډېر یې له اطراف نه کابل ته راغلل، چې د وزارتونو په تنظیمولو کې برخه واخلي. د تره کي او امین په وخت کې د دوی شمېر وار په وار دومره ډېر شو، چې د شوروي سفارت مجبور شو په نوي څلور پوړې ودانۍ کې اپارتمانونه ورته جوړ کړي(42). د امریکې استخباراتو په حواله د ثور د کودتا په وخت کې اټکل 350 نظامي مشاوران د افغانستان په پوځ کې وو. د 1979 په اولو کې د هغو شمېر د 750 او 1000 ترمېنځ ډېر شو، چې په هغو کې لږ تر لږه پېنځه جنرالان وو. د همدغه کال د سپتمبر تر پای پورې یې شمېر دوه نیم زرو ته ورسېد. په یوه بل راپور کې د دوی شمېر

د درې زرو او درې نیم زرو ترمېنځ ښودل شوی. ملکي مشاوران له هغو نه بېل وو، چې د 1978 په پای کې اټکل دوه زره تنه وو[43]. د 1979 کال په پای کې په کابل کې ویل کېدل، چې په افغانستان کې ټول ټال پېنځه نیم زره مشاوران په ملکي او نظامي ساحو کې کار کوي[44].

د شوروي مشاورانو غټه ستونځه دا وه، چې د خپل حکومت په دستور د خپلو مسلکي کارونو تر څنګه سیاسي فعالیت هم وکړي، نو دوی پخوا له دې چې افغانستان ته تللي وي، په مسکو کې د مرکزي کمېټې د باندنیو اړیکو په څانګه کې "د افغانستان د وضع د تحلیل په جریان کې به دوی ته ویل کېدل، چې په افغانستان کې باید د پرچمیانو په ګټه کار وکړي او خلقیان به د شورویانو د مخالفینو په څېر ورپېژندل کېدل.[45]" خو دغه هدایت به دوی په افغانستان کې ستونځمن کول. پرچمیان په ګوند او حکومت کې د 1978 کال له اګست نه وروسته رټل شوي او خلقیان په پوځ، حکومت او ګوند کې واقعیت وو او واقع لیدونکیو مشاورانو هغه له نظر نه غورزولی نه شو. "نو ځکه یو شمېر مشاورینو د شوروي د مشرتابه د لارښودنې پرعکس خپل دریځ ته بدلون ورکاوه او د پرچمیانو پرځای یې د خلقیانو څخه ملاتړ کاوه." په دې ډول شوروي مشاوران دوه ډلې شوي وو: "د افغانستان په اردو کې د شوروي مشاورینو غوڅ اکثریت د مرکزي کمېټې او د ګوند په اپارات کې د شوروي یو شمېر مشاوران د خلقیانو ملاتړي وو، خو په اکسا کې شوروي مشاوران او په کابل کې د شوروي سفارت کارکوونکي او د زیاتو وزارتونو مشاوران په بشپړه توګه د پرچم ملاتړي وو.[46]" امین د شوروي مشاورانو په جلبولو کې غټ اثر لاره، هغه لومړنی ډله مشاوران، چې د نیکولای سایمونینکو په مشری له کودتا نه درې اونۍ وروسته کابل ته

ورسېده، تر خپل اثر لاندې راوستل او د "خلقي ګوندګي ملاتړ یې کړل.(47)"
امین سایمونینکو ته په لسو مادو کې دغسې یو یادښت وسپاره، چې په هغه کې یې خلقیان د شوروي حکومت رښتیني ملګري او پرچمیان د افغانستان د پخوانیو حکومتونو ملګري ښودل شوي وو. امین ته به په دغه وخت کې معلومه نه وه، چې پرچمي لویانو له شوروي اتحاد سره خاص علایق لرل او شوروي حکومت پرچمیان تر خلقیانو نه غوره بلل. سایمونینکو بیا امین ته په ځوابي یادښت کې، چې د ک.ج.ب له خوا تهیه شوی و، په دغه ډول لیکچر ورکړ: "لینن په ډېرو موقع ګانو کې په ټینګه ویلي و، چې انقلاب هغه وخت مهم کېدلی شي چې په یوه شي خپل ځان ځنګه وساتي.... دغه رسالت یواځې هغه وخت ترسره کېدلی شي، چې د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند د یوه موټي شوي او سره تړل شوي سیاسي مؤسسې په څېر عمل وکړي او په یوه عزم او یوه واحد هدف سره ټینګ شوې وي.(48)" د امین یو بل کوښښ هم د هغه په زړه نتیجه ورنکړه، چې مطلب یې په مسکو کې د بریژنیف په مخالفې ډلې باندې اثر کول و. د زلمي خروټي په وینا په مسکو کې د "بریژنیف ضد ګروپ په اصل کې د بریژنیف له خوا د هغه تېر ایستلو لپاره جوړ شوی و.(49)"
ک.ج.ب) د دولتي مصؤنیت کمېټه( یوه عادي حکومتي څانګه نه وه، په واقع کې هغه د شوروي اتحاد اصلي حکومت و، چې په افغانستان کې یې لکه چې دمخه یادونه شوې، د لینن له وخت راهیسې جاسوسان لرل. هغه وخت د "چیکا" په نامه یادېدله. په خلقي حکومت کې ک.ج.ب په افغانستان کې په دوو برخو سره وېشلی شوې وه، یوه یې د هستوګنځي )Residency( په مستعار نامه یادېده، چې د شوروي سفارت دننه یې کار کاوه. بله یې د "استازو" )Representative( په نامه یادېده، چې چارواکیو یې د خلقي حکومت په بېلو

ځانګو په تېره په امنيتي ځانګو کې مشاوري کوله. په دوی دواړو سربېره په سلګونو نور استخباراتي کارکوونکي وو، چې هويت يې خلقي حکومت ته هم معلوم نه وو. په دوی کې افغانان هم وو. د 1978 له ژمي نه وروسته د ک.ج.ب خاصو واحدونو دننه په افغانستان کې د اسلامپالو په مقابل کې هم عمليات کول[50]. په خلقي دوره کې ک.ج.ب د خپلو امرانو جنرال ايوانوف او اوساد چي او داسې هم د اګسا د سر مشاور کرنيل بوګدانوف له لارې ډېر اثر کړی دی. د امين حکومت هم په اصل کې د ک.ج.ب والو په نوښت، راپورونو او حتی کړو سره نسکور شوي دي. داسې هم د ک.ج.ب د هغو خلقي پلو د مشاورانو مخه نيوله، چې د خلقي حکومت د ټينګښت او د خپل حکومت د احتمالي نظامي يرغل د بېځايه ښودلو لپاره کوښښ کاوه. غټ او مهم مثال يې د وسله وال پوځ سرمشاور جنرال واسيلي زاپلاتين دی، چې د شوروي د لوی نظامي هيئت مشر جنرال پاونوفسکي په شان په دې نظر و، چې حکومت په ستونځو بريالی کېدلی شي او شوروي اتحاد ته ښايي ور سره مرسته وکړي، خو څنګه چې هغه يو مهم شخص و او په نظامي چارو سربېره په سياسي چارو هم ښه پوهېده او د خلقي حکومت ټينګ ملاتړ و، د خپل حکومت د سياست په برابر کې خنډ کېدلی شو.

زاپلاتين بيا د اندروپوف په دستور دشوروي يرغل په درشل کې مسکو ته په بېړه په خاصه الوتکه کې وغوښتل شو، چې کورنۍ يې ورته کوم ډول خاص ضرورت لري. داسې هم جنرال ديمتکوف، چې د جنرال ګاريلوف پر ځای په کابل کې د ملي دفاع وزارت مشاور شو، زر بېرته مسکو ته وغوښتل شو چې د خلقيانو لوری يې نيولی و[51]. په دې ډول ک.ج.ب له افغانستان نه د خپلو مشاورانو د سر هغه کسان وايستل، چې د واقعيتونو او خپل فکر له مخې يې په نورو اثر

او د يرغل پرخلاف استدلال کولی شو.
لکه چې دمخه ويل شوي د کابل ک.ج.ب د سپتمبر په اوله ورځ مسکو ته د افغانستان د وضع په اړه يو يادښت استولی او وړانديزو نه کړي و. د همدغه يادښت له مخې و، چې بريژنيف په مسکو کې تره کی د امين پر ضد عمل ته وهڅوه، چې د هغه نتيجه د تره کي مرګ او د امين سروالي شوه. په دغې پېښې سره بيا دغسې نوي کړکېچونه پيدا شول، چې پای يې د امين وژنه او د خلقي حکومت نسکورېدل شول. لومړی غټ کړکېچ له دېنه راولاړ شو، چې په داسې حال کې چې له تره کي سره د شوروي درې جنرالان او سفير پوزانوف وو، بيا هم په امين باندې ډزې وشوې، خو هغه له مرګ نه بچ شو او تره کي څه باندې درې اونۍ وروسته له منځه يووړل شو. د هغې ورځې له پېښې نه زر وروسته پوزانوف او هغو درې جنرالانو له امين سره د ملي دفاع وزارت په ماڼۍ کې لنډه ليدنه وکړه او د هماغه ماښام په اوو نيمو بجو يې د دوه نيمو ګړيو لپاره بيا ور سره وليدل. د خبرو موضوع تره کی و. امين د هغې ورځې خونړی پېښې ورته بيان کړې او ويې ويل، چې "زه پوره باور لرم چې دوی غوښتل ما ووژني. تر سلو نه ډېرې ډزې په ما وشوې او تاسې په خپله پوهېږئ، چې تره کي څه غوښتل. زه پوهېدم، چې زما د ژوند په اړه ناوړی پلان جوړ شوی و او څه وخت، چې ما تره کي له هاوانا نه د ستنېدو په وخت کې په هوايي ډګر کې وليد، زه هغه ته تيار وم. نن تره کي غوښتل ما ووژني. د هغه پلان دا نه و، چې د شوروي ملګرو په شته والي کې دغه کار وکړي، خو د هغه به له ياده وتلي وي، چې خپل امر فسخ کړي او خپل ساتونکي پرې خبر کړي. " (52)
امين دا هم وويل، چې پوځ او ګوند په دغو پېښو سره لړزېدلی دی او تره کی بايد په خپله خوښه د ناورغۍ په دليل د مرکزي کمېټې په پلينوم کې له عمومي منشي توب نه ځان ګوښه کړي او يواځې

د انقلابي شورا سروال پاتې شي. په بله ورځ )ستمبر 15مه( دغو شورويانو بیا د شوروي د ګوند د مرکزي کمېټې په هدایت له امین سره د غرمې په یوولسو بجو ولیدل. د هغو په وینا "موږ د عمومي منشي توب له مقام نه د تره کي د تجویز شوي ګوښه کولو پر ضد وغبږېدلو، چې په انقلاب باندې به ناوړې اغېزه وکړي." خو امین په ځواب کې ځرګنده کړه، چې "د تره کي ګوښه کېدل به ګوندي اتحاد له منځه یو نه سي، د هغه پرعکس پیاوړی به یې کړي. که تره کي خپل مقامونه وساتل، دغه دوه مخیزتوب به پاتې وي او بیا په د نویو شخړو خطر وي.)53(" امین په عین حال کې کوښښ کاوه، چې د شوروي خوا خوښه وساتي. ویې ویل، چې "د انقلاب د برخلیک په اړه د شوروي ملګرو په اندېښنې ښه پوهېږي." دا یې هم وویل، چې "د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د مرکزي کمېټې پولټبورو او په خاص ډول د ملګري بریژنیف، ملګري پانوماریف، د شوروي سفیر او شوروي ملګرو سپارښتنې او نظرونه د افغان د خلق دموکراتیک ګوند او هېواد لپاره مهم دي. د امین په فکر تره کي په هغو عمل ونه کړ او دی به هغوی قادر کړي، چې له افغانستان سره خپل سیاسي ملاتړ پراخ کړي او د دواړو هېوادونو د وسله والو پوځونو ترمېنځ همکاري لا پیاوړې کړي. سره له دې هم شوروي اتحاد د سپتمبر په 15مه د تره کي د ګوښه کولو په سر امین ته اخطار ورکړ، چې "دغه کار به هم د ګوند او هم د هېواد لپاره ناوړې پایلې ولري." په اصل کې شوروي مشران په امین ډاډه نه وو، دستور یې ورکړ، چې "موږ باید له امین نه وغواړو او خپل نظر ورته ځرګند کړو، چې که تره کي له خپلو مقامونو نه ګوښه کېږي، ضرورت به نه وي چې پر ضد یې ځپونکي کارونه وشي یا کوم ډول محاکمې ته کش شي." خو "موږ باید له امین سره تماسونه

ولرو، ددې لپاره چې د هغه د سیاسي نظر او ارادې په هکله نور معلوات ولرو." د دوی بل هدایت دا و، چې له دې وروسته د وسلو په رسولو کې کمی راوستل شي او هغه به یواځې پرزې او هغه وسلې وي، چې د یاغیانو د ځپلو لپاره ضرور وي(54)، خو امین سره له دې هم لکه چې دمخه ویل شوي، تره کی ګوښه کړ او ځان یې د هغه مقام ته ورسوه.

دوه ورځې وروسته (17 سپتمبر) جنرال پاولوفسکي، جنرال ایوانوف او جنرال ګوریلوف له امین سره د هغه په دفتر کې ولیدل او د خپل حکومت له خوا یې د هغه د واکمن کېدو په مناسبت مبارکي ورکړه، خو مبارکي توده او صمیمي نه وه. امین هم کومه خاصه ډاډینه ورنکړه، خو دغه وعده یې ورکړه، چې "هغه به له خپلو شوروي ملګرو سره له نزدې نه کار وکړي او دغسې ګامونه به واخیستل شي، چې څرګندې نیمګړتیاوې سمې شي او د خپل کار طریقې او طرزونه به ښه کړي.(55)"

په عین حال کې امین هیله ښکاره کړه، چې شوروي ملګري به د مارکسزم_لیننزم په روحیې سره په اقتصادي او نظامي ډګرو نو کې او داسې هم د امنیت په ټینګولو کې له افغانستان سره مرسته او همکاري وکړي. پوزانوف هم په همدغه ورځ امین ته مبارکي وویله، هغه بیا په سفارت کې خپل مشر دیپلوماتان سره ټول کړل او ورته یې کړه، چې "موږ له یوه پېښ شوي واقعیت سره مخ یو. امین په واک رسېدلی دی، تره کی ونه شو کولی چې واک ته د امین د رسېدلو مخه ونیسي. واقعیت دا دی، چې تره کی ضعیف او لټ و، هغه د خپل قول په اندازه ښه نه و. د هغه پرعکس امین هر وخت له موږ نه مشوره اخیستلې ده. امین پیاوړی دی او موږ باید له هغه سره کار وکړو او ملاتړ یې وکړو.(56)" د پوزانوف د همدغه فکر له مخې به و، چې بریژنیف د خپل ګوند په پولټ بورو

کې د سپتمبر په شلمه د لومړي ځل لپاره د امين په اړه له احتياط نه ډک ښه نظر ښکاره کړ: "موږ بايد داسې وګڼو چې د افغان_شوروي په اړيکو کې به کوم ډول غټ تغيير رانه شي او داسې ښکاري، چې هغه به د پخوا په شان دوام وکړي. امين به د روانې وضع او د هغو ستونځو له امله، چې د افغان حکومت به د اوږدې مودې لپاره ورسره مخامخ وي، په هماغه لور کش شي. افغانستان په دوام لرونکي ډول علاقمن دی، چې له شوروي اتحاد نه نظامي، اقتصادي او نور ډول مرستې او ممکن حتى په ډېر مقدار ترلاسه کړي. داسې ښکاري، چې امين به لږ تر لږه په ظاهري ډول دېته دوام ورکړي، چې په هغو سپارښتنو عمل وکړي، چې موږ دمخه )تره کي( ته ورکړې وې، خو )زموږ( دنده به ستونزناکه او حساسه وي."

لس ورځې وروسته بريژنيف له امين او حکومت سره يې د همکارۍ لار ونيوله او د اکتوبر په لومړۍ يې خپلې پولټ بورو ته څرګنده کړه، چې "امين يو څو ويناوې کړي او له هغو نه معلومېږي، چې د انقلاب د پراخولو او له شوروي اتحاد او نورو سوشلستي هېوادونو سره د همکارۍ د پياوړي کولو په لور روان دی. شاوخوا يې يو شمېر ]دغسې[ صادق کسان او رښتيني انقلابيان راټول دي، چې د مارکسزم_لينينزم په اصلونو باندې ټينګ ولاړ دي او د شوروي اتحاد په لور د ښو ميلان لري او زده کړه يې زموږ په هېواد کې کړې ده." بريژنيف په عين حال کې په دې فکر هم و، چې "موږ به په څير سره د امين د فعاليتونو څارنې ته دوام ورکړو او وګورو چې هغه خپلې وعدې ترسره کوي لکه څنګه چې پېښې غواړي پرې عمل وکړي.) [57] " څلور ورځې وروسته بريژنيف په ډاډينې سره وويل، چې "موږ وينو چې امين اوس هغه څه کوي کوم چې ما تره کي ته ويلي و." له دغې څرګندونې نه د بريژنيف مقصد دا و، چې هغه تره کي ته د اساسي قانون له مخې د حکومت کولو

سپارښتنه کړې وه. هغه دا هم وویل، چې "وضع په هېواد کې ښه شوې، خو په ځینو ولایتونو کې له هغو یاغیانو سره مقابله کېږي، چې له پاکستان نه په نېغ یا په نا نېغ ډول او له ایران، امریکې او چین نه په نېغه مرسته ترلاسه کوي." [58]

خو د اکتوبر په شپږمه د دواړو حکومتونو ترمېنځ اوبه خړې شوې، په دغه ورځ د باندنیو چارو وزیر شاه ولي د کمونستي حکومتونو د سفیرانو په مخ کې، چې یې خپل دفتر ته غوښتي وو، له پوزانوف نه شکایت وکړ، چې د افغانستان په چارو کې لاسوهنه کوي. د پوزانوف پرځای وسیلي سفرچځوک غوښتل شوی و، چې د شوروي مهم دیپلومات و. د ک.ج.ب په راپورونو کې نه دي ویل شوي، چې شاه ولي په کومو ټکو پوزانوف تورن کړ. په دغو راپورونو کې دغومره ویل شوي، چې شاه ولي په ارګ کې یواځې د خونړۍ پېښې قصه وکړه، چې په امین باندې د پوزانوف له ډاډېنې سره سره او په داسې حال کې، چې هغه له تره کي سره ناست و، ډزې وشوې[59]. خو د سفرنچوک په روایت شاه ولي وروسته له هغه، چې هغه "ځلور کسیزه ډله" په دې تورنه کړه، چې په وار وار یې د خپل صدراعظم د وژلو کوښښ کړی، له یوه مانا لرونکي ځنډ نه وروسته وویل، چې "له توطیه ګرو سره د افغانستان د دوست هېواد سفیر ا.م.پوزانوف له خوا مرسته شوې." دا یې هم وویل، چې "پوزانوف له تره کي سره مرسته وکړه، چې صدراعظم په تلک کې ګیر کړي." د شاه ولي بل تور دا و، چې د شوروي سفارت هغې "ځلور کسیزې ډلې" ته پناه ورکړې او سفرنچوک دغه تورونه په ټینګه رد کړل او شاه ولي یې وپوښته، چې "دی ددې درک کوي چې تورونه به یې له شوروي اتحاد سره د افغانستان په اړیکو باندې په نه جبران کونکي ډول ناوړې اغېزې وکړي." [60] سره له دې

هم شاه ولي د افغانستان په چارو کې د لاسوهنې له لامله د اخطار په ډول له شوروي حکومت نه په رسمي ډول وغوښتل، چې پوزانوف بېرته و غواړي او پرځای یې بل سفیر واستوي[61]. پوزانوف، چې په 1972 کې کابل ته د سفیر په توګه راغلی و او د شوروي یو ډېر مهم سفیر پېژندل شوی و، د نومبر په نولسمه له افغانستان څخه ووت.

پوزانوف د تره کي له مرګ نه وروسته د یوې بلې دندې په ترسره کولو کې هم پاتې راغی او هغه دا چې امین وهڅوي، چې کارمل خپل صدراعظم کړي. د زلمي خروټي په روایت ماما یې امین یوه ورځ ورته وویل، چې پوزانوف په دفتر کې یې ترڅنګه کېناست او ورنه یې وغوښتل، چې کارمل د خپل صدراعظم په توګه وټاکي، خو هغه سمدلاسه په مخ په څپېړه ووهه[62].

د غه څه ما دمخه په لږ توپیر سره د یوې بلې سرچینې له مخې په خپل کتاب کې هم راوړي. راوي دا هم ویلي و، چې په هغه سربېره امین په پښتو کې مارکس، لینن او بریژنیف ته سپکې سپورې هم ویلې[63]. د امین یو وزیر هم وایي، چې امین پوزانوف په څپېړه وهلی، خو نه غواړي چې نوم یې واخیستل شي. د ک.ج.ب یو راپور هم شاید د همدغې پېښې په اړه وي، چې پکې ویل شوي چې امین د اکتوبر په دیارلسمه د پوزانوف په اړه "د نه لیکلو ژبه استعمال کړې وه."[64]

د پوزانوف قضیه د هغه تر وتلو پورې اوږده او د امین لپاره په پای کې ټاکونکې شوه، چې زر به یې بیان و شي. دلته به د غومره وویل، چې شاه ولي د افغانستان د باندنیو چارو د وزیر په توګه د پوزانوف د نامطلوب کس د ښودلو لپاره د دیپلوماسۍ مقررو پرخلاف د نورو سفیرانو په مخ کې یوه ننداره جوړه کړه او د امین غبرګون، خو په واقع کې د سلیم عقل پرخلاف و. د سفیر پوزانوف سپکاوی د هغه د سیالانو په مخ کې او د هغه مخ په څپېړه وهنه داسې وه، چې

لکه په خپله شوروي اتحاد سپک شوی او په څپېړه وهل شوی وي. د کور به حکومت له خوا د باندنیو دیپلوماتانو وهل ناوړې پایلې لري. امین باید لږ تر لږه په بښنې غوښتنې سره د هغه تسکین کړی وای.

شوروي اتحاد د پوزانوف وهل کېدل په رسمي ډول یاد نه کړل، خو له هغه وروسته یې د امین او د هغه د حکومت په برابر کې خپل سیاست په اساسي ډول په پټه واړوه. په افغانستان باندې د هغه نظامي یرغل تر زیاتې اندازې دد غې پېښې له امله و، چې په بل اثر کې به په هغه پوره رڼا واچوم. په نامه د افغان_ شوروي جنګ دلته به د شوروي اتحاد په هغه غبرګون وغږېږم، چې د شاه ولي د خبرو په اړه یې وښود. درې ورځې وروسته له هغې پېښې )اکتوبر نهمه( پوزانوف، پاولوفسکي، ګوریلوف او بوګدانوف )د ایوانوف پر ځای( له امین سره د ماښام په شپږو بجو د هغه په دفتر کې ولیدل. ددې لپاره "چې د شاه ولي په وینا اعتراض وکړي او د هغې تردید وغواړي." شوروي خوا د شاه ولي روایت نه منه، ادعا یې کوله چې پوزانوف د سپتمبر په 14مه د تره کي له دفتر نه له امین سره په ټلیفون کې د ترجمان له لارې هېڅ خبرې نه دي کړي، خو امین د شاه ولي په وینا ټینګ ودرېد او د دوی ترمېنځ یو اوږد او غېر عادي بحث پیل شو، چې له هغه نه د امین شخصیت په داسې حال کې، چې د شوروي اتحاد د څلورو بېلو حکومتي څانګو له استازو سره په یواځې ځان غږېده، معلومېږي. هغه هم د هغې لیکنې له مخې، چې د شوروي استازي بوګدانوف له خوا تهیه شوې او هغه په اصل کې د امین مخالف و.

په هر حال، دغو استازو وویل چې دی "باید په دې پوه شي چې د شاه ولي ویناوې چې حقیقت یې اړولی، نه یواځې د هغو وروري اړیکو نقض کوي، چې زموږ د ګوندونو او هېوادونو ترمنځ موجود

دي، بلکې هغه به په حتمي ډول زموږ د دښمنانو له خوا وکارول شي، چې د افغان انقلاب داعیه له خطر سره مخامخ کړي او له هغو نه به زموږ د دښمنانو له خوا د افغان_ شوروي د اړیکو د بې اعتباره کولو لپاره کار واخیستل شي." نو "موږ ټینګار کوو، چې د افغان کوم صلاحیت لرونکی استازي د سوشلستي هېوادونو سفیرانو ته د پېښو رښتینی بیان وکړي او هغه ناسمه انتباه سمه کړي، چې د شاه ولي له وینا څخه به ارومرو پیدا شوې وي."[66] امین په ځواب کې وویل، چې دی به د پروتوکول پروا ونه کړي او له شوروي ملګرو سره به لکه یو ملګري وغږېږي او هیله کوي، چې شوروي ملګري به هم همدغسې وکړي. "...تاسې شکایت کوئ او اندېښنه ښکاره کوئ، خو هغه دمخه ویل کېدلی شول. موږ له هغه وخت نه تراوسه ډېر غږېدلي یو، خو تاسې دمخه ددغو موضع ګانو په اړه هېڅ نه دي ویلي. هغه څه چې د شاه ولي له خوا د سوشلستي هېوادونو سفیرانو ته وویل شول، ددې لپاره وویل شول چې هغه د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند د مرکزي کمېټې پولټبورو ته په څرګند ډول ویل شوي و، خو زموږ ] شوروي[ ملګرو موږ ته هېڅ ونه ویل او حتی تاسې اوس درې څلور ورځې وروسته له هغه راغلي یئ، چې شاه ولي غږېدلی دی. دا د افسوس ځای دی. زموږ شوروي ملګرو باید موږ ته ویلي وای، چې څه ووایو او څنګه عمل وکړو."[66] وروسته له هغه، چې دغه شورویان په هماغه ډول بیا وغږېدل، امین کړه چې "زه یقین لرم چې خبره دغسې نه ده. د تره کي له خوا تلیفون وشو، پوزانوف د ترجمان په وسیله وویل، چې امین تره کي ته راتللی شي او دا چې په امین باندې به ډزې ونه شي." لکه چې دمخه ویل شوي، د ک.ج.ب پخوانی چارواکی موروزوف هم د امین په ملاتړ وایي، چې "د تره کي ټینګار ته په تسلیمېدو سره هغه موافقه وکړه، خو له پوزانوف

نه يې د خپل مصؤنيت ضمانت وغوښته. وروستي په تلفون کې دغه ضمانت امين ته ورکړ. "(67)

د ک.ج.ب په راپور کې دا هم راغلي، چې امين وويل، چې "په دفتر کې له ما سره افغان ملګري وو، چې زما خبرې يې اورېدلې. البته اوس ممکنه ده له هغه نه انکار وشي. زه اماده يم چې د شوروي ملګرو خاطر وساتم. موږ تل حاضر يو د ديپلوماسۍ او بين المللي اړيکو په اړه د شوروي ملګرو مشورې ومنو." امين دا هم وويل، چې په دغې موضوع چې هغوی غواړي ما ووژني، ما ملګري ايوانوف او بوګدانوف خبر کړل او که دغه موضوع د هغو ملګرو له ياده وتلې وي، چې له تره کي سره ناست وو، د ترجمان به په ياد وي، ځکه چې زه له هغه سره وغږېدم. دغه شخص به د.پ اوربکوف په نامه د پوزانوف ترجمان وي. امين بيا هغو شورويانو ته وويل، چې زه په خپل روايت ټينګ ولاړ يم او "شاه ولي د هېڅ شي ګرم نه دی." که زموږ ګوندي پلينوم ته زما وينا رښتيا نه وي "بيا نو ټوله ملامتي په ما راځي، ځکه چې دغه ټولې پېښې ما د خپلو درکونو له مخې رواني کړي، خو که زما قسمت وي، چې مړ شم زه به په ځرګند وجدان سره مړ شم، ځکه چې هر څه ما د خپلو درکونو پر بنسټ وکړل." امين بيا هغوی ته د نه باورکولو وړاندېز وکړ. په دې ډول، چې "که زما د شوروي ملګرو خوښه وي، زه به د افغانستان خلق دموکراتيک ګوند د مرکزي کمېټې پلينوم راغواړم او د عمومي منشي له مقام نه به ځان ګوښه کړم او پرې به ږدم، چې يو بل څوک غوره شي." داسې ښکاري، چې امين غوښتل دغو شورويانو ته ليکچر ورکړي او تر تاثير لاندې يې راولي. زياتره به خپله غږېده او هغو ته يې د خبرو کولو لږه موقع ورکوله او څه وخت، چې هغو ټينګار وکړ، چې پېښې بايد هغسې وويل شي، چې پېښې شوې وي، امين وويل چې

"زه باید خپل ملګري راوبولم او ورته ووایم، چې هر هغه څه چې دوی اوریدلي، هغه نه و چې په رښتیا پېښ شوي وو. البته زه د خپلو شوروي ملګرو در ناوی کوم. زه حاضر یم د غه کار و کړم، خو ایا هغه به سم کار وي؟ آیا دا به سمه وي، چې هغه وړې خپرو نې بېر ته و غواړم، چې په ګو ند او پوځ کې ویل شوي په نامه د تره کي له خوا د حفیظ الله امین پر ژوند باندې عمل کول او د نابریالي توب؟ په د غو خپرو نو کې واقعیتو نه په هما غه ډول بیان شوي. هغه به د عمومي مذشي په حیث ما او ټول ګوند ته زیان ورسوي." امین د خبرو په دوام کې دا هم وویل، چې "که تاسې غواړئ موږ به په د غه اړه نورو ته بل هېڅ ځیز و نه وایو، موږ پوهېږو چې شوروي لو یان اندېښمن شوي دي، موږ په دې کې هېڅ ستونځه نه وینو، که څه هم د غه قصه خورا مهمه ده. تېروتنې او ناسم پو هاوی به شوی وي. زه په دې باور لرم، چې زما درکو نه سم دي، خو زه په عین حال کې د خپلو شوروي ملګرو د درکو نو در ناوی کوم. زما په نظر که تاسې غواړئ تاسې کولی شئ، خپل نظر په څرګند ډول بیان کړئ او د هغو څلورو وزیرانو وطنجار، ګلابزوی، مزدوریار او سروري په اړه زموږ ویناوې رد کړئ."

امین د شوروي استازو دد غې وینا په ځواب، چې د شاه ولي له وینا نه به د افغان_شوروي د دوستۍ دښمنان استفاده وکړي، وویل چې "مه وېر ېږئ! پر ېږدئ، چې له وا شنګټن نه خلک را شي او په خپله ووینې، چې زموږ دوستي زیانمنه کولی نه شي. زموږ د ښمنان خپه دي او دوی هېڅ هیله نه لري. زه تاسو ته وعده در کوم، چې موږ د کمونزم په لور درومو. د افغان او شوروي خلکو د دوستۍ او وروري او د دواړو هېوادونو د کمونستي ګوندونو په اړه باید هېڅ اندېښنه نه وي." امین دا هم وویل، چې که د افغان خوا د شاه ولي موضوع بېر ته واخلي، په ګوند او هېواد

باندې به ناوړه اغېزه وکړي. "دوی به ووايي، چې د هغې تکذيب د شورويانو په فشار شوی دی... که په دې اړه څه پوښتنې وي، تاسې ووايئ، امين وپوښتئ، هغه به هرڅه درته ووايي، تر هغه ځايه چې په موږ پورې اړه لري، موږ به رسنيو ته په خپلو خبرو ټينګ ودرېږو، خو که موږ بېرته اخيستل پيل کړل، ډېرې خبرې به بيا تربڼه راووځي. په ګوند کې به هغوی ووايي، چې زه څه ډول قومندان وم، چې هغوی مې وغولول او په هغه سربېره زه به له خپلو عقيدو نه وا نه وړم او زما شوروي ملګري به دا و نه غواړي، چې زه له هغه څه نه تېر شم، چې پرې عقيده لرم. دا به د کمونست لار نه وي، خو که ضرور شوه، زه حاضر يم تسليم شم او د خپلو عقيدو پر ضد عمل وکړم، خو دا به په دې مانا وي، چې زه له خپل وجدان نه تېر شوی يم. ددې لپاره، چې زه له خپلو عقيدو نه واوړم، بايد له منځه لاړ شم." په پای کې امين وويل، چې "... حاضری دی هغه څه وکړي چې شوروي ملګري يې غواړي که څه هم هغه به د هغه د غوښتنو پرخلاف وي، خو ښه به دا وي چې شوروي ملګري د هغه امين، له نظر څخه خبر وي او د هغو پر بنسټ خپلې پريکړې وکړي.[68] " دغو خبرو نژدې دوه ساعته وخت ونيوه. په ياد دې وي، چې که هغه په خپله افغانانو ثبتې کړي وای، محتويات او د بيان طرز به يې متفاوت وای، خو دلته هم ليدل کېږي چې امين هم په خپل او هم د شاه ولي په روايتونو ټينګ ودرېد او مقابلې خوا ته يې نه کوم امتيازونه او نه د هغې خوښ ساتلو لپاره غوړې خبرې وکړې. البته شوريانو ته يې د ښو اړيکو لرلو وعده ورکړه او په دې خامې طمع هم کړل، چې افغانستان د کمونزم په لور روانېږي. ددغې مباحثې غټه پايله شايد دا وي، چې تره کي په همدغه ورځ له منځه يووړل شو، بې له دې چې په دې اړه شورويانو ته څه ويل شوي وي. شورويان له دغو خبرو نه ناراضه

ووتل. دغه ناراضي توب د بوګدانوف په هغه راپور کې څرګند دی، چې یې خپل مرکز ته مخابره کړه او پکې وویل، چې "حفیظ الله امین ددغو خبرو په بهیر کې بې پروا او پارونکی و. ځینې وخت یې خپل غضب په سختۍ سره کنټرول کولی شو. د شوروي استازو په څبرو کې به ولوېد او چانس یې ور ته نه ورکاوه، چې خپل نظر په ارام ډول بیان کړي. په عین حال کې دغسې شېبې هم وې، چې ښکارېده خپل فکرونه راټولوي او د غه انتباه یې ورکوله، چې نه غواړي ]له شوروي اتحاد سره[ خپلې اړیکې خراب کړي."[69] امین هم درک کړې وه، چې شوروي لویان یې په خبرو سره ناراضه شوي او د شوروي دغو استازو له امین سره په بلې لیدنې کې د اکتوبر په دیارلسمه ویلي وو، چې شوروي مشران نه غواړي دغه موضوع په همدغه حال پاتې وي[70].

له بلې خوا امین د خپلو نژدې ملګرو په مخ کې پوزانوف په مشخص ډول "دروغجن" وباله، په دې ډول چې "زه پوهېږم چې دا ممکنه او ضرور وه چې د هغې تنظیم شوې توطیې ځینو اړخونو ته تفصیل ورکړم، چې زما په ژوند شوې وه، بې له دې چې زموږ د دوستۍ په خاطر چې زموږ لوی هدف دی، د شوروي اتحاد حیثیت زیانمن شي، خو څه وخت چې سفیر پوزانوف ما ته په نېغه دروغ وویل او کوښښ یې کاوه، چې ما قانع کړي، چې د خپل ترجمان له لارې یې نه وم غوښتی... په هغه وخت کې چې دی له تره کي او جنرالانو پاولوفسکي، ګوریلوف او ایوانوف سره ناست و، بیا نو زه نه شم کولای، چې د هغه په اړه د هرڅه له ویلو نه ډډه وکړم. زه نه غواړم ورسره ووینم او وغږېږم. ګرا نه ده، چې پوه شم دغه دروغجن او بې تدبیره څنګه د اوږدې مودې لپاره سفیر پاتې وی، ماته ښه نه ښکاري، چې د شوروي سفیر... کوښښ کوي چې د سپتمبر څوارلسمې پېښې په بل ډول وښيي او بیا له مانه و غواړي، چې زه دغه دروغ تایید کړم. زه به هېڅکله دغسې ونکړم."[71]

له هغه وروسته و، چې د ک.ج.ب پروپاګنډې ماشين په خاص ډول د امين پر ضد چالان شو. دغه ماشين دغسې ويل پيل کړل، چې په افغانستان کې شوروي پلوه افغانان ځپل کېږي، له پاکستان او امريکې سره د شوروي اتحاد په تاوان اړيکې ښه کېږي، په حکومتي هڅونې سره شوروي ضد تبليغونه کېږي او له اسلامي بنسټپالو سره د ائتلاف خبرې هم کېږي. د شوروي اتحاد حکومت سره له دې هم خپلو چارواکيو ته هدايت ورکړ، چې له امين او چارواکيو سره يې د پخوا په شان چلند وکړي او متوجه اوسي، چې امين او نور د شوروي په سياست شکمن نه شي. د هغو د غولولو په مقصد شورويانو د امين ټولو هغو غوښتنو ته مثبت ځواب ورکاوه، چې يې د افغانستان ته د ډول ډول مرستو لپاره کولې، خو د دسمبر 12نه وروسته، چې د شوروي ګونډي پولټبورو په افغانستان باندې د يرغل پرېکړه وکړه. کوښښ دا شو، چې شخص امين په کوم ډول سره له مېنځه يووړل شي او که دغه کار ونه شو، بيا دې په افغانستان باندې وسله وال يرغل وشي. دغه ټولې موضوع ګانې ما په يوه بل اثر کې څېړلي په نامه د افغان_شوروي جګړه. اوس به دلته په پاتې پاڼو کې له پاکستان او امريکې سره د امين د واکمنۍ په بهير کې اړيکې تر بحث لاندې ونيول شي او دغه اثر به ختم شي.

# له امريکې سره اړيکې

د امريکې متحدو دولتونو حکومت په کال 1934 کې افغانستان په رسمي ډول وپېژنده، خو په کال 1943 کې يې د دويم نړيوال جنګ په بهير کې ور سره اړيکې ټينګې کړل او په کابل کې يې خپل سفير هستوګن کړ. امريکا د پاچا امان الله په وخت کې د هغه خاص استازي محمد ولي وړاندېز نه و منلې، چې د دواړو هېوادونو د اړيکو د ټينګولو لپاره واشنګټن ته په سفر تللی و. امريکې هغه وخت له افغانستان سره علاقه نه ښودله او افغانستان يې د برتانوي هند تر نفوذ لاندې

هېواد ګڼله، که څه هم افغانستان په کال 1919 کې پوره خپلواک هېواد شوی و. څنګه چې امریکا یو لوی شتمن او پرمختللی هېواد و او افغانستان د شوروي اتحاد او برتانوي هند ترمېنځ پروت و، افغان چارواکیو کوښښ کاوه د امریکې علاقه افغانستان ته راواړوي او په انکشافي پروجو کې یې برخه واخلي، چې د هلمند ناوې د زراعتي انکشاف پروجه یې یوه څرګنده بېلګه ده، خو د شلمې پېړۍ په پنځوسمې لسیزې کې د دواړو هېوادونو باندني سیاستونه په بېلا بېلو لارو روان شول. په دغه وخت کې امریکې د ولسمشر ایزنهاور په دوره کې د شوروي اتحاد شاوخوا د دفاعي نظامي تړونو نه رامېنځ ته کړل او نوی هسک شوی پاکستان په دوو دغسې پکتونو کې ګډ شو او په دې ډول یې له امریکې سره خاص اړیکي پیدا کړل، په داسې حال کې چې افغانستان له شوروي اتحاد سره د چم ګاونډیتوب او د خپل جغرافیيوي موقعیت او اقتصادي حال له امله د مثبت ناپېیلتوب سیاست غوره کړ. مطلب دا و، چې افغانستان به د شوروي اتحاد په مشرۍ او د سوشلستي کامپ او د امریکې په سروالۍ له لویدیځ کامپ سره د ناپېیلو هېوادونو د غړي په توګه دوستي کوي، خو امریکې د پښتونستان په کشاله کې د پاکستان خوا ونیوله او ددغه متحد په خاطر حتی ددې خنډ شوه، چې افغانستان د امریکې له وسله جوړونکیو فابریکو نه وسلې په بیه واخلي او خپل پوځ پرې پیاوړی او عصري کړي، خو امریکې په نورو برخو کې له افغانستان سره خپلې دوستۍ ته دوام ورکړ او یو څه مرستې یې هم ور سره وکړې، په تېره د پوهنې په ډګر کې [(72)].

دا هغه وخت و، چې د شوروي اتحاد سروال نکیتا خروشچف د سوله ییز ګډ ژوند په نامه د ستالین د دورې پرخلاف یو نوی نړېوال سیاست غوره کړ او د هغه له مخې یې د درېیمې نړۍ له

پرمختیايي هېوادونو سره د سولې او همکارۍ چلند پیل کړ. ددغه نوي سیاست په رڼا کې د صدراعظم محمد داود په وخت کې د افغان_ شوروي په اړیکو کې څرګند انکشاف راغی. په کال 1956 کې خروشچف او صدراعظم مارشال بولګانین افغانستان ته د رسمي سفر په بهیر کې د پوځ د عصري کولو او د پرمختیايي پروجو د عملي کولو لپاره کریدتونه او مرستې ومنلې، چې حجم یې د وخت په تیر بدو سره وار په وار ډېر بده. شوروي چارواکیو دغه مرستې بې غرضه ښودلې، خو له هغو نه د خروشچف اصلي مقصد داو، چې افغان حکومت به امریکې ته اجازه ورنکړي، چې هلته نظامي هډې جوړې کړي، چې په هغه حال کې به شوروي اتحاد مجبور نه وي، په منځنۍ اسیا کې متقابل ترتیبات ونیسي او که مجبور شو، بیا به دومره ډېر لګښتونه وکړي، چې له افغانستان سره د شوروي ټولې مرستې به "د سمندر د یوه څاڅکي" په اندازه وي[73]. په هر حال، د شوروي ددغو مرستو او له افغانستان سره د شوروي اتحاد د ښو اړیکو پایله په افغانستان کې د کمونستي حرکت ټوکېدل او د ثور کودتا شوه، چې دمخه یې بیان شوی دی.

د ثور په کودتا سره امریکا په افغانستان کې څو ګامه وروسته پاتې شوه او د هغې پرخلاف شوروي اتحاد په افغانستان کې تر هر بل وخت نه ډېر ښکېل شو. سره له دې هم د خلقي حکومت او امریکې ترمېنځ اړیکې پر ځای، خو ساړه وو، خو دغه ساړه اړیکي هم د 1979کال د فبرورۍ په څوارلسمه ناڅاپه خړې پړې شول. په دغه ورځ په کابل کې د امریکې سفیر اډولف ډبس ( Adolf Dubs )، چې د معمول په شان په موټر کې د سفارت په لور روان و، د څلورو کسانو له خوا ونیول شو د کابل هوټل په یوې کوټې کې بندي شو. دغه ترښتونکي ستمي ډلې ته منسوب و ښودل شول، چې د سفیر د ازادولو په بدل کې یې له حکومت نه د

خپل مشر بهرالدین باحث ازادول غوښتل. په داسې حال کې، چې هغه کلونه دمخه د بدخشان په درواز کې د الله ګولي په تور بندي شوی او 1978 کال په اوړي کې علي آباد روغتون ته د علاج لپاره بستري شوی او له هغه ځایه د ملګرو په مرسته تښتېدلی او بیا نیول شوی او له مېنځه وړل شوی و.[74]

اوس پوښتنه دا ده، چې د غه ډبس تښتونکي و لې ددغې یوه کس ازادول وغواړي، چې پوهېدل هغه دمخه له مېنځه وړل شوی و؟ دغه پوښتنه په دې هم پر ځای ده، چې دغه انسان تښتوونکي د ک.ج.ب په راپورونو کې ماوستان ښودل شوي، نه ستمیان.

په هر حال، د میتروخین په روایت "امین د ک.ج.ب د مشاورو په مشوره افغان ضربتي ډلې ته، چې په کلاشنکوفونو سمباله وه او د شوروي مرمي ضد کرتۍ یې په ځان وې، د ډزو امر وکړ. د لنډې مودې په ډزو کې، چې وشوې د بس او دوه انسان وژونکي ووژل شول، دریم یې ونیول شو او څلورم یې وتښتېد. ک.ج.ب بیا ددې لپاره، چې تر هغو په اغېزناک ډول ممکن وي، په پټولو لاس پورې کړ، چې په دغو عملیاتو کې خپله ونډه او د ډبس په وژنه کې خپل مسؤلیت پټ کړي. د امریکې امنیتي ماهران، چې هوټل ته ورغلي وو، پرې نه ښودل شول چې له هغې کوټې نه د ګولیو پوچاقي ترلاسه کړي. دغه ګوریلایان په درې توپنګچو سمبال وو، کلاشنکوف ته ورته یو ټوپک چې اصل یې معلوم نه و، په کوټې کې واچول شو، چې وښیي هغو په هغه سره سفیر وژلی دی. امریکایانو ته ددې لپاره چې له هغو دوو ژوندیو ګوریلایانو نه پوښتنې کولی ونه شي، وویل شول چې څلور واړه یې په ډزو کې وژل شوي دي. په واقع کې نیول شوي ګوریلایي له تښتونې نه وروسته په هغه شپه کې ووژل شو، لکه هسې چې هغه بندي ووژل شو، چې په غلطه یې ادعا شوې وه، چې تښتېدلی دی. ددې لپاره چې امریکایانو

ته وښودل شي څلور جسدونه پوره شول، په افغان ورځپانو کې د دريېو اصلي ماوستانو او يوه جعلي ماوست عکسونه خپاره شول. د او ساد چې په غوښتنه چې په کابل کې د ک.ج.ب آمر و، امين او وزيرانو يې د خواخوږۍ د څرګندونې په وخت کې امريکايانو ته وويل، چې دوی يوازې په خپل نوښت عمل کړی او شوروي مشاوران پکې دخيل نه وو. (75)"

حقيقت چې هر څه و، په اصل کې په تښتوونکو باندې ډزې کول د سليم عقل مخالف کار و، هغوی محاصره وو او تښتېدلی نه شول. غوره لار له هغو سره د خبرو وه، نه د ډزو چې په هغه حال کې د يرغمل ژوند هم په خطر کې کېده، لکه چې همدغسې وشول. ک.ج.ب ممکن همدغه څه غوښتل، ددې لپاره چې د سفير په وژل کېدلو سره له امريکې سره د افغان حکومت اړيکې خراب شي، نو ځکه د امريکايانو دغه ورانديز و نه منل شو، چې له تښتوونکيو سره دې خبرې وشي. په دې اړه د امريکې يوه ديپلومات د خپل حکومت انديښنه په دې ډول ښکاره کړه، چې "کوم څه چې د سفير ډبس د تښتولو په قضيه کې موږ نارام کړو، هغه ددغې کشالې په حل کولو کې د افغانستان دموکراتيک جمهوريت د پوره همکارۍ يا حتی د مشورې نه شته والی و." دغه نه همکاري شاه ولي هم تاييد کړې، په دې ډول چې "ځينې پېښې وشوې، چې د افغانستان دموکراتيک جمهوريت نه غوښتل. د افغانستان دموکراتيک جمهوريت خپل نهايي کوښښ وکړ، چې ثابته کړي دغه پېښې د هغه له کنټرول نه وتلې وې. (76)" په دغې پېښې سره د ملي ستم ډله د لومړي ځل لپاره په ملي او بين المللي سطح کې وپېژندل شوه او له امريکې سره د افغانستان اړيکي خړې پړې شول... د امريکې حکومت له کابل نه خپل ديپلوماتان واپس ستل او وروسته ولسمشر جمي کارټر د امريکې د کانګرس دغه لايحه قانوني کړه، چې پکې ويل شوي و، چې

ترهغو چې خلقي حکومت بېښنه ونه غواړي او د سفير ډبس په مرګ کې خپل مسؤليت ونه مني، ورسره به مرسته ونه شي[77]. د امريکې حکومت د ثور تر کودتا پورې د افغانستان د اقتصادي او ټولنيزو چارو د پرمختيا لپاره هر کال شل مليون ډالرو ورېا ورکول، په ټوليز ډول په دغې پېښې سره خلقي حکومت له امريکې نه ليرې او په شوروي اتحاد نور هم متکي شو.

د ډبس له مرګ نه وروسته د امريکې سفارت او خلقي حکومت ترمېنځ ليدنه کتنه تر اخري حده پورې لږه شوه، خو ترمنځ يې د خبرو ور خلاص و. د امريکې سفارت د لږو غړو لپاره د افغانستان د جاري وضع او په تېره دشوروي اتحاد د چلند په اړه د معلوماتو ټولول او له افغانستان سره د باندنيو ديپلوماتانو او حکومتونو د سياستونو اندازه نيول، د دوی مهمه وظيفه شوه او دا د هغه سفارت چارج دافر بروس امستونز مسؤليت شو. امستونز په خاص ډول له سفرنچوک او د ختيځ جرمني له سفير هرمن شوای سا سره ډېر ليدل. هرمن هم د سفرنچوک په لار په ټينګه روان و او دواړو په ديپلوماتيکي کړيو کې دغسې فکر پيدا کړی و، چې د سفرنچوک فکر په هر ډول چې وي، عملي شي حتی که په کودتا سره هم د امين ليرې کول او پرځای يې د کارمل راوستل وي.

امستونز لا د جون په مياشت کې سفرنچوک ته په ډاګه کړې وه، چې "د افغانستان په اړه د امريکې سياست له پخوا نه دا و، چې په سيمه کې ثبات خوندي وي. موږ غواړو، چې افغانستان له خپلو ګاونډيو سره په سوله کې وي، نه يواځې له شوروي اتحاد بلکې له ايران، پاکستان او چين سره هم." د هغه په راپور کې دا هم راغلي، چې "ما سفرنچوک ته وويل، چې د سيمې د ثبات د خوندي ساتلو په اړه د امريکې سياست له مخې موږ هيله لرو، چې افغانستان به زموږ دوو هېوادونو ترمېنځ د مقابلې ډګر نه وي."

سفرنچوک موافقه وښودله، خو سره له دې هم امستونز د اخطار په ډول ور ته څرګنده کړه، چې "که شوروي اتحاد افغانستان ته خپل پوځ واستوي، دا به د امریکې او شوروي اړیکې ډېر پیچلې او زیانمن کړي.[78]" خو دا او دغسې نور اخطارونه، چې یو وخت بل وخت شورویانو ته ور کول کېدل، موثر ثابت نه شول. افغانستان د شوروي اتحاد چم ګاونډی او تر ټینګ نفوذ لاندې هېواد و او په لږ وخت کې یې نظامي یرغل پرې کولی شو. د سپتمبر د پېښو په وخت کې، چې د افغانستان په چارو کې د شوروي اتحاد قوي لاس ښکاره شو، د امریکې د سي.ای.ای سروال ترنرد خپل حکومت ملي امنیت شورا ته څرګنده کړه، چې شوروي اتحاد شاید په افغانستان کې اوس تر هر بل وخت نه ډېره غټه مداخله وکړي.[79]" د سپینې ماڼۍ د ملي امنیت سروال بریژنسکي هم له سپتمبر نه تر دسمبر پورې ټینګار کاوه، چې په افغانستان کې دې د شوروي اتحاد د دخیل کېدلو په اړه خپرونې پراخې شي، خو د بادندیو چارو وزارت په دې اړه چندان علاقه نه ښودله. سره له دې هم یوه ویاند یې د سپتمبر په نولسمه څرګنده کړه، چې "د افغانستان په دننیو چارو کې امریکا د هرې مداخلې مخالف ده." نورو مامورانو یې هم "په وار وار شوروي حکومت ته د هغو خطرونو یادونه کوله، چې په افغانستان کې به جنګ د نورو له نېغ دخیل کېدلو نه راولاړ شي.[80]" خو لکه چې وروسته به ولیدل شي، د نومبر له اولو نه وروسته د ایران د نوي حکومت له خوا د امریکایي مامورانو برمته کول نور هر څه تر سیوري لاندې ونیول. غېر له هغه هم امریکایي چارواکي په دې فکر وو، چې له بادندې نه د افغانستان په چارو کې لاسوهنه به شوروي حکومت مداخلې ته وهڅوي او حتی په حقه به یې کړي، نو یې دغه هڅه پیل کړه چې د سیمې هېوادونه په دغه نظر کړي، چې "د ورځې موضوع د

شوروي د لويې غوښتنې شنډول وي، نه له پخوانيو سيمه ييزو دښمنيو نه ګټه اوچتول." په عين حال کې د امريکې حکومت په دې فکر شو، چې په سيمې کې به "د امريکي غټ نظامي شتون مناسب وي، چې پاکستان او د خليج سيمې لپاره ملاتړ وښودل شي."[81] ددې مانا دا کېده، چې د شوروي حکومت په افغانستان کې د عمل آزادي لري او د امريکې حکومت به يې پر ضد عمل ونه کړي. د همدغه فکر له مخې به و، چې په افغانستان باندې د شوروي د يرغل په وخت کې د امريکې نظامي قوه د ديګوګارسيا په ټاپو کې ځای پر ځای شوه.

امين له خپل سروال کېدو نه وروسته په دغه کوښښ پيل وکړ، چې په داسې حال کې چې افغانستان له شوروي اتحاد سره خاص اړيکې لري، له نورو هېوادونو سره هم بايد اړيکي ولري. ده غوښتل له ټولو هېوادونو سره انډوليز سياست پرمخ بوځي. مؤلف براډ شير وايي، چې امين غوښتل په باندني ډګر کې د موسی شفيق او محمد داود په لار روان شي، چې مانا يې "غېر کمونستي ګاونډي ته مخ اړول و، ددې لپاره چې د شوروي نفوذ لږ او متوازن کړي."[82] له "غېر کمونستي" هېواد نه مطلب پاکستان دی، چې وروسته به پرې بحث وشي.

د باندنيو چارو وزير شاه ولي، چې د ملګرو ملتونو په عمومي اسامبلې کې د ګډون لپاره د سپتمبر په 27مه نيويارک ته لاړ، هلته يې په يوې خاصې ناستې کې د امريکې د باندنيو چارو مرستيال وزير "نيوسم ته ډاډ ورکړ، چې د هغه حکومت خپلواک دی، د بل حکومت يا ګوند تر نفوذ لاندې نه دی." هغه دا هم وويل، چې "افغانستان د ناپېيلي غورځنګ رښتينی غړی دی او غواړي خپل سياست پرمخ بوځي." نيوسم هم وويل، چې غواړي د دواړو هېوادونو ترمېنځ د پوهاوي او مخابرې لار خلاصه وي او خوښ دی، چې امين په همدغه ورځ زموږ چارج دافر خپل حضور ته بللی او هيله

کوي، چې دا به د دواړو هېوادو نو په اړیکو ښه اغېزه وکړي[83]. د امستونز په وینا امین هغه ورځ "ټول سحرا او ملګرتوب" و او د امریکې له حکومت سره د ښو اړیکو په پلوي وغږېد[84]. له هغه وروسته امریکې له افغانستان سره یو څو وړې مرستې هم وکړې: آریانا هوایي شرکت ته یې یوه مسافر وړونکې الوتکه ورسوله، د څو اطرافي ښوونځیو او روغتیایي مرکزونو د جوړولو د لګښتونو د بېرته تادیه کولو موده یې اوږده کړه او په کابل کې یې د عاجل ضرورت د رفع لپاره د دوه سوو ټنو د غنمو د نقل ترتیب ونیول شو. وروسته د امریکې حکومت له دهلي نه د خپل سفارت نایب سفیر آرچر بلډ کابل ته په څرګند ډول ددې لپاره ولېږه، چې د امستونز پر ځای، چې په رخصتۍ تللی و، کار و کړي خو د هغه د سفر اصلي مقصد له امین سره خبرې کول و.

امین له بلډ سره د اکتوبر په 27مه یو ځل ولیدل، دوام یې یو ساعت و. امین له امریکې سره د اړیکو ښه کېدل او له افغانستان سره د امریکې مرسته وغوښتله، خو بلډ "ورته وویل چې تر هغو چې د ډبس په وژنه کې د خپل رول په اړه موږ قانع نه کړي، دوی د هغو هیله کولی نه شي." بلډ ددغې ناستې په اړه وروسته وویل، چې "زه یو څه وهڅول شوم، چې د وخت په تېرېدلو سره به موږ سره جوړ شو چې که موږ د ډبس یاد له ذهن نه وباسو. هغه ]امین[ ټینګ ایډیالوګ نه و. ماته دغسې یو کس معلوم شو، چې په سخت حال کې دی، ټینګ دی او کوښښ یې کاوه چې ژوندی پاتې شي.[84الف]" امین چې هرڅه بلډ ته ویلي دي، د هغه له اشارو څخه معلومېده، چې له مسکو نه وېرېده. بلډ ته یې ویلي و، چې "دی فکر نه کوي تر ډېرې مودې ژوندی وي.[85]" خو په دغه حال کې هم دی د افغانستان په خپلواکۍ تر دې حده ټینګ ولاړ و، چې بلډ ته یې ویلي وو، چې "که په خپله

بریژنیف ورنه وغواړي چې د افغانستان د خپلواکۍ پر ضد کوم عمل وکړي.... دی به په دې کې ټکنی نه شي، چې خپل ژوند ددغسې غوښتنې پرخلاف قربان کړي.[86]" خو د امین له کوښښونو سره د امریکې حکومت له ځای نه وښوریږد. د باندنیو چارو وزیر سایریس وانس لاوویل، چې "موږ چې ډېر وکړو له افغانانو سره به په دغه جاري دیالوګ کې د لږو لانجمنو اړیکو امکانات ولټوو او موږ په دې هم باور نه لرو، چې دغه محدود مقصد به پرځای پاتې وي.[87]" لکه چې دمخه وویل شول، د امریکې حکومت خلقي حکومت څه، چې په خپله افغانستان یې هم د شوروي تر نفوذ لاندې هېواد او په خپله امین "کمونست" او زورواک واکمن ګڼله، نو یې نه غوښتل د شوروي له منګولو نه یې وژغوري او په اړه یې کوم عمل وکړي.

په دغه وخت کې د امریکې ټینګه توجه ایران ته وه. هلته د روح الله خمیني په سروالۍ د ایران نوی حکومت، چې د 1979 په جنورۍ کې یې د محمد رضا شاه پهلوي پاچاهي نسکوره کړې وه، د همدغه کال په نومبر کې د امریکې د سفارت 66 تنه ماموران برمته کړي و. د کارتر حکومت، چې په دې اړه هر څه وکړل، خپل چارواکي یې خلاصولی و نه شول. د غه کوښښونه د ولسمشر ریګن په وخت کې د 1981 کال په جنوري کې بریالي شول او برمته شوي امریکایان ازاد شول، نو کابل ته د امستونز په بېرته راتګ سره د شوروي اتحاد تر یرغل پورې د امین او امریکایي چارواکیو ترمېنځ د یادونې وړ لیدنه کتنه نه ده شوې، خو امین د نومبر په شلمه له مولفې ریه ستیورت سره په کابل کې په یوې مرکې کې وویل، چې غواړي د امریکې نوی سفیر کابل ته راشي. امین د نومبر په شلمه د لاس انجلس ټایمز او واشنګټن پوسټ خبریالانو ته په یوې مرکې کې دا هم وویل، چې "موږ غواړو د امریکې متحده دولتونه ددغې

سیمې چارې په واقع لیډونکي توګه تر کتنې لاندې ونیسي او پر هغه برسېره له موږ سره دوستي وکړي.[87 الف]

امستونز د نومبر په شلمه واشنګټن ته په یوه دیارلس مخیز تیلګرام کې د افغانستان د راتلونکي په اړه د څو احتمالي پېښو وړاندوینه وکړه، خو د شوروي د احتمالي یرغل په اړه یې کې څه نه و ویل شوي. د امریکې د باندنیو چارو وزارت هم ځانله زحمت ورنکړ، چې په منځنۍ اسیا کې د شوروي د پوځونو او وسلو په حرکتونو باندې په کابل کې خپل سفارت خبر کړي[88]. په دغه حال کې د امین لپاره دوه لارې پاتې وې: یوه دا چې شوروي لویان قانع کړي، چې د افغانستان په اداره کولو کې دې تر ټولو وړ شخص دی او بله دا چې له پاکستان سره خپل اړیکي ښه کړي.

***

# له پاکستان سره اړیکي

هغومره چې افغانستان له پاکستان سره ډېر اړخیز اړیکي لري، په نړۍ کې به یې بل دوه هېوادونه شاید سره و نه لري. یو دا چې د اصلي افغانستان یانې له اباسین نه تر هلمند پورې د کوښټې په ګډون غټه برخه په اوسني پاکستان کې نیول شوې، بله دا چې د ډیورنډ کرښې په دواړو خواوو کې په عمده ډول پښتانه قومونه پراته دي او دوی له لرغوني مهال نه وروسته په دغې مېنې کې اوسېدلي، خو دوی په رسمي ډول د ډیورنډ په کرښې سره بېل شوي، چې په 1893 کې د برتانوي هند حکومت له خوا د افغانستان امیر عبدالرحمن باندې تحمیل شوې وه.

په پاکستان کې د اصلي افغانستان د غټې برخې نیول کېدل و، چې د افغانستان اړیکي یې له هماغه اول سر نه ورسره ترخه کړل، یانې له 1947 نه وروسته، چې د هند لویه وچه په هند او

پاکستان وویشل شوه او پاکستان د یوه بېل هېواد په توګه سر پورته کړ. په ملګرو ملتو نو کې افغانستان یواځینی هېواد و، چې دد غې موضوع په سر یې د هغه د غړیتوب په وخت کې منفي رایه ورکړه. د ثور تر کودتا پورې د افغانستان او پاکستان اړیې دد غې کشالې یانې د پښتونستان په سر سره ترخه وو.

د ثور کودتا، چې په افغانستان کې یې شوروي پلوه حکومت په واک کړ، د پاکستان واکمن جنرال ضیاءالحق یې اندېښمن کړ. دی هم یو کال دمخه په 1977کې په نظامي کودتا سره واکمن شوی و. په دغه وخت کې د سوشلستي هېوادونو د کامپ د سروال په توګه د شوروي اتحاد وزن او حیثیت تر هر بل وخت نه لوړ شوی و. د ثور له کودتا نه دمخه د محمد داود د ولسمشرۍ په اخر وخت کې د افغانستان او پاکستان د اړیکو د ښه کېدلو په لور د لومړي ځل لپاره اساسي ګامونه اخیستل شوي وو[89]. ضیاءالحق "...له محمد داود سره د اړیکو د ښه کېدلو د موافقې په له منځه تللو او د پښتونستان او بلوڅو د کشالو په اړه د افغان تبلیغونو له سر نه نیولو اندېښمن کړی و. ضیاء پرېکړه وکړه، چې کابل ته لاړ شي او له لویانو سره یې وغږېږي." خو هغو د خبرو موضوع ځنډوله. هغه تېنګار وکړ او د سپتمبر په نهمه یې تره کي او امین په پغمان کې ولیدل. "ضیاء وړاندیز وکړ، چې په هرې موضوع به وغږېږي، چې افغانستان یې غواړي، تخنیکي مرستې ورکړي او مطیقن کړي، چې د تزائزیت لارې اسانې کړي. تره کي په ځواب کې له خپل عامه ملاتړ نه زیات او د مشخصو موضوع ګانو په اړه په مجمل ډول وغږېد. ضیاء اریان دریان ستون شو او د 1979 په مې کې یې افغانستان د شوروي تر لاس لاندې هېواد وباله او وویل، چې افغانستان نور نو حایل هېواد نه دی.[90]" له بلې خوا کابل د پښتونستان داعیه ټینګه ونیوله، نه یواځې په خبرو، په عمل سره

هم، چې زر به یې بیان وشي، په داسې حال کې چې د افغانستان پخوانیو حکومتونو ادعا کوله، چې پښتانه او بلوڅ دې ازادي ولري، چې د خوداراديت د اصل له مخې خپل سیاسي برخلیک په خپله وټاکي. امین د امو او اباسین ترمېنځ د افغانانو په یووالي ودرېد، تره کي او امین په دې ډول لوی افغانستان غوښته.

تره کي د دغه مسئله له بریژنیف سره هم یاده کړې او ورته ویلي و، چې افغانستان باید د هند تر سمندر پورې ور سېږي. پاکستان د هغه په نظر یو بېګانه وجود و او ویل یې چې "موږ باید د پاکستان پښتانه او بلوڅان د امپریلستانو په لاسونو کې پرې نه ږدو. اوس دغه امکان برابر شوی دی، ددغو قومونو ترمېنځ د ژغورنې جګړه شروع کړو او د پښتنو او بلوڅو سیمې په افغانستان کې ورګډې کړو.[91]" امین لا د 1978 په اګست کې پوزانوف او ګوریلوف ته څرګنده کړې وه، چې "د افغانستان سیمه باید د عمان د خلیج او د هند سمندر غاړو ته ورسېږي. موږ غواړو سمندر په خپلو سترګو ووینو." ده هم د تره کي په شان عمل غوښته او په بلې ناستې کې یې هغو ته وویل، چې "زموږ دنده دا ده چې خپل پوځي افسران او سرتېري او ټول افغانان د ډیورنډ د کرښې په لور چې موږ یې نه پېژنو او د اباسین په لور وهڅوو چې باید زموږ پوله شي. زموږ لپاره حتمي ده، چې د هند سمندر ته لار ولرو.[92]" امین امریکایي لیکوال هري سن ته هم په همدغه ډول غبرېدلی و، چې "تاریخ موږ ته دغه سپېڅلی رسالت را کوي. موږ نه شو کولی چې له خیبر نه اخوا خپل ځپل شوي پښتانه ورونه ترک کړو. پاکستان وایي، چې د پښتنو او بلوڅو نومونه مه اخلئ. خو موږ دا څنګه منلی شو.؟" په داسې حال چې امین ادعا کوله، چې پاکستان او امریکا "افراطي" مسلمانان زموږ پر ضد یاغیګری

ته هڅوي، په ډاډه زړه وويل، چې "پښتانه او بلوڅان به په پاکستان کې زموږ د رجيم په دفاع کې جګ شي." امين د ثور "انقلاب" هم د پښتونستان له مسئلې سره تړلی وښود، په دې ډول چې "هيڅ څوک انکار کولی نه شي چې د افغان انقلاب او د پښتونستان موضوع سره تړلي دي."(93)

د پاکستان لوړ پوړ چارواکي د تره کي او امين له دغو ويناوو نه خبر نه وو، خو د هغو د نورو سياستونو او څرګندونو نه په داسې حال کې چې د شوروي اتحاد حکومت يې ملاتړ ګڼه، په اندېښنه کې وو. اغا شاهي د پاکستان د باندنيو چارو وزارت سکرتر د 1979 کال په اکتوبر کې په واشنګټن کې د امريکې مامورانو ته د افغانستان له خوا له نظامي خطر نه غږېدلی و، په دې ډول چې "د حايل دولت په توګه د افغانستان تاريخي رول له منځه تللی او پاکستان تيار نه دی او نظامي وسلې نه لري، چې له نظامي خطر سره مقابله وکړي." خو د هغه غټه اندېښنه دا وه، چې د افغانستان له خوا به د پښتنو او بلوڅو له لارې د پاکستان پرضد فعاليتونه وشي او څه وخت، چې حکومت ټينګ او پياوړی شي، بيا به "له خپل نوي نظامي ظرفيت نه د پاکستان پر ضد کار واخلي" هغه "دغه رجيم د پښتون شوونيزم او ايډيولوجيکي لېوالتيا يو مخلوط وګڼه، چې د پاکستان ګټو ته يې له دوارو خواوو ته خطر پېښ کړی دی." د اغا شاهي په نظر کابل ځوان پښتانه او بلوڅ او هغوی، چې مارکسستي ميلونه لري، د پاکستان پر ضد فعاليتونو لپاره هڅولي دي. د هغه په نظر " د پاکستان د خلکو عقلاني تخريب لا دمخه د بري نښې ښوولي او ډېرو پاکستانيانو خپل دريځونه د افغانستان په لور اړولي دي." ده دا هم څرګنده کړه، چې دغه ميل د ثور له کودتا نه وروسته پيل شوی او د افغانستان حکومت غواړي "دغسې موقع خلق کړي، چې دوی بيا

د پښتون نېشنلزم د اتلانو په شان ښکاره شي."
له هغه نه وروسته امریکایي چارواکي دغې نتیجې ته ورسېدل، چې پاکستانیان "تر پخواني رجیم نه ډېر د امین د یوه کس له واکمنۍ نه ناراحته دي." ددغو پاکستانیو اندېښنه به رښتینې وه، خو دوی غوښتل په دغه سې ویناوو سره له امریکې نه د لویو وسلو او ډاډینې ترلاسه کولو لپاره لار هواره کړي. د امریکې چارواکیو دغسې ډاډینه هم ورکړه: "د پاکستان پرضد د افغان د تېري په مقابل کې د 1959 تړون زموږ په نظر د اعتبار وړ دی."[94] په دغه وخت کې له څلور لکه افغان کډوالو نه برسېره د اسلامي تنظیمونو لویان هم په پېښور کې وو او افغانستان په خپل وار له پاکستان نه اندېښمن و، چې پاکستان به هغوی د افغانستان پر ضد ولمسوي او د وسلو مرسته به ور سره وکړي. دواړو خواوو ته ښه موقع برابره وه، چې د خپلمنځي کشالو د هوارولو په اړه سره وغږېږي.
د دواړو هېوادونو مشران له یوه بل نه په اندېښنه کې وو. دغه اندېښنه په دې هم ټینګه وه، چې د دواړو حکومتونو کودتایي وو او وېرېدل، چې یو به د بل له مخالفانو سره ډول ډول مرستې وکړي، چې په هغو سره به لږ تر لږه د دوی په هېوادونو کې امنیت په خطر کې شي.
په سپتمبر کې، چې ضیاء الحق او نور محمد تره کي د ناپېیلو هېوادونو د سرانو په کنفرانس کې د ګډون لپاره د کیوبا مرکز هوانا ته لاړل، دوه ځله یې سره په ځانګړي ډول ولیدل. لومړی ځل د ضیاء الحق او دویم ځل د تره کي په هستوګنځي کې. دوی په هغو مسئلو سره وغږېدل، چې د دواړو هېوادونو اړیکې یې سره خراب کړي وو. ددې لپاره لا "...د ضیاء الحق له خولې څخه د بي. بي. سي له لارې څرګندونې و شوې، چې دی غواړي د کیوبا د مشر فیدل کاسترو په مینځګړتوب د افغان مشرتابه له پلاوي سره د خپلمنځي

اختلافاتو د لیرې کولو په هکله خبرې اترې وکړي." د افغانستان د اطلاعاتو او کولتور وزیر خیال محمد کټوازی، چې په دویمې غونډې کې حاضر و، د دواړو اندېښنې په دې ډول څرګندې کړې: "کله چې تره کي ضیاء ته پوښتنې وړاندې کړې، چې ولې په افغانستان کې لاسوهنې کوي او ولې زموږ پر ضد زموږ مخالفینو ته روزنه او وسلې ور کوي؟ ضیاء په ځواب کې ورته وویل، چې په دې کې شک نشته، چې موږ دا کار کوو او دا ځکه چې موږ د تاسې له اړخه دوه تشویشونه لرو: یو دا چې تاسې پښتانه یاست او ارومرو به د پښتونستان مسئله رامېنځ ته کوئ او بل موږ له دېنه وېره لرو، چې تاسې به شوروي پلوه انقلاب یو وخت پاکستان ته هم راصادر کړئ." د تره کي ددغې وینا په برابر کې، چې د افغانستان پخواني مشران هم پښتانه وو، ضیاءالحق وویل چې "د هغوی پښتو ژبه نه وه زده او د پاکستان له پښتنو سره تفاهم ستونزمن و او کلونه کلونه موږ په عمل کې د هغوی له خوا کوم مشکل نه دی لیدلی.)95(" له بلې خوا د ثور له کودتا نه وروسته پاکستان د افغان کډوالو او د درې افغان اسلامي تنظیمونو له لارې هم د افغانستان حکومت ته امنیتي ستونځې پیدا کولی شوې، چې په اړه یې لږ دمخه غږېدلی یم، خو پاکستان له یوه بل اړخ نه هم له کابل نه په اندېښنه کې و. د کټوازي په وینا کوم شی چې "ضیاء ته د تشویش وړ و، هغه په پاکستان کې د خلک دموکراتیک ګوند جوړښت و، چې د نور محمد تره کي تر مشرۍ لاندې یې مبارزه کوله. ضیاء الحق ]تره کي ته[ دا خبره په ډاګه کړه، چې دغه ګوند چې تاسې په پښتنو او بلوڅو کې نوی جوړ کړی دی، اوس ورځ په ورځ زموږ له کنټرول څخه وځي." د کندهار والي صاحبجان صحرايي، د پېښور قونسل رحیم سالارزی او د کوټې قونسل په پېښور، کوټې، پښین او نورو سیمو کې په پېسو، خپرونو او

هغو نو سره دد غه گو ند په پیاوړتیا کې غټ رول لوبولی دی. د کټوازي په نظر په اصل کې د همدغه گوند له امله و، چې ضیاء "سولې ته نږدې شو او د مذاکرو غوښتنه یې پیل کړه." کټوازی دا هم وايي، چې "په پاکستان کې د خلک دموکراتیک گوند دوه مره چټکه وده وکړه، چې هېڅ فکر یې نه کېده. برسېره پر دې د خلق جریده په څلورو ژبو... هره هفته د پاکستان... په کلیو او بانډو کې وېشل کېدله. همدارنگه د افغانستان په ختیځ کې د شمشاد د غره په سر باندې د تلویزیون په یوه سټېشن باندې کار روان و، چې خپرونې یې په پاکستان کې پښتنو ته په نظر کې نیول شوې وې."

په دویمې غونډې کې ضیاءالحق او تره کي د لاندې موضوع گانو په اړه په دې ډول موافقه وکړه، چې د هغو په اړه مقدماتي کارونه به د دواړو خواوو چارواکي سرته رسوي او بیا به دوی په کابل کې هغه په رسمي ډول لاسلیک کوي:

1_ پاکستان به ټول افغان مهاجران او د حکومت مخالفان، چې پاکستان ته راوښتي دي، د هغو له مشرانو او وسلو سره د افغانستان حکومت ته سپاري.

2_ د افغانستان حکومت به ضمانت کوي، چې د هغو ژوند به خوندي وي او غچ به تربېنه نه اخیستل کېږي.

3_ د افغانستان حکومت به په پاکستان کې خپل د خلق دموکراتیک گوند ړنگوي.

4_ د افغانستان حکومت به د شمشاد غره باندې د تلویزیون جوړولو کار بندوي.

5_ افغانستان به د خلق جریده نور نو پاکستان ته نه رسوي.(96)

کټوازی دا هم وايي، چې د ضیاء او تره کي ترمېنځ د خبرو بله موضوع د پښتونستان وه، خو په اړه یې بحث ځکه اوږد نه شو چې تره کي وویل

چې دا "داسې يوه مسئله ده، چې يو دولتي مشر نه شي کولی د ولسونو له ارادې پرته اقدام وکړي." بيا دوی سره ومنله، چې "په اوسنيو خبرو اترو کې دا موضوع له اجندا واېستله شي. اوس دې په نوي کړکېچ يوې پريکړې ته ورسېږي." د دوی ترمېنځ د بحث بله موضوع پاکستان ته د "سره انقلاب" صادرول او له شوروي اتحاد سره د افغانستان د دولت دريځ و. په نتيجه کې "ضياء په دې ډاډمن شو، چې افغان دولت يو مستقل ]دولت دی[ او د ] بل[ چا تر اغېزې لاندې فعاليت نه کوي. دغې ډاډېنې له امله ضياءالحق "ومنله چې پاکستان ته په دې هکله هم کوم خطر نه شته."

امين هم وروسته له هغه، چې د تره کي پرځای د ګوند او حکومت سروال شو، له پاکستان سره د اړيکو د ښه کولو غبرګون ته کړ. د توجه وړ ده، چې امين د دولت د رييس په توګه په خپلې لومړنی وينا کې له شوروي اتحاد سره د افغانستان د دوستۍ دوام په لنډو او سړو کلمو کې ياد کړ، په دې ډول چې "په هېواد کې هر باخبر فرد د هغې اهميت په ښه ډول درک کولی شي." د پاکستان په اړه يې وويل، چې علاقمن دی له هغه سره ناپوهاوی له مېنځه يوسي. هيله يې ښکاره کړه، چې ضياءالحق او اغا شاهي، چې د هغه د باندنيو چارو وزير په شان کار کاوه، چې ژومره ژر کېږي، کابل ته راشي. په عين حال کې هغه دا هم وويل، چې علاقمن دی د ايران له مسؤلو کسانو سره هم همدغسې ليدنې کتنې وکړي[97].

پاکستان بيا د ريشخورو فرقې له پاڅون نه وروسته، چې هېواد د ارامۍ په لور روان شو او نور وسله وال مخالفان حکومت ته خطر کېدلی نه شو، په دې اړه د افغانستان پلاوی منلو ته تياری وښود. امين بيا په کومې نيتې کې خپل د

با ندنیو چارو مرستیال شاه محمد دوست پاکستان
ته د یوه پلاوي په مشرۍ ولېږه. په پاکستان کې
د هغه تودهرکلی وشو، خو د خبرو تفصیل یې
معلوم نه دی. د کټوازي په وینا پاکستان "په
ټولو هغو وعدو چې په هاوانا کې یې له تره کي
سره کړې وې، پابند پاتې شوی و." پاکستان
ومنله، چې څه وخت چې د موافقت لیک وروستی
لیکنه پوره شوه، اغا شاهي به کابل ته لاړ شي.
شاه محمد دوست له پاکستاني چارواکیو سره د
خپلو خبرو راپور کټ مټ حکومت ته ورکړ "او دا
یې څرګنده کړه، چې پاکستاني مشرانو دوی ته دا
لوز ورکړ، چې نور به د پاکستان له خوا په
افغانستان کې یو ډز هم ونه شي." څنګه چې له
شاه محمد دوست سره نور افغان ډیپلوماتان هم
وو، خبرې یې له هغو نه پټولی نه شوې، نو هغه
نه شو کولی حکومت ته ناسم راپور ورکړي، که څه
هم دی د خلقي حکومت مخالف و.
د کټوازي په وینا "شاه محمد دوست یو نامتو
پرچمی، د شورویانو نږدې دوست او خواخوږی، د
کارمل شخصي ملګری او پخوانی همصنفي و. نو موړی
د بهرنیو چارو په وزارت کې یو پخوانی او
باتجربه ډیپلومات و.... خو د خپل مهارت له
مخې یې د امین په پوست کې ځان ننوېستلی و."
خو له خلقي حکومت سره د هغه مخالفت او د هغه
پرخلاف د پرچم ګوندګي او شوروي اتحاد ته د هغه
وفا د غومره ټینګه وه، چې په کابل کې یې ک.ج.ب
چارواکیو ته په دغه ډول څرګنده کړه، چې د
کټوازي په وینا "که د اغا شاهي له راتګ څخه
مخکې حفیظ الله امین... نسکور نه شي... د سولې
په شرایطو کې به د امین وهل ستونزمن کار وي."
له بلې خوا داسې پېښه شوه، چې پاکستان هم
کابل ته د خپل استازي په لېږلو کې بېړه ونه
ښودله. اغا شاهي منلې وه، چې پخوا له دې چې
له ضیاءالحق سره د عربستان او ایران په سفر
کې ملګرتوب وکړي، د دسمبر په 22مه به کابل ته

ځان ورسوي، خو د هغه په وینا د پاکستان نظامي قوې د راپور له مخې په دغه ورځ د کابل هوایي ډګر د ډېرې واورې له امله بند و. شاه ولي سره له دې هم د هغه د هرکلي لپاره ځان میدان ته رسولی و او چې اغا شاهي له نه راتګ نه خبر شو، په ټلیفون کې یې ورنه په ټینګه وغوښتل، چې په بله ورځ ځان کابل ته ورسوي، خو څنګه چې هغه له ضیاء سره په سفر روان و، وعده ورکړه چې د دسمبر په 29مه به کابل ته ورسېږي، خو شورویانو په هغه وخت کې کابل په پوځ سره نیولی، د امین حکومت یې نسکور کړی او په خپله امین یې وژلی[98] او په دې ډول یې د افغان_شوروي جنګ شروع کړی و، چې څه باندې نهه کاله یې دوام وکړ او د غه ټولې موضوع ګانې مې په یوه بل اثر کې په نامه د افغان _شوروي جنګ بیان کړی دي.

دا به ساده ګي وي، چې فکر وشي چې کابل ته د اغا شاهي په راتګ او د پاکستان او افغانستان ترمېنځ د موافقې په کېدلو سره به شورویان په افغانستان باندې د یرغل وړلو له فکر نه اوښتي وای. شوروي واکمنو د دسمبر په دولسمه په افغانستان باندې د یرغل پرېکړه کړې وه او پاکستان ددغه یرغل په برابر کې له افغانستان سره مرسته کولی نه شوه او دا د افغانستان او پاکستان د چارواکیو ترمېنځ د خبرو او موافقې موضوع هم نه وه، خو شوروي اتحاد ته د شاه محمد دوست خدمت او له افغانستان او افغانانو سره د هغه خیانت به شورویان هڅولي وي، چې د یرغل نېټه رادمخه کړي. شورویان پوهېدل، چې افغانستان په اصل کې له پاکستان سره د اختلاف له امله د شوروي اتحاد په لور کوږ شوی و او اوس به یې دغه دوستي له پاکستان سره نزدې او له شوروي اتحاد لیرې کړي، چې په هغه حال کې به افغانستان نور نو د دوی تر نفوذ لاندې هېواد نه وي.

# یادښتونه

## د ثور کودتا


1. شاه زمان وریځ ستانیزی، سهل انگاری محمد داود خان و کودتای 7 ثور، ناشر کتابفروشی فضل، پشاور، 1378، 30ز
2. عبدالقدوس غوربندی، نگاهی به تاریخ حزب دموکراتیک خلق افغانستان، ناشر مولف، سوید، 1379، 59.
3. ستانیزی، اثر یاد شده، 30
4. عطا محمد شیرزی، چشم دید واقعات و حوادث چند دهه اخیر، تا سیس حزب دموکراتیک خلق و تجاوز شوروی بافغانستان، ناشر مولف، کولن، المان، 2001، 56.
5. اثر بالا، 57
6. غوربندی، اثر یاد شده، 54
7. شیرزی، اثر یاد شده، 57
8. اثر بالا، 58
9. غوربندی، اثر یاد شده، 54
10. اثر بالا
11. دستگیر پنجشیری، ظهور و زوال حزب دموکراتیک خلق افغانستان، بخش دوم، کتابفروشی فضل، 1999/1378، پشاور، 59
12. غوربندي، اثر یاد شده، 55
13. پورته اثر، 58
14. محمد حسن کاکړ، ببرک کارمل، خپل یا پردی؟ خپلواک یا بلواک؟ د رښا او د فاع کتاب، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز، پېښور، 1999/1377، 146_181.
15. جنرال عمرزی، شب های کابل، ناشر سبا کتابخانه، پشاور، 1374، 3
16. پنجشیری، اثر یاد شده، 57
17. کاکړ، افغانستان، د شوروي یرغل او د افغانانو ځواب، خپرونکی د کلیفورنیا پوهنتون، برکلي، 1995، 310.
18. شاه محمود حصین، مثلث بی عیب در نوشته اردو و سیاست، ناشر و جای چاپ نامعلوم، 1380، 46_48

19. ستانیزی، اثر یاد شده، 32
20. ستانیزی، 35
21. د افغانستان د خلکو د دموکراتیک گوند لنډ تاریخ، د افغانستان کالنی، 1358 کابل، 33، 570
22. غوث الدین فایق، رازی را که نمی خواستم افشا گردد، کتابفروشی فضل، پشاور، 1379، 174.
23. پاینده محمد کوشاني، بآور میکنی یا نه؟ مجله آئینه افغانستان، جدی 1368/جنوري 1990، 160_161
24. فایق، اثر یاد شده، 163_164
25. محمد نبی عظیمی، اردو و سیاست. در سه دهه اخیر افغانستان، جلد اول، مرکز نشراتی میوند، چاپ سوم، 1378، 133
26. نقل قول در کرباس پوشهای برهنه پا، از محمد حسن شرق، 162، عظیمی، ج 1، 133
27. لیون پولاده او لیلا پولاده، د افغانستان سلطنت او د امریکې متحده دولتونه، 1928_1973، د افغانستان مطالعو لپاره د امریکې مرکز، د نبراسکا پوهنتون، لنکن، نبراسکا، 1995، 151
28. عظیمي، اثر یاد شده، 134
29. محمد نذیر کبیر سراج، رویدادهای نیمه اخیر سده بیست در افغانستان، چاپ آریانا پلورنځی فرانکفورت، 1997، 109.
30. فرهنگ، اثر یاد شده، 49
31. کوشاني، مقاله یاد شده، 62
32. سراج، اثر یاد شده، 112
33. سراج، 112
34. سراج، 108، عظیمي، 132
35. عظیمی، 137
36. سراج، 113
37. عظیمی، 140
38. انتونی هایمن، افغانستان د شوروي تر لاس لاندې، خپرندوی میکمیلن، لندن، 1984، 76.
39. سراج، اثر یاد شده، 111
40. فضل الرحمن تاجیار، مدافعه ارگ جمهوری افغانستان بمقابل هجوم یاغیان خلقی و پرچمی توسط قطعه گارد در جریان کودتای هفت ثور 1357، افغان_جرمن انلاین، 26 دسمبر 2008، 6
41. تاجیار، نوشته بالا، 9
42. پنجشیری، اثر یاد شده، ج 2، 95_96

43. پنجشیری، 43
44. عبدالحق مجددی، افغانستان از امیر کبیر تا رهبر کبیر، انجمن معارف، پشاور، 1378، 597_598
45. مجددی، 598
46. سراج، 114
47. عظیمی، 143. عاصم اکرم، نگاهی به شخصیت، نظریات و سیاست های سردار محمد داود، انتشارات میزان، 1380، جای طبع الیکزاندریه، ورجنیا، امریکا، 326
48. امین الله دریځ، افغانستان در قرن بیستم، انجمن نشراتی دانش، پشاور، 2001/1379، 612. ستانیزی، اثر یاد شده، 71
49. واسیلي میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، له روسي نه انګرېزي ته ترجمه او مقدمه د کرستلین او سنترمان او اوډو ستاډ، خپرونکی د پو هانو لپاره د وډرو ولسن بین المللي مرکز، واشنګټن، 2002، 25
50. ج.م.کورنینکو، افغان کوښښ، د نظامي لاسوهنې او د پر شا تګ حېرانتیاوې، د جنوبي اسیا او منځني ختیځ مطالعو جورنال، ژمی 1994، 2.
51. میتروخین، یاد شوی اثر، 25، اقبال وزیري، د ثور پاڅون د کې.جي.بي دسیسې او شوروي یرغل، دپښتونخوا د پوهنې دېره، پېښور، 2007/1386، 95
52. ستانیزی، یاد شوی اثر، 49
53. ستانیزی، 70
54. ج.م.را برټس، د نړی تاریخ، پنګون خپرونه، لندن، 1992، 693.
55. لینن، کینې تلونکی کمونزم، د ما شومانو ناروغي، مترقي خپروونکي مؤسسه، مسکو، انګریزي چاپ، 1977، 96.
55ب: مارشال پو، د نړی په تاریخ د روسیې مقام، د پرنستن پوهنتون خپرونه، پرنستن، 2003، 7. نیکولاس رای سانوفسکي، د روسیې تاریخ، خپرونه د اکسفورډ پوهنتون، 1977، نیویارک، 512.
56. کالنی، یاد شوی اثر، 667.

***

## دویم څپرکی

## د افغانستان لومړنی ایډیالوجیکي حکومت

1. د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند د تاسیس بیان د هغه د دوو غړو په اثرونو کې شوی دی: صالح محمد زیري، د نیمې پېړۍ خاطرې، د لیکونکي چاپ، پېښور،

2005، 89. میر صاحب کاروال، درس های تلخ و عبرت انگیز افغانستان، بنگاه انتشارات و مطبعه میوند، 1384، کابل، 16_20
2. د تره کي د قول نقل، میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، یاد شوی اثر، 22
3. په افغانستان باندې د شوروي یرغل په اړه سندونه، د وډرو ولسن مرکز خپرونه، واشنګټن ډي سي، 2004، 148. دغه سندونه، چې زیاتره یې د افغانستان په اړه د شوروي اتحاد د کمونستي ګوند د پولټبورو پریکړې او د هغې د مهمو غړو ویناوې پکې ثبت شوي دي، د همدغه مرکز د 1996 کال په بولټبن کې هم په عین ترتیب خپاره شوي دي. په وروستی کې د اوږ وستهاد یوه لویه مقدماتي لیکنه هم نیول شوې، په نامه د الف ]افغانستان[ وضع په اړه، په افغانستان کې د شوروي مداخلې په اړه نوي روسي شواهد. دلته زما یادښتونه له سندونو څخه دي. عبدالعلي نور احراري، یو شمېر دغه سندونه د افغانستان د اتحاد شوري تر عنوان لاندې په فارسي اړولي او چاپ کړي دي. د هرات دولتي مطبعه، 2204/1983.
4. د کارمل د وینا نقل، پورتنی اثر، 149
5. د محمود بریالي وینا، میتروخین په افغانستان کې، یاد شوی اثر، 32
6. ر چرد پایپس، د کمونزم لنډ تاریخ، ایډن فیلډ اونکلسن خپرونه، لندن، 2001. لایمن سارجن، اوسنی سیاسي ایډیالوجي ګانې، درسي خپرونه، شیکاګو، 1987.
7. میتروخین، یاد شوی اثر، 19، 22_24.
8. پاسنی اثر، 23
9. کاکړ، رښا او دفاع، یاد شوی اثر، 160
10. الیکزاندر موروزوف، په کابل کې زموږ سړی، نیو ټایمز، 38، 1991، 39. موروزوف له 1975 نه تر 1979 پورې په کابل کې د ک.ج.ب مرستیال و. کوزیچلکین، په کابل کې کودتاګانې او وژنې، ټایم، نومبر 22، 1982، 33
11. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، یاد شوی اثر، 16_22
12. زیری، یاد شو اثر، 482
13. مارشال پو، یاد شوی اثر، 77
14. وزیري، 75
15. وزیري، 96
16. وزیري، 96

17. زیری، 372_374
18. الیکزاندر یاکولیف، په روسیې کې یوه پېړۍ تشدد، انګر یزي ژ باړونکی انتوني آ ستین، دیـ یل پوهنتون خپرونه، نیوهي ون، لندن، 2002، 21.
19. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 41
20. یاکولیف، یاد شوی اثر، 91
21. کالنی، 50_56
22. زیری، 410
23. کالنی، 1364
24. کالنی، 612
25. ګل زرک زدران، د تاریخ له خاطرو نه، درسونه عبرتونه، لومړی ټوک، د مؤلف خپرونه؟ پېښور؟، 1367، 581_586.
26. میتروخین، یاد شوی اثر، 26
27. وزیري، 95
28. وزیري، 98
29. وزیري، 97
29الف: سلیګ هري سن او کوردوویز، له افغانستان نه دباندې، هري سن، 280، د اکسفورډ پوهنتون خپرونه، نیویارک، 1995، 28
30. ستانیزی، 22
31. کاکړ، رڼا او دفاع، 151
32. کاکړ، افغانستان، د شوروي یرغل، یاد شوی اثر، 64
33. غوربندی، 50_53
34. وزیري، 57
35. وزیري، 58
36. زیری، 363
37. د کارمل د وینا نقل، د شوروي اتحاد سندونه، یاد شوی اثر، 134
38. یاد شوی اثر، 135
39. وزیري، 97
40. عظیمي، 156
41. عظیمي، 157
42. وزیري، 99
43. کالنی، 1285
44. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 33
45. ش.ن.حق شناس، د سایس و جنایات روس در افغانستان، جمعیت اسلامی افغانستان، تهران، 1363، 386

***

## دریم څپرکی
## سور بېرغ او درې وروستي فرمانونه


1. زیری، زمین و آب به دهقانان، دغه لیکنه د پرچم د رجیم په کومې خپرونې کې راوتلې وه، په کال 1363 کې چې پوره درک یې له ما سره نه شته. 156 مخ
2. کالنی، 417
3. فضل رحیم مومند په نقل د زیري، 393_397
4. کاکړ، په افغانستان کې حکومت او ټولنه، د امیر عبدالرحمن واکمني، د تکساس پوهنتون، 1979، 81، 75
5. زیری، 399
6. زیری، 397
7. زیری، 397
8. زیری، 398
9. زیری، 399
10. زیری، 402
11. کالنی، 742_747
12. د قول نقل، زیری، 401
13. د قول نقل، زیری، 401
14. زیری، 407
15. زیری، 425
16. زیری، 407
17. زیری، 406
18. زیری، 398_409
19. زیری، 407
20. زیری، 407
21. زیری، 407
22. زیری، 402_411
23. زیری، مقاله یاد شده زمین و آب به دهقانان، 157.


***

## څلورم څپرکی
## بندي توب او جزا


1. کاکړ، د افغانستان ټولنه او حکومت، یاد شوی اثر، 38_40
2. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 37
3. زیری، 410
4. ن.حسینی، خاطرات زندان پلچرخی، شورای ثقافتی جهاد افغانستان، پشاور؟ 1367/1988، 1
5. احمد شاه روشن، بیست ماه در زندان پلچرخی، شخصی

خپرونه، پېښور، 1363، 7
6. کاکړ، د افغانستان ټولنه او حکومت، یاد شوی اثر، 37
7. سلطان علي کشتمند، یادداشت های سیاسی و رویدادهای تاریخی، جلد اول و 2، ناشر مؤلف 1381/2002، 419.
7الف: محمد عثمان هاشمي، فرار از کام مرگ، چاپ شخصی، استین، تکساس، 1999
8. عزیز احمد عزیزی، افغان ها که دو ابر قدرت را بزانو در اورد، دارالنشر افغانستان، ج 1، پشاور، 1378، 102
9. فرهنګ، ج 2، 96
10. فرهنګ، 2، 72_75. د فرهنګ دغه لیکنه د رحمت الله غرزي له کتابګوټي نه نقل شوې په نامه د خاطراتی از زندان پلچرخی. رحمت الله د وکیل محمد اسماعیل نورستاني وراره و.
11. ډورن سورو، پای ته نه رسېدونکی انقلاب، د کولمبیا پوهنتون خپرونه، نیویارک، 2005، 54
12. پورتنی اثر، 54
13. محمد حسن کاکړ، د پاچا امان الله واکمنی ته یوه نوې کتنه، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، پېښور، 2005/1384.
14. مجددی، از امیر کبیر تا رهبر کبیر، اثر یاد شده، 604
15. فرهنګ، 2. 75
16. کاکړ، د افغانستان سیاسي او ډیپلوماتیکي تاریخ، 1901_1963، برل، نیدرلیند، 2006، 96_105
17. زیری، 426
18. اسدالله نوابی، سرګذشت زندان، په افغانستان کې د سره استعمار د مظالمو څرک، شخصي چاپ، پېښور؟، 1361
19. روشن احمد شاه، یاد شوی اثر، 60
20. حسینی، خاطرات زندان پلچرخی، اثر یاد شده، 41_42
21. حسینی، 50
22. حسینی، 41_45_46
23. محمد هاشم زماني، زنداني خاطرات، شخصي چاپ، چاپ ځی؟، 2000/1379
24. روشن احمد شاه، 74
25. پورتنی اثر، 61
26. هاشمی، فرار از کام مرگ، اثر یاد شده، 211
26الف: سیدا ګل غریبیار، د څرخي پله له زندانه د راکي

تر غرونو، کډ هېواد نشراتي مؤسسه، چاپ ځی؟، 1380، 16

27. روشن احمد شاه، 23
28. حسيني، 71
29. روشن احمد شاه، 36
30. حسيني، 71
31. پاسنی اثر، 159
32. کاکړ، افغانستان د شوروي يرغل او د افغانانو ځواب، ياد شوی اثر، 72
33. روشن احمد شاه، 9
34. پورتنی اثر، 10

34الف: روشن احمد شاه، 10

34ب: پورتنی اثر، 12. حسيني، 5

34ج: روشن احمد شاه، 12

35. روشن احمد شاه، 12
36. پورتنی اثر، 45
37. پورتنی اثر، 47
38. پورتنی اثر، 48
39. هاشمي، 222
40. روشن احمد شاه، 25
41. پورتنی اثر، 54_55
42. پورتنی اثر، 27
43. پورتنی اثر، 28
44. پورتنی اثر، 28
45. پورتنی اثر، 36
46. غريبيار، 24
47. غريبيار، 20
48. غريبيار، 20
49. غريبيار، 28
50. هاشمي، 231
51. هاشمي، 231
52. هاشمي، 232
53. حسيني، 35
54. حسيني، 35
55. هاشمي، 256
56. حسيني، 77
57. حسيني، 74_86
58. حسيني، 100
59. حسيني، 267
60. روشن احمد شاه، 78

61. هاشمي، 76
62. حسيني، 131
62الف: هاشمی، 270. روشن احمد شاه، 78
63. زيری، 422_446
63الف: روشن احمد شاه، 82
64. حسيني، 80
65. روشن احمد شاه، 81
66. غريبيار، 22
67. ميتروخين، ک.ج.ب په افغانستان کې، 36
68. زيری، 382

***

## پېنځم څپرکی
## د خلکو پاڅونونه

1. کاکړ، د افغانستان ټولنه او حکومت، ياد شوی اثر، 139
2. کاکړ، د څرخي پله يادښتونه
3. سيد شريف يوسفي، قيام ګلګون کفنان 24 حوت هرات قهرمان، خپرونکی او چاپ ځی؟، دويم چاپ، 16. کاکړ، د څرخي پله يادښتونه.
4. مير علم ساپی، د هرات د اولسمې فرقې د حق پاڅون، خورونکی، چاپ ځی او نېټه؟، 43_48. محمد علم ساپی د کونړ اوسېدونکی او د هرات په فرقه کې ډګروال او د پاڅون په وخت کې د خپلو ملګرو افسرانو له خوا د پاڅون مشر غوره شو. دی د هرات فرقې د لارښودنې په سطح کې د پاڅون په اړه دغسې مهم معلومات ورکوي، چې په نورو اثرونو کې نه ليدل کېږي. له ارواښاد محمد يوسف لغماني نه مننه کوم، چې دغه مهم اثر يې ماته راکړی و. محمد يوسف لغمانی په هرات کې د فرقې سرطبيب و.
5. مير علم ساپی، 22_23
6. ساپی، 32
7. ساپی، 26
8. ساپی، 45
9. يوسفي، ياد شوی اثر، 24_28. د هرات پاڅون په اړه نور کتابګوټی دا دی: قيام 24 حوت هرات، شورای ثقافتی جهاد افغانستان، پشاور، 1984/1363. محمد يعقوب شاه قاضي زاده، هرات، 24 حوت و 25 هزار شهيد، پشاور؟ سال و ناشر طبع؟ سيد محمد خير خواه، خاطره بياد بود قيام شهدای 24حوت هرات، جمعيت اسلامی، 1365، چاپ پنګوسن، احمد شاه فرزان، قيام هرات.

انتشارات فرید، مشهد، 1995/1374.

10. قیام 24 حوت هرات، 20
11. پورتنی اثر، 21
12. میر علم ساپی، 80
13. سید شریف یوسفي، قیام گلگون کفنان، 33
14. قیام 24 حوت هرات، 27، 33
15. سید شریف یوسفي، 77. قیام 24 حوت هرات، 37
16. یوسفی، قیام گلگون کفنان، 83_82
17. ساپی، 45
18. ساپی، 46
19. یوسفی، 99. قیام 24 حوت هرات، 44. احمد شاه فرزان، قیام هرات، اثر یاد شده، 98.

19الف: کاکړ، د څرخي پله یادښتونه.

20. قیام 24 حوت هرات، 44
21. ساپی، 70
22. ساپی، 56
23. میر احمد اکسیر، رښتینی جګړن، شهید جګړن شمشیر خان درویش، د مؤلف چاپ، کاناډا، نېټه؟، 218. د لیکونکي له درنې کورنی نه مننه کوم، چې دغه اثر یې له کاناډا نه ماته استولی دی.
24. ساپی، 54
25. قیام 24 حوت هرات، 49
26. وزیري، 103
27. په افغانستان باندې د شوروي د یرغل په اړه سندونه، 145_146. ددغو تلیفوني خبرو ترجمه د شوروي د نظامي سر مشاور جنرال ګوریلوف او باتساتوف کوله. ددغو خبرو ټول متن چې په انګرېزي کې د جنوبي اسیا او منځني ختیځ د مطالعو په جورنلا ) اولسم ټوک دویم لمبر )1994 ژمي ګڼه ( کې خپور شوی، په کال 1995 کې زما په کتاب کې د لومړي ځل لپاره نیول شوی و، په نامه د افغانستان د شوروي یرغل، یاد شوی اثر، 326_321
28. وزیري، 105
29. په افغانستان باندې د شوروي یرغل په اړه سندونه، 137
30. پاسنی اثر، 150
31. پاسنی اثر، 151
32. قیام 24 حوت هرات، 49
33. ساپی، 58
34. ساپی، 51

35. ساپی، 49
36. یوسفي، قیام ګلګون کفنان هرات، 109_110 او 111
37. وزیري، 104
38. ساپی، 74
39. ساپی، 66
40. عبدالعلي نور احراري، یاد شوی اثر، 31
41. سید شریف یوسفي، 133. قیام 24 حوت هرات، 79
42. نظیف الله نهضت، د پردیو فتنې او تېری، چاپ د دانش خپرندویې ټولنې، پېښور، 1384، 84
43. په افغانستان باندې د شوروي د یرغل په اړه سندونه، 143
44. کالنی، 1364
45. سید شریف یوسفي، 128. قیام 24 حوت هرات، 50
46. نهضت، یاد شوی اثر، 75
47. ساپی، 83
48. احمد شاه فرزان، یاد شوی اثر، 24
49. عظیمی، 191
50. شیر زمان طایزی، د ثور انقلاب، خپرونکی: د پېښور پوهنتون، پېښور، 1986، 107. کاکړ، څرخي پله یادښتونه.
51. دلاور سهری، جهاد در کنرها، اتحادیه نویسندگان افغانستان ازاد، پشاور، 1989، 3
52. اثر بالا، 3
53. اثر بالا، 4
54. دلاو سهری، 5
55. دلاور سهری، 6
56. دلاور سهری، 11. قیام اسمار، شورای ثقافتی جهاد افغانستان، پشاور، 1985/1364، 17
57. دلاور سهری، 16
58. دلاور سهری، 13
59. اثر بالا، 33
60. اثر بالا، 30
61. انتونی هایمن، افغانستان د شوروي تر لاس لاندې، یاد شوی اثر، 127
62. قیام اسمار، اثر یاد شده، 112
63. قیام اسمار، 24
64. قیام اسمار، 25
65. قیام اسمار، 29
66. قیام اسمار، 30

67. قيام اسمار، 31_32
68. قيام اسمار، 31_32
69. قيام اسما، 34
70. قيام اسما، 39
71. قيام اسما، 37_38
72. دلاور سهری، جهاد در کنرها، اثر یاد شده، 22
73. اثر فوق، 23
74. وزيري، 109
75. کاکړ، څرخي پله یاددښتونه
76. کاکړ، د افغانستان ټولنه او حکومت، یاد شوی اثر، 158_160
77. محمد صدیق فرهنګ، 2، 86
78. فرهنګ، 2، 90
79. فرهنګ، 2، 91. شیر زمان طایزی، یاد شوی اثر، 110. عظیمي 191
80. انتوني هایمن، یاد شو اثر، 152
81. کاکړ، جورنال، لومړی ټوک، 1979_1982، 6
82. د قول نقل، عظیمی، 194
83. حق شناس، یاد شوی اثر، 394

❋❋❋

شپږم څپرکی

د تره کي_امین دښمني، د اندروپوف شیطاني

1. زیری، 414
2. زیری، 384
3. وزيري، 94
4. وزيري، 96

4الف: میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، یاد شوی اثر، 386

5. پورتنی اثر، 393
6. وزيري، 91_93
7. زیری، 392
8. وزيري، 106
9. وزيري، 107
10. د افغانستان د جنګ په اړه د بین المللي تاریخ په لور، 1979_1989 د ودروولسن مرکز، واشنګټن، د امریکې سندونه، د کرسیتن او سترمان او میرسي مینتین تدوین، اپریل، 2002. د سندونو دغه ډېره پنه ټولګه د مخونو شمېرن ه لري، هغه دلته ما په نښه کړې دي. 184

11. وزیري، 108. کاکړ، افغانستان د شوروي یرغل د افغانانو ځواب، یاد شوی اثر، 36
12. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 48
13. ګریګوري فایز، لوی قمار، په افغانستان کې د شوروي جنګ، هارپر کالنز خپرونه، نیویارک، 2009، 38
14. عبدالقادر، شخصي پوهاوی. دی په هالېنډ کې اوسېږي او لوی طبي ډاکټر دی. زه او دی په کال 1983 کې د پلچرخي زندان په اول بلاک کې په یوه کوټه کې وو، چې زموږ د کوټې نور ملګري یې د اعدام لپاره یووړل او د 1983 په دسمبر کې په دغه شپه د اټکل دري نیم سوو په نښه شوي بندیان له ټولو بلاکونو څخه د اعدام لپاره وړل شوي وو، چې د چمتلې په دښته کې د خاد جلادانو له مېنځه یووړل. د پلچرخي زندان کې د اعدام دغه عملیات تر ټولو ستر و. دغه غمناکه شپه په موږ دواړو ډېره ګرانه او ترخه تېره شوه.
15. وزیري، 107
16. هنري براډشیر، افغانستان او شوروي اتحاد، د ډیوک پوهنتون خپرونه، درهم، 1985، 106
17. زلمی خروټی، شخصي پوهاوی، لندن، 2007. زلمی خروټی حفیظ الله امین خوریه او موټروان و.
18. خیال محمد کټوازی، زما سترګو لیدلی حال. له کټوازي نه مننه کوم، چې زما لیکل شویو پوښتنو ته یې ځوابونه راکړي دي.
19. واسیلي میتروخین او کرستفر اندرو، نړۍ زموږ په لور روانه وه، ک.ج.ب او د دریمې نړۍ لپاره جنګ، خپرونکی: بېسک بوکس، نیویارک، 2005، 386.
20. ریموندګارتوف، دیتانت او تقابل، بروکنګز انستیټوشن، واشنګټن، 1994، 901
21. براډشیر، یاد شوی اثر، 102
22. براډشیر، 103_104. ګارتوف، 102
23. سلیک هري سن، له افغانستان نه دباندې، یاد شوی اثر، 38
24. ګارتوف، 903
25. سلیک هري سن، 38
26. ګارتوف، دیتانتاو تقابل، یاد شوی اثر، 905. براډشیر، 152
27. براډشیر، 108
28. گروهی از دانشمندان انستیتوت تاریخ نظامی فدراسیون روسیه، جنگ در افغانستان. ترجمه از روسی بفارسی از عزیز اریانفر، مرکز نشراتی میوند، پشاور، 1999،

238. له ښاغلي عزيز اريانفر نه مننه کوم، چې دغه اثر او خپلې يو څو نورې ګټورې ترجمې يې ماته راکړې دي.
29. ګارتوف، ديتانت او تقابل، ياد شوی اثر، 902
30. براډشير، 104
31. کټوازی، زما سترګو ليدلی حال
32. ميتروخين، ک.ج.ب په افغانستان کې، 49
32الف: ميتروخين، 50
33. پورتنی اثر، 50
34. وزيري، 113
35. راجا انور، د افغانستان تراجيدي، ترجمه له اردو نه د خالد حسن، ورسو خپرونه، لندن، 1988، 197
36. راجا انور، 168. هري سن، له افغانستان نه دباندې، ياد شوی اثر، 40
37. راجا انور، 166
38. راجا انور، 166
39. وزيري، 116
40. وزيري، فايفر ليکي، چې "ځينو مشاورو لا دمخه په مسکو ټينګار کاوه، چې موضوع په خپل لاس کې ونيسي. دوی د افغانستان د ستونځو د هوارولو لپاره چاره سنجولې وه، چې هغه د امين وژل و. د ک.ج.ب زينت تر سپتمبر پورې يو پلان ابستلی و، چې په هغه سره لومړی وزير ]امين[ وتښتوي او شوروي اتحاد ته يې يوسي، چې هلته ممکن ووژل شي، خو ددغه عمل د اجرا امر ونه شو." فايفر، لوی قمار، ياد شوی اثر، 43
41. عمر ساپی، ياد شوی اثر، 164
42. عمر ساپی، 164، عظيمي، 198. کاکړ، افغانستان، د شوروي اتحاد يرغل، 38
43. ميتروخين، ک.ج.ب په افغانستان کې، 51
44. پورتنی اثر، 51
45. وزيري، 117
46. ميتروخين، ک.ج.ب په افغانستان کې، 52
47. پاسنی اثر، 52
48. پاسنی اثر، 52
49. وزيري، 117
50. ميتروخين، 52_53
51. وزيري، 118
52. وزيري، 118
53. کټوازی، زما سترګو ليدل حال
54. موروزوف، ياده شوې ليکنه، نيو ټايمز، 41، 1991، 33

55. په افغانستان باندې د شوروي يرغل په اړه سندونه، 154
56. مورزوف، ياده شوې ليکنه، نيو ټايمز، 41، 1991، 32
57. وزيري، 119
58. وزيري، 119
59. ميتروخين، ک.ج.ب په افغانستان کې، 60
60. له ياد نه وتلی، په متن کې نشته
61. موروزوف، په کابل کې زموږ سړی، نيو ټايمز، 41، 1991، 34
62. وزيري، 119_120
63. ميتروخين، 63
36الف: وزيري، 122
64. زيری، 421
65. عظيمي، 202. فرهنګ، 2، 103
66. راجا انور، ياد شوی اثر، 180
67. ميتروخين او اندرو، نړی زموږ په لور روانه وه، ياد شو اثر، 397
68. پورتنی اثر، 387

***

## اووم څپرکی

## د امين سل او درې ورځې واکمني

1. ميل، 194
2. زيری، 410، 419
3. زيری، 374، 410، 438
4. وزيري، 127
5. کاکړ، سياسي جورنال
6. فرهنګ، 2، 105. براډشير، 120. کاکړ، سياسي جورنال
7. فرهنګ 2، 105
8. کاکړ، افغانستان، د شوروي يرغل د افغانانو ځواب، ياد شوی اثر، 72
9. مېل، 193. ارنلد د قانون د کميسيون د غړو شمېر 95 تنه ښودلی دی. انتوني ارنلد، د افغانستان دوه ګوندي کمونزم، سټينفورد پوهنتون خپرونه، 1983، 94. فرهنګ 2، 106
10. ميل، 193
10الف: ميل، 195
11. براډشير، 118
12. کاکړ )1995(، 41
13. پورتنی اثر، 41

14. عمر ساپی، د ثور نظامي پاڅون، یاد شوی اثر، 185
15. پورتنی اثر، 160
15الف: براډ شیر، 120
16. پورتنی اثر، 120
17. کاکړ، سیاسي جورنال، 1، 103
18. پورتنی لیکنه، 1، 34
19. د قول نقل، زیری، 434
20. کاکړ، جورنال، 1، 42
21. عمر ساپی، 217
22. عظیمي، 208
23. زیری، 420، 435
24. د افغانستان د جنګ په اړه د بین المللي تاریخ په لور، یاد شوي سندونه، 193 مخ شا.
25. عمر ساپی، 213. زیری، 421
26. عمر ساپی، شخصي مفاهمه، دسمبر 13، 2007. نجیب احمدزی، شخصي مفاهمه، دسمبر 15، 2007.
27. عثمان عمر ساپی، د ثور نظامي پاڅون، یاد شوی اثر، 214
28. کاکړ، سیاسي جورنال، 1، 48
29. عثمان عمر ساپی، 213
30. کاکړ، سیاسي جورنال، 1، 44
31. پورتنی جورنال، 87
32. په افغانستان باندې د شوروي اتحاد د یرغل په اړه سندونه، یاد شوی اثر، 133
33. وزیري، 106
34. میتروخین او اندرو، نړی زموږ په لور روانه وه، یاد شوی اثر، 392. هري سن، له افغانستان نه دباندې، یاد شوی اثر، 45
34الف: د قول نقل، شاه محمود حصین، مثلث بی عیب، یاد شوی اثر، 107
35. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 75
36. میتروخین او اندرو، نړی زموږ په لور روانه وه، 395
37. پورتنی اثر، 396
38. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 44
39. موروزوف، یاده شوې لیکنه، 38، 1991، 39
40. کاکړ )1995، 217
41. په افغانستان باندې د شوروي د یرغل په اړه سندونه، 139
42. براډشر، 90

43. د افغانستان د جنګ په اړه د بین المللي تاریخ په لور یاد شوی سندونه، 90_151_155
44. کاکړ، جورنال، 1، 106
45. وزیري، 138
46. وزیري، 139
47. موروزوف، یاده شوې لیکنه، 38، 1991، 39
48. پورتنی لیکنه، 39
49. زلمی خروټی، شخصي پوهاوی، لندن، جولای 2007
50. پیلامه د کرسټین او سټرمان او وسټاډ په ک.ج.ب په افغانستان کې، 2
51. وزیري، 139، 141، 143
52. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 62
53. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 65
54. په افغانستان باندې د شوروي د یرغل په اړه سندونه، 155
55. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 66
56. موروزوف، یاده شوې لیکنه، 41، 1991، 34
57. د شوروي د یرغل په اړه سندونه، 156
58. د شوروي د یرغل په اړه سندونه، 157
59. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 67
60. هري سن، له افغانستان نه دباندې، 41
61. براډشر، 117
62. زلمی خروټی، شخصي پوهاوی، لندن، جولای 27، 2007
63. کاکړ )1995، 39
64. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 70
65. د پوزانوف له یادښت نه، چې د هغه د ترجمان اوریکوف په قلم کښل شوی دی. میتروخین ک.ج.ب په افغانستان کې، 71
66. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 67
67. موروزوف، یاده شوې لیکنه، نیو ټایمز، 41، 1991، 34
68. میتروخین، ک.ج.ب په افغاسنتان کې، 67_70
69. میتروخین او اندرو، نړۍ زموږ په لور روانه وه، یاد شوی اثر، 396
70. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 74
71. پورتنی اثر، 70
72. د موضوع تفصیل د لیون اولیلا پولادوه په ذکر شوي اثر کې موندل کېدلی شي.
73. جوسف نوګي او رابرټ ډانلډسن، له دویم نړیوال جنګ نه وروسته د اتحاد شوروي باندنی سیاست، پرګه مان

پرس، نیویارک، 1988، 158.
74. فرهنګ 2، 68. کاکړ )1995، 56
75. میتروخین او اندرو، نړی زموږ په لور روانه وه، یاد شوی اثر، 390
76. د افغانستان د جنګ په اړه د بین المللي تاریخ په لور، یاد شوي سندونه، 169
77. کاکړ )1995(، 56
78. د افغانستان د جنګ په اړه د بین المللي تاریخ په لور، یاد شوي سندونه، 54
79. پورتني سندونه، د امریکې د ملي مصؤنیت لپاره یادښت، 135
80. ریموندګارتوف، دیتانت او تقابل، بروکنګ انستیتوت، واشنګټن، 1994، 949
81. د افغانستان د جنګ په اړه د بین الملي تاریخ په لور سندونه
82. براډشر، 122
83. د افغانستان د جنګ په اړه د بین المللي تاریخ په لور، سندونه، 97 )172
84. تاماس همند، د افغانستان دپاسه سور بېرغ، وسټرن پرس، بولډر، 1984، 87
84الف: د قول نقل، هري سن، له افغانستان نه دباندې، یاد شوی اثر، 43
85. تاماس همند، د افغانستان دپاسه سور بېرغ، 88
86. براډ شر، 118. کاکړ )1995(، 42
87. د قول نقل، همند، د افغانستان دپاسه سور بېرغ، 87
87الف: د قول نقل، هري سن، له افغانستان نه دباندې، 43
88. همند، د افغانستان دپاسه سور بېرغ، 88
89. ددغې موضوع پوره تفصیل په دغه اثر کې شوی، صمد غوث د افغانستان سقوط، واشنګټن، 1988
90. براډ شر، 86
91. میتروخین، ک.ج.ب په افغانستان کې، 112
92. پورتنی اثر، 113
93. د قول نقل، هري سن، له افغانسان نه دباندې، 29
94. د افغانستان د جنګ په اړه د بین المللي تاریخ په لور، یاد شوي سندونه، 193_194
95. کټوازی، سیاسي یادښت،
96. کټوازی، سیاسي یادښت، وزیري، 156. نهضت هم د تره کي او ضیاء الحق د سره شوو موافقو ټکي په خپل کې راوړي، خو روایت یې د کټوازي له متن نه ډېر توپیر

لري. دی لیکي، چې "د افغانستا لوري د پېنځو کلونو لپاره د پښتونستان د مسئلې په اړه د پاکستان پر ضد خپلو تبلیغاتو ته د پای ټکی کېږدي." په داسې حال کې چې د کټوازي په روایت لکه چې دمخه ویل شوي، په دغې موضوع باندې هېڅ بحث نه دی شوی. نهضت، چې که څه هم په کیوبا کې د افغانستان سفیر و، د ضیاءالحق او تره کي په غونډو کې ګډون نه درلود، خو کټوازي ګډون درلود. نهضت، د پردیو فتنې او تېري، یاد شوی اثر، 89_91. د نهضت دغه لیکنه هم سمه نه ده، چې وايي په کابل کې به اغا شاهي "د دوستۍ او همکارۍ تړون لاسلیک کوي."

97. براډ شر، 122

98. هري سن، له افغانستان نه دباندې، یاد شوی اثر، 44

# پایلیک

له بده مرغه دغه اثر له اول نه تر پایه پورې د وژلو، ځپلو او توطیو داستان دی. د ثور کودتا د افغانستان د لومړي جمهوریت سروال محمد داود په وژل کېدلو سره سرته ورسېدله او د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت د سروال حفیظ الله امین په وژل کېدلو سره ختمه شوه. په بهیر کې یې درې صدراعظمان هر یو موسی شفیق، نور احمد اعتمادي او نور محمد تره کی او د لومړي جمهوریت یو شمېر وزیران له مېنځه یووړل شول. پر دوی سربېره هم د پخواني رجیم او هم د دموکراتیک جمهوریت ډېر پوځي افسران او ملکي چارواکي له مېنځه لاړل. ټول مرګونه په محبسونو، پاځونونو او نورو پېښو کې شاید د پنځوس زرو په شاوخوا کې وو. دغومره ډېر انساني مرګونه هغه هم د شلو میاشتو په بهیر او په یوې پېنځلس نیم ملیوني ټولني کې د یوې ډېرې ناسالمې فضا حکایه کوي. دغه ناسالمه فضا څنګه په افغانستان باندې راخوره شوه؟

دغه فضا د افغانستان د دموکراتیک جمهوریت له امله وه، چې د ثور په خونړۍ کودتا سره واک ته رسېدلی او په اساس کې غېر قانوني او غېر مشروع و. اول خو هغه د افغانستان د لوی پوځ د یوې ډېرې وړې برخې محصول و او ټول پوځ او ولس پکې ونډه نه لرله. دویمه دا چې د پوځ دغې وړې برخې په وچ زور یانې په کودتا سره دولتي قدرت ترلاسه کړ او برحال قانوني نظام یې نسکور کړ. دریېمه دا چې دغه غېر قانوني دموکراتیک جمهوریت د افغانستان خلق دموکراتیک ګوند ته منحصر کړل شو، چې هغه په مارکسزم_لیننزم

باندې ولاړ و، په داسې حال کې چې مارکسزم د لویدیځې اروپا او لیننزم د روسیې د تاریخ او کلتور محصول و، چې هغه دواړه افغان ولس ته بېګانه وو. څلورمه دا چې دغه دموکراتیک جمهوریت او دغه دموکراتیک ګوند د قانون په نشته والي کې ددغسې ګوندیانو له خوا چلول کېده، چې د ټولنې او دولت په اړه نور فکرونه یې بیخي ناسم او مردود ګڼل او معتقدان یې د انقلاب ضد په نامه ټکول، نو د دوی په نړۍ لید او دولتي نظام کې د نورو ګوندونو پلویانو ته ځای نه وو، په داسې حال کې چې د افغانستان په عنعنه یېزې او دیني ټولنې کې د نورو فکرونو له مخې جوړ شوي ګوندونه ډېر او یو شمېر یې په ګډه کار کولو ته حاضر وو.

په دې ډول دغو ګوندیانو د خپلې ټولنې د قوتونو او د سیاسي ګوندونو په مخالفت حکومت کول پیل کړل او د خپل ولس سیاسي عنعنې ته شا کړه، چې افغانان د هغې له مخې په جرګو، مرکو او ګډ کار او حشر سره چارې ترسره کوي.

هو، دوی مشاوران لرل، خو هغوی بېګانه او له شوروي اتحاد نه وو، نه له افغانستان نه. دغو مشاورانو د مشورو په ورکولو کې د لیننزم په بڼه د خپل حکومت خاص نظرونه پرمخ بېول او ځینو یې لا د خلقي نظام په مخالفت ورانۍ هم کاوه. سره له دې هم که د افغان دموکراتیک جمهوریت چارواکي په دولتي چارو کې د تجربو، پراخ نظر او زغم خاوندان وای، چارې به یې په مسؤلیت سره د پایلو په نظر کې نیولو سره ترسره کولای، خو دوی دغسې کسان نه وو. د هغه پرخلاف دوی چې په هره سطح کې وو، زورواکي او دکتاتوري کوله، نو د دوی ددغه کودتایي، ایډیالوجیکي او یو ګوندي دموکراتیک جمهوریت ځانګړتیا زورواکي وه، چې پایلې یې نه یواځې ولس او نورو ګوندونو ته، بلکې په خپله د دوی نظام او ګوند ته هم ګرانې تمامې شوې. دا په

دغه سې حال کې چې خلقیانو ته دغه سې حکومت په لاس ورغلی و، چې د مسلکي کدرونو او منظم وسله وال پوځ او څارندوی خاوند و او څلور سوه میلیونه ډالر په بانک کې موجود وو او په خپله هم د یوه لوی ګوند غړي وو.

په حکومتي ضد پاڅونونو کې د زرګونو افغانانو د وژل کېدلو له امله و، چې په ولس کې دښمني ګانې لا زیاتې شوې او ملي پېوستون سخته صدمه ولیدله. له دې سره جوخت د خلقیانو او نورو سیاسي ګوندیانو، ملتپالو، اخوانپالو، ماوستانو او نورو ترمېنځ موجود اختلافونه په نه پخلاکېدونکې دښمنۍ بدل شول او په نتیجه کې افغان سیاست تر دې حده افراطي شو، چې په ابتلاف سره د حکومتولو فکر له مغزونو نه ووت.

په دغه حال کې کړکېچ د غومره زیات شو، چې رسمي ګوند هم پرې لتاړ شو. هغه و، چې د دموکراتیک ګوند د پرچم ډلې مشر ببرک کارمل د حفیظ الله امین له مخالفو خلقیانو اسدالله سروي، سید محمد ګلابزوی او اسلم وطنجار سره په مسکو کې د ک.ج.ب په دستور یو موټی شو او بیا ټول د شوروي اتحاد له یرغلګر پوځ سره ملګري شول او په دې ډول قدرت ته د بیا رسېدلو په لار کې یې خپل وطن لا وران کړ. په نتیجه کې د امین په سروالی نه یواځې خلقي حکومت نسکور شو، ټول هغه څه چې حکومت د فرمانونو له لارې ترسره کړي او پرې ویاړېده، لکه د ځمکو وېش، ښځو ته خدمت، سواد زده کړه او داسې نور هم لکه هېڅ داسې شول. اوس په ټول ملک کې د خلقي حکومت کوم مثبت میراث نه لیدل کېږي، کوم څه چې اورېدل کېږي، د هغه ترخه یادونه دي.

# د ځینو اثرونو پېژندنه

د تاریخ لیکونکو سرچینې باید د باور وړ وي او دوی ددې توان ولري، چې په هغو کې واقعیت له غېر واقعیت نه بېل کړي او له خپلو سرچینو څخه په صلاحیت کار واخلي. په اوله درجه سرچینې لومړنی نا چاپ شوې دفتري یا ارشیفي پاڼې دي، خو په افغانستان کې تراوسه هم دغسې یو مذځی نشته، چې دغسې پاڼې د څېړونکو لپاره پکې خوندي وي. دا چې افغان تاریخ دقیق نه دی او ادبي او جورنلستیک رنګ یې قوي دی، په اصل کې د ارشیفي مذځي د نه شته والي له لامله دی. په افغانستان کې د قانوني پاچایي په وخت کې یو ارشیفي مرکز پرانیستل شو، خو په هغه کې تراوسه پورې یواځې خطي او داسې نور اثار خوندي دي، نه رسمي دفتري پاڼې او سندونه. په افغانانو کې د دغه رواج ضعیف دی، چې د پېښو په وخت کې لیکنې وکړي، خو په دې وروستیو وختونو کې د سرطان او ثور د کودتاګانو او نورو پېښو په اړه ډېر اثرونه خپاره شوي دي، چې د هغو له ډېرو نه په دغه اثر کې کار اخیستل شوی دی.

ما د خلقي حکومت په وخت کې د بالاحصار غونډ له پاځون نه وروسته تر خپل بندي کېدلو پورې (1982) پېښې ثبتولې، چې هغه زر مخونو ته رسېږي. له هغو نه مې په کال 1995 کې په خپل یوه انګرېزي اثر کې (افغانستان، د شوروي یرغل او د افغانانو ځواب) او دا دی اوس په دغه اثر کې استفاده کړې ده. دغه جورنال د شفاهي معلوماتو او رسمي خپرونو پر بنسټ تهیه شوی دی. په هغه سربېره پېنځه کاله بندي توب موقع

په لاس راکړه، چې د څرخي پله محبس کې له باخبرو بندیانو نه د خلقي او پرچمي رژیمونو په اړه معلومات ترلاسه کړم.
زما د معلوماتو بله سرچینه ښاغلی خیال محمد کټوازی او ښاغلی محمد اقبال وزیري دي. کټوازی تر کودتا نه دمخه د یو شمېر خلقي افسرانو رابطه ګوندي غړی او تر کودتا وروسته د اطلاعاتو او کولتور وزیر شو. هم تره کي او هم امین ته منلی و او په مسکو کې د افغان رسمي هیئت غړی او له تره کي سره د هاوانا د سفر ملګری و. نو دی چې په اصل کې ژورنلست او شاعر دی، د خلقي دورې په اړه د مهمو او ډېرو معلوماتو خاوند دی. هغه ته مې په هالېنډ کې د خلقي دورې په اړه پوښتنې واستولې او هغه په ورین تندي ټولو پوښتنو ته لیکلي ځوابونه واستول، چې په دې وسیله تربې نه منونه کوم. له ښاغلي وزیري نه مې هم د خلقي دورې په اړه ډېر معلومات ترلاسه کړي دي، چې د ګوند پخوانی غړی و، تر کودتا دمخه په پولي تخنیک کې استاد او په خلقي دوره کې د ملي دفاع وزارت کې د سیاسي چارو آمر او تر کودتا دمخه ډېرو خلقي افسرانو سره د ګوند رابطه غړی و.
ده په 2007 م کال کې ) د ثور پاڅون، د ک.ج.ب دسیسې او شوروي یرغل( په نامه یو کتاب هم خپور کړی، چې له هغه نه مې دلته پوره کار اخیستلی دی. څنګه چې په هغه باندې مې یوه لیکنه کړې، د هغه په اړه دلته نه غږېږم. دغومره وایم، چې دا د خلقي دورې په اړه یو دقیق او مهم اثر دی. د کټوازي او وزیري معلوماتو زما د دغه لیکنه ښه شتمنه کړې ده، خو هسې مې چې له خپل جورنال نه واقعیت ته په درناوي سره په انتقادي ډول استفاده کړې، د دوی له لیکنو نه مې هم په دغه ډول استفاده کړې ده.
زما بله سرچینه په 1370 مخونو کې د خلقي

حکومت د افغانستان کالنۍ ده. په دغې کالنۍ کې د خلقي لویانو، ویناوې، رسمي سندونه، فرمانونه، حکومتي اجراات، د ګوند تاریخ او نور معلومات خپاره شوي دي. د افغانستان په بلې کالنۍ کې دغومره ډېر معلومات نه لیدل کېږي، نو دا د خلقي حکومت ښه فرهنګي میراث دی، چې څېړونکیو ته یې پرې ایښی دی.

د خلقي دورې په هکله د ښاغلي صالح محمد زیري اثر هم یوه مهمه سرچینه ده، د نیمې پېړۍ خاطرې په نامه په اته نیم سوو مخونو کې دا یو پنځ اثر دی، خو ټول اثر یې د مهمو پېښو په اړه نه دی. دا په اصل کې د هغه د ژوند د خاطرو ټولګه ده، هغه هم په دې ډول چې کلونه کلونه وروسته یې په لندن کې خپلې خپلې ژوند پېښې، لیدنې کتنې او تجربې د خپل یاد له مخې لیکلې نه د سندونو او لیکل شویو معلوماتو پر بنا، خو څنګه چې ده په خلقي دوره کې د کرنې او اوبو لګولو د وزیر او په پرچمي دوره کې د مشاور په توګه کار کاوه او د ګوند یو پخوانی او مهم غړی و، د رسمي او غېر رسمي ژوند قیصې یې ډېرې پکې بیان کړي او په اړه یې دغسې سپین او زړور ګړېدلی، چې شاید بل وخت دغسې سپین او زړه ور نه وي ګړېدلی. دی د ګوند او حکومت په سیاستونو او چلندونو انتقادي هم دی. خپلو چلندونو ته یې هم د انتقاد ګوته نیولې ده. دغه اثر له دغې ډډې نه هم مهم دی، چې په هغه کې دغسې موضوع ګانې او ټکي موندل کېدلی شي، چې په نورو اثرونو کې نه لیدل کېږي، نو ویل کېدلی شي چې دغه اثر د خلقي دورې په اړه د معلوماتو بزغلی دی، خو باید دا په نظر کې ونیول شي چې دی د غلام دستګیر پنجشیري او عبدالکریم میثاق په شان د امین په نظرونو، چلندونو او سیاستونو هم انتقادي و، چې له دې لامله د کتوازي په وینا صاحبجان صحرایي په دوی باندې د "کنجکیانو" نوم ایښی و، چې هغه بیا د

دوی په مخالفو خلقيانو کې عام شو.
د خلقي دورې په اړه نور چاپي اثرونه )درس های تلخ و عبرت انگيز افغانستان( د مير صاحب کاروال )ميوند چاپ، کابل، 2005(، غميزه څرنگه منځ ته راغله؟ د عبدالرشيد جليلي )دانش خپرندويه ټولنه پېښور، 2008(، د پرديو فتنې، د نظيف الله نهضت او د ثور نظامي پاڅون او د خلقي گوندیانو هيلې د محمد عثمان عمر ساپي دي. دوی ټول د خلق دموکراتيک گوند ته منسوب خلقيان او حکومتي چارواکي وو او خپل اثرونه يې د ياد له مخې ليکلي، نه د سندونو پر بنسټ.
د کاروال درس های تلخ د نړی وال دويم جنگ نه د حامد کرزي دورې پورې د سياسي او گوندي پېښو بيان دی. خلقي برخه يې غټه او دده د خپلو ليدنو کتنو محصول ده. زياتره روايتونه يې خپل او د نورو او د حفيظ الله امين پر مخالفت دي. دی تر دې حده پر امين انتقادي دی، چې حتی د ثور په کودتا کې يې هم د هغه په رول سترگې پټې کړې. کاروال زرغوني خلقي و، سره له دې هم په هغه کې ډېر معلومات شته، چې بايد په احتياط ترېنه کار واخيستل شي، خو ما ته ډېر وروسته په لاس راغی او له ښاغلي اکبر کرگر نه مې نه کوم، چې له لندن نه يې رااستولی دی.
د ښاغلي جليلي غميزه څرنگه منځ ته راغله؟ د کاروال د اثر پرخلاف د خلقي حکومت په پلوی او د پرچمي رجيم په مخالفت د پېښو بيان دی، خو دد غه اثر روايتونه هم شخصي رنگ لري. څنگه چې ليکوال يې په خلقي دوره کې اول د پوهنتون رييس او بيا د کرنې او وروسته د پوهنې وزير او د امين نږدې ملگری و، محتويات يې مهم او د استفادې وړ کېدلی شي، خو چې په احتياط ترېنه کار واخيستل شي. دغه اثر هم ما ته وروسته په لاس راغی او د هغه له استونکي ښاغلي سيد حسن نه په دې وسيله مننه کوم. د ښاغلي عثمان ساپي د ثور نظامي پاڅون يو پنځ کتاب دی، زياتره

پېښې یې د خلقي دورې په اړه د لیکوال د خپلو معلوماتو، لیدنو کتنو او تجربو محصول دي. له ښاغلي ساپي نه هم په دغه وسیله مننه کوم، چې خپل دغه اثر یې له جرمني نه راستولی دی او په خپل اثر کې مې ترېنه کار اخیستی دی. د ښاغلي نهضت اثر هم دغه د خپلو کتنو او تجربو محصول دی، دا هم یو اړخیز اثر دی او کټور معلومات لري، چې باید په احتیاط سره ترېنه استفاده وشي. له ښاغلي شاه محمود پغماني نه مننه کوم، چې دغه اثر یې له جرمني نه رااستولی دی.
په دغه اثر کې د غوث الدین فایق، محمد نبي عظیمي، محمد نذیر کبیر سراج، محمد حسن شرق او عاصم اکرم له اثرونو نه هم استفاده شوې ده، چې د هغو په اړه مې په خپل بل اثر کې لیکل کړي په نامه "د سرطان کودتا، د افغانستان د اوږدې بې ثباتۍ پیلامه". په دغه اثر کې مې له ډېرو نورو اثرونو نه هم په فارسي او پښتو کې کار اخیستی، چې نه غواړم د هر یوه په اړه وغږېږم. دغومره وایم، چې د ن.حسیني خاطرات زندان پلچرخي، د محمد عثمان هاشمي فرار از کام مرګ، د اسدالله نوابی سرګذشت زندان، د امین الله دریځ، افغانستان در قرن بیستم، د روشن احمد شاه، بیست ماه در زندان پلچرخی، د میر محمد صدیق فرهنګ، افغانستان در پنج قرن اخیر )دویم ټوک( او د سیداګل غریبیار له ځرخي پله نه د راکي تر غرو پورې زه په دې قادر کړی یم، چې د خلقي حکومت په وخت کې په زندانونو کې د بندیانو په اړه اوږده لیکنه وکړم.
دغه برخه ماته ځکه مهمه ښکاري، چې په افغانستان کې د امیر عبدالرحمن له وخت راهیسې ډېر افغانان په زندانونو کې اچول شوي، خو په اړه یې تراوسه هم کومه منسجمه لیکنه نه لیدل کېږي، په داسې حال کې چې دغسې تاریخ له بندي او بې وزلو انسانانو سره د حکومت او د هغه د

عمالو چلندونه په ډاګه کوي او د حکومت او حکومتيانو اصلي څېره روښانه کوي. په همدې ډول د مير علم ساپي د هرات د اولسمې فرقې د حق پاڅون، د سيد شريف يوسفي قيام ګلګون کفنان 24 حوت هرات قهرمان، د شوراى ثقافتى جهاد افغانستان قيام 24 حوت هرات او د يو څو نورو ليکوالو کتابګوټو ته په دې قادر کړم، چې د هرات پاڅون په اوږد ډول بيان کړم. دا د هرات پاڅون و، چې خلقي حکومت کې يې تغيرونه راوستل او شوروي اتحاد يې د افغانستان په چارو کې په اساسي ډول دخيل کړ.

د خلقي دورې په اړه په انګرېزي ژبه کې ډېرې ليکنې راوتلي دي، چې تر ټولو مهمې يې د افغانستان په اړه د شوروي اتحاد هغه رسمي او ګوندي خپرونې دي، چې امريکايانو ترلاسه کړي او په انګرېزي کې خپرې کړي دي. د شوروي اتحاد ټوټه کېدلو په وا شنګټن کې د پوهانو لپاره د ودرو ولسن بين المللي مرکز په دې قادر کړ، چې د غه کار وکړي. د غه مرکز په افغانستان باندې د شوروي يرغل سندونه په کال 2001 کې په يوې مجموعې کې خپاره کړي دي. ډېر مهم يې تر د غه سرليک لاندې راوړي: )شوروي اتحاد او افغانستان، 1978_1989 ( د روسيې او ختيځ جرمني له ارشيفونو څخه سندونه، خو د افغانستان په اړه د شوروي اتحاد ټول سندونه په دغې خپرونې کې نه ليدل کېږي. په دغو سندونو کې ډېر مهم يې د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د سياسي بيورو يا سياسي دفتر هغه پريکړې دي، چې د افغانستان په اړه يې کړي دي. د غه سياسي دفتر يو عادي نوم ښکاري، خو هغه په واقع کې د شوروي اتحاد تر ټولو لوړ مقام و. په دغو سندونو کې له تره کي سره د شوروي اتحاد د خبرو متنونه هم خپاره شوي دي. دد غو سندونو او ليکنو يو څو يې د اول ځل لپاره په کال 1994 کې د سهيلي اسيا او منځني ختيځ مطالعو جورنال

مجلې کې خپاره شوي و، چې ما په خپل هغه انګرېزي کتاب کې چې په کال 1995 کې خپور شو، ترېنه استفاده کړې وه. په دغو سندونو کې د کو سيګين او تره کي تليفوني مرکه هم خپره شوې ده.

په هر حال، د شوروي اتحاد دغه ارشيفي سندونه او پاڼې، چې امريکايانو ترلاسه کړي، پوره او جامعې نه دي. يو دا چې شورويانو د افغانستان په اړه موضوع ګانو کې انتخاب کړي او بله دا چې دغه پاڼې هم ټولې ترلاسه شوي نه دي، خو دغه انتخابي سندونه که څه هم انتخابي او لږ دي، زيات ارزښت لري. اوس د هغو له مخې ياني د شوروي لويانو د خپلو پرېکړو له مخې، د افغانستان او شوروي اتحاد د اړيکو تاريخ له احساساتي او خيالي شکل نه ژغورل کېدلی شي.

ددغو سندونو متنونه د "افغانستان و اتحاد شوروي" په نامه کتاب کې موندل کېدلی شي، چې ښاغلي عبدالعلي نور احراري په فارسي اړولي او په کال 2005/1383 کې د هرات په دولتي مطبعه کې چاپ کړي دي.

د شوروي اتحاد او په خاص ډول د ک.ج.ب د راپورونو پر بنسټ د وا سيلي ميتروخين په قلم "ک.ج.ب په افغانستان کې" ډېر مهم اثر دی، خو دا د ميتروخين د ډېرو پاڼو د يوې وړې برخې محصول دی، چې د لسو کلونو په بهير کې يې د ک.ج.ب له مرکزي ارشيف نه په مسکو کې په پټه او د مرګ د خطر په منلو سره نقل کړی دی، خو دا د افغانستان په اړه د ک.ج.ب د ټولو راپورونو او ليکنو ټولګه نه ده. "... د ټولو سندونو يوه وړه برخه ]يې[ ده." چې د ميتروخين په وينا "په بيړه يې وليکه او په نتيجه کې ځينې يادښتونه، چې مې وليکل، ددې لپاره چې زما له بيان سره يوځای وي، جذباتي رنګ لري چې لږ څه نامتوازن بيان ترېنه جوړ شوی دی." خو دغه لاسوهنه لږه او غير مهمه ده. ميتروخين

وایي، چې ما هغه د شوروي عمالو "د جرمي نیتونو، تورونو او کړو" د رد لپاره کړي. په اصل کې د غه احساس و، چې میتروخین یې وهڅوه چې د سندونو ټولولو ته په پټه لاس پورې کړي. د ک.ج.ب د غو دوسیو د هغه احساسونه و پارول، چې د افغانستان په اړه وو.
دی په 1956 کې د ک.ج.ب په ارشیف کې وګومارل شو، چې ګوندي او حکومتي څانګو ته د هغو د غوښتنو له مخې سندونه وسپاري، خو په 1968 کې د پراګ پاڅون د ځپلو دوسیو دی له ک.ج.ب نه زړه تورن کړ او په دې فکر کړ، چې شوروي اتحاد نه اصلاح کېدونکی دی. د بلې لسیزې په اولو کلونو کې یې پرېکړه وکړه، چې د ک.ج.ب د باندنیو عملیاتو په اړه ځانله بېل یو بیان ولري. ددغې پروجې پرمخ بیول په کال 1972 کې ورته اسان شو، چې له مسکو نه یاسي نیوو (Yasenevo) ته تبدیل شو، چې د ښار په سهیل لویدیځ کې پروت دی. هلته د سندونو د ټولولو او اندکس جوړولو په پروسه کې د غه فکر ورته پیدا شو، چې په باندنیو ملکونو کې د ک.ج.ب د عملیاتو په اړه ځانله یو ارشیف ولري. ددې لپاره یې په خپل رسمي ارشیف کې سندونه په میرزایي ډول نقلول او بیا په خپل اطرافي مېنه کې تنظیمول او له سره لیکل. میتروخین د افغانستان په اړه دغه لیکنه وروسته له هغه وکړه، چې په کال 1984 کې متقاعد شو. په 1986_1987 کې یې له سره ولیکله او اصلي یادښتونه یې له مېنځه یووړل، خو دی وایي چې دغه لیکنه "یوازې د شوروي د ک.ج.ب د اطلاعاتو پر بنسټ تهیه شوې" او له بلې هېڅ سرچینې نه په کې کار اخیستل شوی نه دی. د هغه ټولې دغسې غوره شوې پاڼې د نړۍ د نورو هېوادونو په اړه وې، چې ټولې یې په شپږ، لویو بکسونو کې د برتانیې د استخباراتو په مرسته د 1992 کال

نومبر کې انګلستان ته ور سولی شوې، چې هلته میتروخین ته پناه ورکړل شوې وه.

د انګلستان حکومت د کیمبرج پوهنتون د تاریخ پروفیسر کرستوفر اندریو وروپېژندو، چې له دغو پاڼو نه نړیوال د کتابونو په بڼه استفاده وکړي، ځکه چې دغه پاڼې د نړۍ د ډېرو هېوادونو په تېره د دریېمې نړۍ هېوادونو په اړه وي، چې شوروي اتحاد تر لویدیځې نړۍ نه زیات ورته اهمیت ورکاوه. د پروفیسر اندریو د څېړنو او دواړو د ګډ زیار او کار نتیجه په څوارلسو سوو مخونو کې دوه کتابونه شول، چې یو یې "توره او سپر" د میتروخین ارشیف او د ک.ج.ب پټ تاریخ (1999) او بل یې نړۍ زموږ په لور روانه وه، ک.ج.ب او د دریمې نړۍ لپاره جګړه (2005) نومېږي. میتروخین او اندریو د دواړو کتابونو مؤلفان دي، له دغو کتابونو نه دمخه نړیوال په خپلو هېوادونو کې د ک.ج.ب له دغومره پراخو فعالیتونو نه خبر نه وو. میتروخین وایي، چې په دغو پاڼو کې "ما ترمیمونه، زیاتونې، پریکونې او د موادو له سره تنظیمول هېڅ نه دي کړي" ددې لپاره چې د ک.ج.ب "... درواغ بربنډ، جرمونه لوڅ او حقیقت بېرته پرځای شي."

خو دا به معجزه وي، چې د ک.ج.ب له رپوټونو څخه د شپږو بکسونو په حجم د میتروخین د غوره شویو پاڼو محتویات همغه وي، چې په اصلي پاڼو کې وو، خو په دې کې هېڅ شک نه شته چې که دی د انسان په اړه د لوړ احساس او په شخصي لحاظ د ټینګ همت خاوند نه وای، دغه خطرناک کار ته به یې هېڅ لاس نه وای اچولی.

د افغانستان په اړه د میتروخین لیکنه په 2002 کال کې په واشنګټن کې د پوهانو لپاره د وودرو ولسن د بین المللي مرکز له خوا په 176 مخونو کې د څلوېښتمې خپرونې په نامه د خاصو

علاقمنو لپاره خپره شوې، نه د معمولي کتاب په بڼه د عامه لوستونکیو لپاره. په همدغه کال کې، چې په دغه مرکز کې د افغانستان په اړه یو سیمینار جوړ شوی و، دغه خپرونه له نورو خپرونو سره ماته هم راکړل شوه. دغه لیکنه ښاغلي رحمت آریا پښتو کړې او دانش خپرندویې ټولنې په 2008م کال کې خپره کړې ده. د دانش خپرندویې ټولنې تراوسه پورې په پښتو او فارسي کې اول په پېښور او وروسته په کابل کې د غومره ډېر اثرونه خپاره کړي، چې بلې شخصي افغان خپرندویې ټولنې دغومره ډېر اثرونه چاپ او خپاره کړي نه دي. دغه غټ فرهنګي خدمت د هغې د سروال ښاغلي اسدالله دانش د نوښت، زیار، علاقمنۍ او تنظیم نتیجه ده. د خوښۍ ځای دی، چې ښاغلی دانش او داسې هم زرین انځور د افغان کلتوري ودې ټولنې سروال د قدر وړ فرهنګي خدمتونه کړي دي. د ښاغلي انځور او ملګرو ټولنې یې تراوسه 116 کتابونه خپاره کړي، چې نږدې یې ټول په پښتو کې دي. په دې ډول د غو ښاغلیو او د هغو د ملګرو په کوښښ سره پښو اوس ښه شتمنه شوې ده. د دوی او داسې هم د پښتنو لیکوالو، پوهانو، ژباړونکیو او نورو خپرندویو ټولنو ددغسې خدمتونو له برکته اوس څوک نشي ویلی، چې پښتو خواره ژبه ده، که څه هم د پښتو شعري ژبه له پخوا نه شتمنه وه. د دوی ټولو په زیار سره اوس په پښتنو کې د پښتو په اړه یو غټ غورځنګ لیدل کېږي، چې یوه نښه یې د هېواد په هر ولایت کې د ادبي او فرهنګي ټولنو منظمې خپرونې دي.

ښاغلی رحمت آریا د افغانستان په اړه د مېډ تروخین لیکنه په پښتو اړولې، په نامه د ) ک.ج.ب په افغانستان کې(. چا چې ترجمې کړي دي، پوهېږي چې په پښتو کې د کتاب ژباړه ډېر دقت غواړي. ددغسې لیکنې پښتو ژباړه، چې هغه هم ترجمه وي او اصلي لیکنه یې د خاصو چاروکیو لپاره وي، لکه دغه لیکنه چې ده لا خاص دقت

غواړي. زه د ښاغلي آريا د غه خدمت ته د قدر په سترګه ګورم، خو په عين حال کې رښتين توب ته د در ناوي له امله غواړم د ژباړې په ځينو هغو برخو چې بايد هغسې نه واى، لکه چې دى، رڼا واچوم. دې لپاره چې په بل چاپ کې هغه په نظر کې ونيول شي.
ددغه اثر له نامه نه د هغه د پيلامه ليکونکيو او چاپ ته چمتو کوونکي نومونه حذف شوي دي. ژباړونکي د حذف حق نه لري، خو چې حذف کوي بايد يادونه يې وکړي. پيلامه ليکونکيو او شايد له روسي ژبې نه انګرېزي کوونکيو کرستين او سترمان او اوډ وستاډ ددغه اثر په ښه کولو، د ناڅرګندو نومونو په څرګندولو او په لمنليک کې د شرح په ورکولو سره د غه اثر نور هم ګټور کړى دى. دواړه يې په دغسې موضوع ګانو کې متخصصان وو، يو يې د ودروولسن په مؤسسه کې د ساړه جنګ د تاريخ په بين المللي پروجه کې د مدير او دويم يې د لندن پوهنتون د اقتصاد په پوهنځي کې د استاد په توګه. په دغې پوهنځي کې سياسي تيوري او فکرونه هم تدريسېږي، چې ليکچرونو ته يې زه هم څه وخت، چې په لندن پوهنتون کې مې زده کړه کوله، ورتللم. بلله دا چې د ژباړې په متن کې په لسو مخونو کې د ښاغلي بروس رچرډ ليکنه هم نيول شوې، چې لکه هغه د متن يوه برخه وي. بېخبره لوستونکي به ارومرو دغسې فکر کوي.
ډېره مهمه داده چې د متن ځينې خاصې اصطلاح ګانې په دغسې کلمو اړول شوي، چې د متن له اصلي مفهوم نه توپير لري، لکه شفري يا مستعار نومونه چې په جاسوس ترجمه شوي دى، په داسې حال کې چې هر شفري نوم د جاسوس په مانا نه دى او يواځې ځينې شفري نومونه د ايجنټ يا جاسوس مانا وي.
د بېلګې په ډول حفيظ الله امين د "کاظم" په شفري نوم )مخ 26(، محمود بريالى د "شير" په

مستعار نوم )مخ 32( او دستګیر پنجشیري د "رچرډ" په شفري نوم یاد شوی دی )41مخ (. په دوی کې هېڅ یو د ایجنټ په نامه یاد شوی نه دی، خو د دستګیر په هکله د غومره و یل شوي، چې د کابل ک.ج.ب والو "... د رچرډ اطلاعاتو ته ډېر ارزښت ورکاوه.")42مخ( په ژباړې کې دغه درې واړه نومونه په "جاسوس" ترجمه شوي دي. )64_77_95مخونه(. دېته توجه نه ده شوې، چې ک.ج.ب والو شوروي چاروواکي او اداري هم په شفري نومونو یاد کړي، لکه مرکز )Center(، په مسکو کې د ک.ج.ب د اداري لپاره، هستوګنځی )Residency(، په کابل کې د ک.ج.ب څانګې لپاره، استازي )Representatives( له افغان حکومت سره د شوروي مشاورانو لپاره، دسنین )Desnin( د اکسا سر مشاور بوګدانوف لپاره او داسې نور... که ژباړونکی دد غو شفري نومونو مانا ګانو ته ملتفت نه وو، د امین په اړه یې باید لږ تر لږه ویلي وای، چې دا څنګه کېدلی شي چې هغه چې د کارمل یانو د پروپاګنډ له مخې د سي.ای.ای ایجنټ و، ک.ج.ب ته هم جاسوسي وکړي، یا ک.ج.ب دغسې "جاسوس" استخدام کړي. حقیقت دا دی، چې امین د شوروي اتحاد په هېڅ هغه سند او رسمي راپور کې چې ما لوستلي، د ک.ج.ب ایجنټ په نامه یاد شوی نه دی. حقیقت ته ژمن کسان هم نشي منلی، چې امین به د ک.ج.ب جاسوس وي. په واقع کې هغه یو وطنپال او په خپلواک افغانستان هغه هم لوی افغانستان معتقد افغان و، چې غوښتل یې په خپله په خپلواک ډول پرېکړې واکمني وچلوي. امریکایي چارواکیو هم د غه اوازه رد کړې، چې امین د دوی سړی و. دغه بې بنسټه اوازه د کارملیانو کار و لکه چې په میوندوال غونډې یو لوی ملي شخص یې هم د غه تور لګولی وو. د میتروخین د لیکنې له مخې دا کارمل، تره کی او یو شمېر نور ګوندیان وو، چې

د ک.ج.ب ایجنټان شوي وو. شوروي اتحاد له خپل هسکېدلو نه راهیسې په افغانستان کې ایجنټان لرلي، خو میتروخین د هغو نومونه، نه دي ورکړي. د ایجنټ کلمه تر جاسوس نه زیات د عامل، استازي او ګومارلي په مانا کارول کېږي، خو د میتروخین د متن افغان ایجنټانو د ک.ج.ب چارواکیو ته د افغانستان په اړه اطلاعات ورکول یانې جاسوسي یې ورته کوله.

لا مهمه دا ده، چې ژباړه دقیقه نه ده، پښتو یې ګرانه او غېر معیاري ده او نا عام شوې کلمې پکې لیدل کېږي، لکه "اکر و کر" د حالت، "پالیان" د وفادار او ول د "و" او "وو" لپاره.

په 183 مخ کې امپریلزم په پانګه والي اړول شوی، په داسې حال کې چې هغه سره بېل مفهومونه دي. داسې هم د ساواک پرځای موساد کارول شوی )63مخ(، په داسې حال کې چې ساواک د ایران او موساد د اسراییل د استخباراتي ادارو نومونه دي.

د ژباړې د نادقیق توب په اړه بس یوه بېلګه وړاندې کوم:

انګریزي متن:

**The failure to remove Amin sorely hurt the pride of the Kremlin elders and the KGB. They feared an unexpected turn of events. The character of Amin did not fit into the usual mould of a leader of a friendly country. P 82**

پښتو ژباړه:

"د امین د کمبلې په راټولولو کې ناکامي د کریملن او د ک.ج.ب د مشرانو ویاړلي مخونه سخت ورټپي کړل. هغوی د پېښو له ناڅاپي اوښتنګ څخه کلکه وېره درلوده، هغوی ته د یوه دود یز دوست هېواد د مشرتابه په سیاسي انځور کې د امین کرکټر نه ځایېده." )182مخ(

دقیقه ژباړه:

"د امین د لیرې کولو ناکامي د کریملن لو یانو او ک.ج.ب غرور سخت ټپي کړ. دوی د پې ښو له نه فکر کېدونکي او ښتون څخه وېرېدل. د امین کرکټر د یوه دوست هېواد د مشر په معمولي قالب کې نه ځایېده."

په پای کې ښاغلي آریا ددغه مهم اثر په پښتو کولو سره لوی خدمت کړی، خو ښه به دا وي چې په راتلونکي کې د هر مهم نوي اثر او ژباړې له خپرېدلو نه دمخه د کوم صاحب نظر، نظر وغوښتل شي.

پای

